# الفجر المستطير

پښتو شرح

# نحو میر

تالیف

فضل ربانی دیروی (از افادات)
امام النحو الصرف بقیة السلف
حضرت مولانا گل شهزاده صاحب عرف سرکی بابا
بازخیله ضلع سوات



ناشر



مکتبه اسلامیه
محله جنگی پشاور

بسم اللہ الرحمن الرحیم

# الفجر المستطیر

پښتو شرح




(من افادات)

امام النحو والصرف بقیۃ السلف حضرت مولانا

گل شہزادہ صاحب عرف سرکئ بابا ، بازخیلہ ضلع سوات

(مرتب)

فضل ربانی دیروی

د میلاویدو پته دارالعلوم مظاهر الحق حلقه عظیم آباد ضلع دیر ښه چکیاټنه :-

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمين والعاقبة للمتقين، والصلوة والسلام على
خير خلقه محمد وآله واصحابه اجمعين. اما بعد ذوره كړه دا خبره
چه هر شارع في العلم له لا بدی دی ده معرفت ده امورو ثلاثو نه. تعریف ده علم
موضوع ده علم او غرض ده علم،

تعریف پیژاندل ځکه ضروری دی چه لازم نشی طلب ده مجهول مطلق ځکه چه
طلب ده مجهول مطلق ناجائز دے، او مجهول مطلق معنی ئے دا دی چه مجهول من کل الوجوه
وی یعنی معلوم بوجه من الوجوه نه وی. اوده مجهول سره قید ده مطلق ځکه ایښودے
شویدے چه خارج شی ترینه مجهول من وجه ځکه چه طلب ده هغه شئ چه مجهول
من وجه او معلوم من وجه آخر وی نو دا جائز دے

او موضوع. پیژاندل ځکه ضروری دی چه که موضوع معلوم نشی نو فرق
به رانشی ده علم مشروعه ده غیر مشروعه نه ځکه چه امتیاز او جدا والے ده یو علم ده
بل علم نه راځی په امتیاز ده موضوع سره او غرض. پیژاندل ځکه ضروری
دی چه کوشش ده طلب کونکی بے فائدے نشی،

پس تعریف، ده علم نحوی دا دے. هو علم باصول یعرف بها احوال اواخر الکلم الثلث
من حیث الاعراب والبناء وکیفیة ترکیب بعضها مع بعض، ترجمه: اعلم نحو دیو علم
دے په قواعدو سره چه پیژاندل کیږی په هغو سره احوال ده اواخرو ده کلماتو
ثلاثو (یعنی ده اسم فعل او حرف) ده حیثیت ده اعراب او بناء نه. او پیژاندلے کیږی
په هغو سره طریقه ده ترکیب ده بعض کلماتو ده بعض سره،

او موضوع، ده علم نحو کلمه او کلام دی ځکه چه موضوع ده علم هغه شئ وی
چه په هغه کښ بحث کولے شی ده عوارضو ذاتیه ئے هغه شئ نه او په علم نحو کښی
بحث کولے شی ده عوارضو ذاتیو ده کلمه او کلام نه فان قیل، چه هر کله موضوع



ده علم نحو کلمه او کلام شو نو داخو لازم شو تعدد ده موضوع ، او قاعده داده چه تعدد ده موضوع مستلزم وی تعدد ده علمونو لره نو په کار دی چه علم نحو علم واحد نه وی بلکه علمین دے شی قلنا چه تعدد ده موضوع مستلزم تعدد ده علمونو لره هله وی چه په دغه علم کښې بحث کولے شی ده موضوع متعدد نه په حیثیاتو مختلفو سره نه په حیثیت واحده سره او چه بحث په حیثیت واحده سره وی نو تعدد ده موضوع مستلزم نه وی تعدد ده علمونو لره ،

او غرض ، ده علم النحو صیانة الذهن عن الخطاء فی کلام العرب ، ترجمه بچ والے ده ذهن دے ده خطائی نه په کلام عربی کښې یعنی غرض ده علم دا دے چه په تلفظ کښې په کلام عربی ده خطائی نه بچ والے راشی ، بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ،
مصنف رح ابتداء ده کتاب خپل کړیده په بسم الله سره ده څلورو وجوه نه ① چه موافقت راشی ده قرآن کریم سره ځکه چه ده قرآن کریم په اول کښې بسم الله ذکر ده
② ده وجه ده عمل نه په حدیث چه وارد دے په باره ده بسم الله کښې چه دا قول ده نبی علیه السلام دے ، کل امر ذی بال لم یبدا فیه باسم الله فهو ابتر ، یعنی هر هغه کار چه تعلق ئے ده لوئی شان سره وی او شروع او نه کړیشی په هغه باندی په نوم ده الله سره نو هغه ناقص وی ، ③ ده پاره ده موافقت ده کتابونو ده سلفو علماء ځکه چه ده سلفو علماؤ دا طریقه وه چه کله به ئے کتاب لیکه نو په اول کښې به ئے بسم الله راوړه او په روستنو باندے تابعداری ده سلفو لازم وی ترڅو چه ده هغوئی کار و رته خلاف ده شرع نه وی ښکاره شوی ④ ده پاره ده رد په مشرکینو ځکه چه مشرکینو به یو کار شروع کولو نو هغوئی به ویل ، بسم اللات والعزی ، نو مصنف رح په هغوئی رد او کړه او وه ئے ویل چه بسم الله الرحمن الرحیم ،
پس ده هغو نه باء په بسم الله کښې ده حروفو جارو نه ده په معنی ده استعانت سره او اسم مجرور دے ده پاره ده باء ، جار مجرور په نزد ده بصریانو متعلق دے ده فعل مقدر سره چه اَبتدأُ یا اَشرعُ دے ، او لفظ ده الله مضاف الیه دے ده پاره ده لفظ ده اسم او الرحمن صفت اول ده الله دے او الرحیم صفت ثانی ده الله دے نو معنی داده چه شروع کوم په امداد ده نوم ده الله هغه الله چه عام مهربانه دے او خاص مهربانه دے

قوله بسم الله اسم یا په اصل کښې وسم وو چه په معنیٰ د علامې سره دے او یا په اصل کښې سِموٌ وو چه په معنیٰ د بلندئ او د اوچت والي سره دے، نو که مشتق شي د وسم نه نو معنیٰ لغوي د اسم به علامه شي او که مشتق شي د سموٌ نه نو معنیٰ لغوي د اسم به اوچت والے شي، او وجه د تسميه د اسم اصطلاحي په اسم سره به روستو راشي ان شاء الله تعالیٰ او تحقيق د لفظ د الله به په الحمد لله کښې راشي،

قوله الرحمٰن الرحيم په دې کښې اختلاف دے بعض وائي دا صيغو د مبالغې دي او بعض وائي چه دا صيغې د صفت مشبهه دي لکن غوره دا ده چه دا صيغې د صفت مشبهه دي ځکه چه صفت مشبهه دلالت کوي په دوام او ثبات باندے او دا صفتونه د الله هم دائمي دي الله لره، نو صفت مشبهه مناسب دے دې مقام سره

او چه معنیٰ د الرحمٰن الرحيم، داشي چه عام مهربانه دے او خاص مهربانه دے نو مطلب دا دے چه عام مهربانه دے په دنيا کښې په مسلمانانو او کافرانو ټولو باندے او خاص مهربانه دے په آخرت کښې په مسلمانانو باندے۔

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ، الحمد مبتدا دے او لله، جار مجرور په اعتبار د متعلق سره چه ثابتٌ دے ورله خبر دے، نو معنیٰ دا ده چه ټول صفتونه د کمال په ټوله زمانه کښې د ټولو مخلوقاتو نه ثابت دي خاص الله لره، پس په دے جمله کښې تعميمات اربعه او دوه تخصيصه دي هرچه دي تعميمات اربعه ۱ تعميم د محمود دے ۲ تعميم د زمانے دے ۳ تعميم د حامد دے ۴ تعميم د متعلق دے،

هرچه دي دوه تخصيصه نو ۱ تخصيص د مورد دے چه لسان دے دوئم تخصيص د حمد په الله پورے، تعميم د حمد معلوميږي د الف لام نه ځکه چه الف لام يا استغراقي دي او يا جنسي دي، او الف لام استغراقي يا جنسي دلالت کوي په عموم باندے او تعميم د زمانے معلوميږي د جملۀ اسميۀ نه ځکه چه جمله اسميه دلالت کوي په دوام او استمرار باندې په خلاف د جملۀ فعليۀ نه ځکه چه جمله فعليه دلالت کوي په تجدد او حدوث باندے فان قيل چه ته وائي چه جمله اسميه دلالت کوي په دوام او استمرار باندې نو نقض دے راغلے په زَيْدٌ قَائِمٌ باندے ځکه چه دا جمله اسميه ده او حال دا دے چه دلالت نه کوي په دوام او استمرار

حُکه چه مفاد ده دے جملے نفس ثبوت ده قیام دے ده پاره ده زید نه ثبوت په طریقے
ده دوام سره قلنا چه نفس جمله اسمیه دلالت په دوام او استمرار نه کوی بلکه دلالت
هله کوی چه معدوله او گرځی ده جملے فعلیے نه یا ورسره بله څه قرینه راشی کمافی
حاشیة البیضاوی ، ان الجملة الأسمیة بمجردها لاتدل علی الدوام والثبوت
بل مع انضمام العدول وغیره تفیدهما ، ص۶ حاشیه سنه ۱ ،
او تعمیم ده حامد معلومیږی ده عدم ذکر ده حامد نه حُکه چه تخصیص په هله وے
په یو خاص حامد پورے چه خاص حامد ذکر شوے وے لکه داسے ئی وئیلی وے
الحمد من الانس یا من الجن یا من الملائکة ، او تعمیم ده متعلق معلومیږی
ده مفهوم ده حمد نه حُکه چه په تعریف او مفهوم ده حمد کښی داخبره ذکر ده
چه برابره خبره ده چه په مقابله ده نعمت کښی وی او که نه وی ، کما سیجئ فی تعریف الحمد
انشاء الله تعالی ، او هر چه دی تخصیص نو تخصیص ده حمد په الله پورے شو دا معلومیږی
ده لام نه په لله کښی ، حُکه چه دا لام جاره دے او لام جاره راځی ده پاره ده اختصاص
ده شئ په مدخول خپل پورے لکه وائی په شرح مأة عامل کښی واللام للاختصاص
او لام ده حروفو جارو نه راځی ده پاره ده اختصاص ده شئ په مدخول خپل
پورے خو یا په طریقے ده تملیک سره وی لکه المال لزید او یا به نفس اختصاص
وی بغیر ده تملیک نه لکه الجل للفرس ،
او تخصیص ده مورد ده حمد هم معلومیږی ده تعریف ده حمد نه حُکه چه په تعریف
ده حمد کښی راځی چه هو الثناء باللسان نو ځائی ورود ده دے خاص لسان دے
پس ده هغے نه ذکر کړه داخبره ، چه مصنف رح شروع ده کتاب کړے ده په الحمد
لله سره ده څلورو وجوه نه ، اول ده پاره ده موافقت ده کتاب الله سره دویم ده
پاره ده موافقت ده کتابونو ده سلفو سره دریم ده پاره ده اداء کولو ده هغه شکر چه
واجب شوید ے په مصنف رح په مقابله ده یو نعمت کښی چه هغه علم دے څلورم
ده پاره ده عمل کولو په هغه حدیث باندے چه راغلید ے په باره ده حمد کښی چه قول
ده رسول الله ص دے کل امر ذی بال لم یبدأ فیه بحمد الله فهو اقطع
واجذم او کما قال علیه السلام ،

سوال په یو حدیث کښې راځي چه په کوم کار شروع په بسم الله او نشي نو هغه کار نقصاني وي او په بل حدیث کښې راځي چه په کوم کار شروع او نشي په الحمد لله نو هغه نقصاني وي نو دا خو تعارض راغی او دا قاعده ده چه اذا تعارض الدلیلین ولا ترجیح لاحدهما فتساقطا نو په کار ده چه دواړه ساقط شي، جواب منم خو دا هله چه ترجیح یو دلیل لره په بل نه وي او دفع د تعارض ممکن نه وي او دلته خو دفع د تعارض ممکن ده په دے شان سره چه حدیث د بسم الله حمل دے په ابتداء حقیقي بانددے او حدیث د الحمد لله حمل دے په ابتداء اضافي بانددے، یا حدیث د الحمد لله حمل دے په ابتداء عرفي بانددے، یا دواړه حدیثونه حمل دي په ابتداء عرفي بانددے، پس د دینه ابتداء حقیقي دیته وائي چه مقدم وي په مقصود او غیر مقصود بانددے، او ابتداء اضافي دیته وائي چه تقدم د شئ راشي په شئ آخر بانددے اگرچه مسبوق بشئ وي او ابتداء عرفي دیته وائي چه تقدم د شئ راشي په مقصود بانددے اگرچه مسبوق بشئ وي،

او پس د فکر نه معلومیږي د دے جواب نه جواب د هغه اعتراض چه واردیږي په دے مقام کښې هغه اعتراض دا دے چه تا څو وئیل چه شروع د کتاب یئ او کړه په الحمد لله سره نو شروع خو په الحمد لله سره نه ده شوے ځکه چه مخکې د الحمد لله نه بسم الله ذکر ده،

قوله الحمد لله، الحمد مرفوع دے ځکه چه مبتداء واقع شویده په ترکیب کښې او مبتداء مرفوع وي،

او الحمد په اصل کښې حمدٌ وو چه کله په اول کښې الف لام راغلو نو تنوین ساقط شو په الف لام سره ځکه چه الف لام دلالت کوي په تعریف او تنوین دلالت کوي په تنکیر او په مابین د تعریف او تنکیر کښې منافات ده نو الحمد شو او حمد صیغه د مصدر ده د حَمِدَ یَحْمَدُ حمداً نه حمد په لغت کښې صفت کولو ته وایي ...

ته وائی او په اصطلاح کښې هو الثناء باللسان علی قصد التعظیم سواء کان فی مقابلة النعمة اولا یعنی حمد صفت کول دی په ژبه په قصد د تعظیم سره برابره ده چه په مقابله د نعمت کښې وی او که نه وی -

او شکر صفت کول دی چه په مقابله د نعمت کښې وی برابره خبره ده چه په ژبه وی او که په غیر د ژبې وی یعنی په قلب یا په نورو جوارحو سره وی ، نو په مابین د حمد او شکر کښې عموم خصوص من وجه دے په دے شان سره چه حمد عام دے په اعتبار د متعلق سره او شکر خاص دے په اعتبار د متعلق سره او په اعتبار د مورد سره حمد خاص دے ځکه چه مورد د دے خاص لسان دے او شکر عام دے په اعتبار د مورد سره ځکه چه د شکر د پاره مورد خاص لسان نه دے نو من وجه حمد عام شو او شکر خاص شو او من وجه شکر عام شو او حمد خاص شو نو عموم خصوص من وجه راغلو او هر هغه دوه څیزونه چه په مابین د هغوئ کښې عموم خصوص وی من وجه نو هغه درې ماده غواړی یو ماده اجتماعی او دوه مادے افتراقی یو ماده افتراقی د یو جانب نه او بله د بل جانب نه نو ماده اجتماعی چه حمد هم وی او شکر هم وی لکه صفت کول شو په ژبه باندی په مقابله د نعمت کښې . نو دا حمد هم دے ځکه چه باللسان دے او شکر هم دے ځکه چه په مقابله د نعمت کښې دے او ماده افتراقی چه حمد وی او شکر نه وی لکه صفت کول شو په لسان چه په مقابله د نعمت کښې نه وی نو دا حمد دے ځکه چه باللسان دے لکن شکر نه دے ځکه شکر خو هغه صفت کول دی چه په مقابله د نعمت کښې وی او دا په مقابله د نعمت کښې نه دے دریم ماده افتراقی چه شکر وی او حمد نه وی لکه صفت کول شو په مقابله د نعمت کښې بغیر د لسان نه .

قوله لله ، لله مجرور دے ځکه چه په اول کښې ئے لام داخل دے د حروفو جارو نه او حروف جر په مدخول خپل کښې عمل د جر کوی ، پس په لفظ د الله کښې دوه مذهبه دی یو مذهب د سیبویه دے او بل مذهب د نورو نحاتو دے ، مذهب د سیبویه دا دے چه په دیکښې تغیر نه دے داخل او دغه شان اسم موضوع بر اُسها دے او تغیر په کښې ځکه نه راځی چه دا اسم دے د پاره د هغه ذات واجب الوجود چه

چه مستجمع دے جمیع صفاتو دۀ کمال لره او منزه دے دۀ تغیر او دۀ نقصان نه نو هغه ذات
کښې تغیر نۀ راځی نو په اسم کښې به هم تغیر نۀ راځی ، او بعض نحات وائی چه چونکه دا
لفظ عربي دے او په لفظ عربي کښې په قواعدو نحویه او صرفیه بره تغیر راتلے شی ،
نو وائی دا په اصل کښې اِلٰهٌ وُو ، بیا همزه حذف شوه خلاف القیاس او په عوض د همزه کښې
په اول کښې الف لام راوړے شو او تنوین ساقط شو په الف لام او سره ځکه چه مابین د
دوئ کښې منافات دے کما مرّ - نو اَللّٰهُ شو بیا دوه حرفه د یو جنس نه راغلۀ اول ساکن
وُو او ثاني متحرک وُو اول مدغم شو په ثاني کښې وجوباً ځکه دا قاعده ده چه دوه حرفه د یو جنس
نه راشی اول ساکن وی او ثاني متحرک وی نو ادغام په کښې وجوباً کیږی برابره خبره ده چه په کلمه واحد
کښې وی او که په کلمتینو کښې وی نو اللّٰهُ شو ،

یا اللّٰهُ په اصل کښې اِلٰهٌ وُو په اول کښې الف لام راوړے شو ځکه د حذف د همزے نه او تنوین
ساقط شو نو اَلْاِلٰهُ شو بیا همزه متحرک ما قبل حرف صحیح ساکن حرکت دۀ همزه نقل شو ما قبل حرف
صحیح ساکن ته (چه لام دے) او همزه حذف شوه جوازاً په شان د یَسَلُ نو اَلِلٰهُ شو - بیا دوه
حرفه د یو جنس نه راغلۀ دواړه متحرک وُو حرکت د لام اول ساقط شو او لام اول مدغم شو
په ثاني کښې جوازاً - ځکه دا قاعده ده چه دوه حرفه متجانسین جمع شی او دواړه متحرک وی
او په کلمتین کښې وی نو اول ساکن کولے شی او مدغم کولے شی په ثاني کښې جوازاً نو پس دۀ ادغام
نه اللّٰهُ شو ، رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ : دا په منزله دۀ دلیل دے دۀ پاره دۀ ما قبل یعنی حمد و نه اللّٰهُ
لره ځکه دی چه اللّٰه تربیت کونکے دۀ ټول عالم دے - او رَبِّ ځکه مجرور دے چه دا صفت واقع
شوے دے د پاره د اللّٰه او اللّٰه مجرور وُو نو دا هم مجرور شو ځکه چه صفت تابع وی د موصوف
خپل په اعراب کښې نو که موصوف مرفوع وی نو دا به هم مرفوع وی او که موصوف مجرور وی
نو دا به هم مجرور وی او که موصوف منصوب وی نو دا به هم منصوب وی ،

او په صیغه د رب کښې درے احتمالات دی یا صیغه د مصدر ده او یا صیغه د اسم فاعل ده
او یا صیغه د صفت مشبهه ده - که صیغه د مصدر شی نو په اصل کښې رَبْبٌ وُو په وزن
د فَعْلٌ بیا دوه حرفه د یو جنس نه راغلۀ اول ساکن وُو او ثاني متحرک وُو نو اول
مدغم شو په ثاني کښې وجوباً نو رَبٌّ شو -

سوال :- چه صیغه ده مصدر نه صحیح کیږی ځکه چه دا صفت دے نه پاره ده الله او صفت
حمل وی په موصوف باندے اودلته حمل نه صحیح کیږی ځکه چه لازمیږی حمل ده صرف وصف
په ذات مع الوصف باندے او حمل ده صرف وصف په ذات مع الوصف باطل دے ځکه چه
لازمیږی کذب ځکه چه معنیٰ به دلته داشی چه الله پالنه ده عالم ده او حال دا دے چه الله
خو پالنه نه ده بلکه پالونکے دے - الجواب، چه دا صیغه ده مصدر شی نو حمل په الله باندے
مبالغة دے یعنی هرکله چه په الله کښ وصف ده ربوبیت ډیر زیات وو نو گویا دا سے شو لکه
عین ربوبیت او حمل مبالغة دا سے دے لکه په زیدٌ عدلٌ او هدیً للمتقین کښ چه حمل مبالغة
دے ځکه چه زید خو عدل نه دے بلکه کۀ وی نو عادل به وی لکن هرکله چه دا صفت ده عدل
په کښ ډیر زیات وو نو گویا که چه په خپله عدل وی او هم دا رنگه په هدیً للمتقین کښ حمل
ده هدیً مبالغة دے ځکه چه قرآن خو هدایت نهٔ دے بلکه هدایة یو معنیٰ مصدری ده
په مابین ده طرفین کښ او قرآن هادی دے لیکن هرکله چه دا قرآن کامل هدایة والا
کتاب وو نو دا سے شو لکه چه دا عین هدایة وی ،
او که صیغه ده اسم فاعل شی نو بیا دا په اصل کښ رابِبٌ وو ځکه چه دا ثلاثی مجرد دی او اسم فاعل
ده ثلاثی مجرد په وزن ده فاعلٌ راځی لکه ناصرٌ ضاربٌ مانعٌ وغیره بیا الف حذف شو تخفیفاً
خلاف القیاس نو رَبِبٌ شو بیا دوه حرفه ده یو جنس نه راغلهٔ یعنی دوه بیگانی - دواړه
متحرک وو اول ساکن شو او مدغم شو په ثانی کښ وجوباً کما مرَّ نو ربٌّ شو ،
او که صیغه ده صفت مشبه شی نو بیا په اصل کښ رَبِیبٌ وو په وزن ده فَعِیلٌ یاء حذف شوه
ده پاره ده تخفیف خلاف القیاس نو رَبِبٌ شو بیا دوه حرفه ده یو جنس نه راغلهٔ او دواړه
متحرک وو اول ساکن شو او مدغم شو په ثانی کښ وجوباً نو ربٌّ شو - العٰلمین -
دا اسم مجرور دے خو صیغه ده جمع مذکر سالم ده او په حالت جری کښ ده جمع مذکر سالم (ی)
راځی او دا مجرور ځکه دے چه دا مضاف الیه واقع شوی دے ده پاره ده رب او مضاف الیه مجرور
وی ځکه چه مضاف ده عوامل قیاسیو نه دے په مضاف الیه خپل کښ عمل ده جر کوی او بیا
ده دے وجه نه چه په دستوره مضاف نه حرف جر مقدر دے او حرف جر په مدخول خپل
کښ عمل ده جر کوی ، پس عالمین جمع ده عالم ده په فتحه ده لام سره او عالم ما سوی ده الله ته

وائی او دے ماسوٰی دہ اللہ تہ عالم ځکه وائی چه عالم مشتق دے دۀ علم نه او عَلَمْ نخښ ته او نشانے
ته وائی او دا ماسوٰی دہ اللہ تمام مخلوقات هم علامه دہ په وجود دۀ اللہ تعالیٰ باندے ۔

سوال :۔ چه هر کله عالم ماسوٰی دہ اللہ ته وائی نو جمعیت دہ عالمین په (ی) او په (ن)
سره نه صحیح کیږی ځکه چه جمع په واو نون سره او په یاء او نون سره خاص دۀ پاره دۀ ذوی
العقول راځی او په ماسوٰی دہ اللہ کښی غیر ذوی العقول هم شته لکه ۔ فرس ۔ حجر ۔ شجر وغیره شو ۔

جواب :۔ چه دا جمع تغلیباً دہ یعنی غلبه ورکړے شوی دہ ذوی العقول له په غیر ذوی
العقول دہ وجے دہ شرافت دۀ ذوی العقول نه نو غیر ذوی العقول هم فرض شوی دی افراد دۀ
ذوی العقول نه او جمع دۀ ذوی العقول خو په واو او نون ، او یاء او نون سره راځی نو جمع
شو په یاء او نون سره او دا په شان دہ دے قول دہ اللہ تعالیٰ دے چه وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرَانَ
الَّتِي أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَصَدَّقَتْ بِكَلِمَاتِ رَبِّهَا وَكُتُبِهِ وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ ۔ تحریم ۔
نو حضرت مریمہ خو ښځه وه نو دہ تابع دارانو سره نه وه بلکه دہ تابع دارانو ښځو نه وه
لیکن تابع دار سړی هم وو او ښځے هم وے نو غلبه ورکړے شوه مذکورو په مؤنث باندے
دہ وجے دہ شرافت دہ مذکورو نه نو جمع کړے شو په یاء او نون سره نو قانتین او وئیلے شو ،

سوال ۔ چه هر کله عالم ماسوٰی دہ اللہ ته وائی نو جمعیت دۀ عالمین په یاء او نون سره نه صحیح کیږی
ځکه چه په یاء او نون سره راځی دہ پاره دۀ مذکر او په ماسوٰی دہ اللہ کښی خو مؤنث هم شته ۔

جواب :۔ چه دا جمع تغلیباً دہ یعنی غلبه ورکړے شوی دہ مذکورو له په مؤنث باندے دۀ وجے دۀ
دہ شرافت دہ مذکر نه نو جمع کړے شوے په جمع دہ مذکر سره ۔

سوال :۔ چه جمعیت دہ عالمین صحیح نه دے ځکه چه لفظ هله جمع کیږی چه مقصود
دلالت وی په افرادو ټولو باندے او مفرد په ټولو افرادو دلالت نشی کولے او دلته مفرد چه
العالم دے دلالت کوی په ټولو افرادو باندے ۔ جواب ، چه عالمین جمع شوی دے
دہ پاره دۀ اشارت کثرت دہ انواع دہ عالم ته ۔ والعاقبة للمتقین دا واو حرف
عاطف دے او العاقبة للمتقین جمله عطف دہ په الحمد للہ باندے نو مطلب دا دے چه
حمدونه ثابت دی اللہ له او انجام غوره خاص پرهیزګارانو له دے او دا والعاقبة للمتقین
جمله معترضه دہ او جمله معترضه هغه ته وائی چه راوړے کیږی په مابین دۀ دوؤ کلامین

کېږي چه نه یٔ مناسبت ده ماقبل سره وی اونه ئې مناسبت دهٔ مابعد سره وی خو صرف دا ور سره کېږي ده پاره ده یو غرض اودلته غرض د دینه دفع ده یو وهم ده چه هغه وهم پیدا کېږي دهٔ ماقبل رب العالمین نه وهم دا وُو چه تاؤیل چه الله پالونکې دهٔ ټول عالم دے نو جنت ورکول داهم یو قسم پالنه ده نو پهٔ عالم کښې خو کافران هم داخل دی نو هغوئی له به هم جنت ورکوی او حال دا دے چه داخبره صحیح نه ده نو مصنف رح راغلی او جواب ئې اوکړو چه والعاقبة للمتقین غوره انجام دهٔ پاره ده متقینو دے ـ

سوال :- چه عاقبت وائي انجام ته نو انجام خو کافرانو له هم شته یو ائې پهٔ مسلمانانو پورې خاص نهٔ دے نو تخصیص د دے په متقین پورې صحیح نهٔ دے ـ جواب :- چه دلته عبارة په حذف ده مضاف سره دے نو اصل دا رنګې وُو چه خیر العاقبة للمتقین الخ نو خیر مضاف وُو او عاقبت مضاف الیه وُو بیا مضاف حذف شو او مضاف الیه قائم شو په مقام ده مضاف باندے نو معرب شو پهٔ اعراب دهٔ مضاف سره یعنی مرفوع شوُو بنا بر ابتدا ائیت نو والعاقبة للمتقین شوُو حاصل ده جواب دا دے چه دلته تخصیص پهٔ متقین پورې دهٔ مطلق انجام نهٔ دے شوے بلکه تخصیص په پرهیزګارانو پورې ده خاص قسم انجام شوید دے چه هغه خاص بهتر انجام دے اوهغه خاص دے پهٔ مؤمنانو پورې ـ

قوله والعاقبة :- عاقبة صیغه ده مصدر ده عَقَبَ یَعْقِبُ عَقْبًا وعَاقِبَةً نه او مصدر په وزن ده فاعلهٔ راځي په کلام دهٔ عربو کښې لکه کاذبةٌ شافیةٌ شوُو ـ قوله للمتقین متقین صیغه ده جمع سالم مذکر اسم فاعل ده دهٔ باب افتعال ـ اِتَّقٰی یَتَّقِیْ اِتِّقَاءً نه په اصل کښې مُوْتَقِیِیْنَ وُو کره په (ی) ثقیله وه او غور ځیده التقاء ده ساکنین راغله پهٔ مابین دهٔ یائین کښې علی غیر حدّه اول ده ساکنین نه مدّه وُو او غور ځیده ځکه دا قاعده ده چه التقاء ده ساکنین علی غیر حدّه راشي او اول ده ساکنین نه مدّه وی نو مدّه حذف کېږي ده پاره ده دفع دهٔ التقاء ئې ساکنین په خلاف ده غیر مدّه نه ځکه که غیر مدّه وی نو بیا نهٔ حذف کېږي ځکه چه ماقبل کښې دا سے حرکت نشته چه دلالت اوکړي پهٔ دے محذوف باندې بلکه چه غیر مدّه وی ـ نو دفع ده التقاء ساکنین کولے شي په تحریک سره نو بیا اکثر حرکت حرف ساکن اول له ورکولے کېږي او پهٔ طریقے ده قلت سره حرکت ثانی له هم ورکولے کېږي او پهٔ حرکتونو

کښې اصل حرکت په تحریک ده ساکن کښې کسره ده او فتحه او ضمه ده وجه دهٔ عارض نه ورکولے کیږی ځکه خفت شو په فتحه کښې او ضمه شی دهٔ وجے دهٔ واو ضمیر نه - وتفصیله فی الصرف
نو هر کله چه (ی) حذف شوه نو مُوتقِین شو بیا واو بدل شو په (ت) سره ځکه دا قاعده ده هر هغه واو او یاء چه واقع شی په ځائ دهٔ فاء کلمه دهٔ باب افتعال کښې نو هغه بدلیږی
په (ت) سره - ځکه چه تاء ده حروفو شدید ؤنه ده او واو یاء دهٔ حروف لین نه دی
او په مابین ده شدت او لینت کښې مناقات دے خو داعلت ده پاره دهٔ نفس ابدال دے او هر
چه دے خاص ابدال په (ت) سره نو واو خاص په (ت) سره ځکه بدلیږی چه داو او
قریب المخرج دی ځکه چه واو ده حروفو شفویوُ نه دے او تاء اداکیږی ده سَرُ ده ژبے نهٔ
او سَرُ ده ژبے قریب دے شفت ته او ده دے وجے نه چه ده واو او تاء په مینځ کښې مناسبت
دے ده قرب دهٔ مخرج نه نو ډیر کرته تاء بدل راځی ده واو نهٔ په کلام دهٔ عربو کښې لکه تُجَاهٌ
تُرَاثٌ تُکْلَانٌ چه په اصل کښې وُجَاهٌ وُرَاثٌ او وُکْلَانٌ وُو - او هر چه دے ابدال ده یاء خاص
پهٔ (ت) سره نو دا دهٔ وجے ده حمل نه دے په واو باندے ځکه چه واو او یاء شریک دی.
پهٔ حروف علتیو کښې او حروف لینت کښې - هر کله چه واو په مُوتقِین کښې بدل شو په تاء سره
نو مُتْتَقِیْنَ شو بیا دوهٔ حرفه ده یو جنس نه جمع شو اول ساکن ثانی متحرک اول مدغم
شو پهٔ ثانی کښې وجوبًا کما مرّ قاعدته - نو مُتَّقِین شو - او متقی هغه چاته وائی چه
اتیان کوی په اوامر و دهٔ الله او ځان ساتی ده مخالفت ده الله نه -
فائده :- ځکښې چه مونږه وئیلی دی چه پهٔ متقین کښې (ی) اوله حذف شو یده دهٔ وجے
دهٔ التقاء دهٔ ساکنین نه نو دا بناء دے پهٔ مذهب دهٔ اخفش او ده اتباعُ ده هغه -
او مذهب دهٔ سیبویه صاحب دادے چه دوئیمه (ی) حذف شو یده - اخفش او اتباع
ده هغه وائی چه اوله به حذف کیږی ځکه چه ثانی علامه ده او والعلامة لا تحذف - یعنی -
علامه نه حذف کیږی او سیبویه وائی چه دوئیمه به حذف کیږی ځکه چه دا زائده ده
والزائدة اولی با الحذف - زائد حذف کول ډیر مناسب دی پهٔ خلاف دهٔ اول نه ځکه
چه هغه ده نفس کلمه نه ده نو اصلی ده والتفصیل فی کتب الصرف -

والصلوٰة والسلام علیٰ خیر خلقه محمد - او خیر کثیر او سلامتیا دے نازل وی پهٔ بهتر ده

ده صلوٰقاتو ده دے الله بانددے چه محمدم دے - مخکښې مصنف رح حمد ده الله ذکرکړو نو روسته ده تعریف دُ الله نه صلواة اوسلام ذکرکړو په نبی علیه السلام باندے ځکه چه الله منعم حقیقی وُو نو ده هغه تعریفونه بیا نول پکار وُو نو چه هغه بیان شو نو روستو ده هغې نه ده نبیءم ذکرضروری شو ـ ځکه نبی علیه السلام منعم مجازی. دے ده پاره ده اُمت -

قوله والصّلواة :- صلواة په لغت کښ په څلورو معنی کانو سره راغلے دے یو په معنیٰ ده دعا، دوئیم په معنیٰ ده رحمت سره دریم په معنیٰ ده استغفار او څلورم په معنیٰ ده تسبیح اوده تهلیل - اوتعین ده خاص معنیٰ به په قرائنو سره کیږی. نوکه نسبت ئی شویو الله تعالیٰ ته نو په معنیٰ ده رحمت سره به وی - اوکه نسبت ئے شوے وُو بندگانو ته نو په معنیٰ ده دعاء غوښتو سره به وی - اوکه نسبت ئے شوے وُو ملائکو ته نو په معنیٰ ده استغفار سره به وی. اوکه نسبت ئے شوے وُو وحوشو او طیورو ته نو په معنیٰ ده تسبیح اوده تهلیل سره به ئې پس مطلب ده اِنَّ اللّٰهَ وَمَلَآئِكَتَهُ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ - دا دے چه بیشکه الله رحمتونه کوی په نبی علیه السلام باندے او ملائکې استغفار غواړی ده پاره ده هغه اوده صلوا علیه مطلب دا دے چه تاسو هغه له دعاء غواړئ لکه په درود کښے وئیلے کیږی اللهم صل علیٰ محمد الخ اوپه اصطلاح کښے ارکان مخصوصه دی په اوقاتو مخصوصو کښے.

پس ذرے کړه داخبره :- چه صلواة په اصل وضع کښے موضوع دے ده پاره ده دعاء بیا اهل شرع نقل کړے دے ارکان مخصوصو ته اودیته منقول شرعی وائی - اومنقول شرعی هغې ته وائی چه ناقل ده هغه اهل شرع وی - اودیو منقول ده عرف عام دے اوبل منقول ده عرف خاص دے - منقول ده عرف عام هغې ته وائی چه ناقل معنیٰ اصطلاحی ته عرف عام والا وی لکه لفظ ده دَابَّةٌ شو چه په اصل کښے وضع کړے شوے دے ده کل مَا يَدِبُّ عَلٰى وَجْهِ الْاَرْضِ ده پاره بیا عرف عام والاؤ نقل کړیدے ذوات ده قوائمو اربعو ته. اومنقول ده عرف خاص هغې ته وائی چه ناقل ده هغې اصل ده عرف خاص وی لکه فعل شو چه په اصل کښے موضوع دے ده پاره ده حدث بیا نقل کړے دے عرف خاص والاؤ چه نحاتی دی کلمې مخصوصې ده عربو ته چه کلمةٌ دلت علیٰ معنیً فی نفسها مقترن باحد الازمنة

الثلاثة دے (ترجمه) فعل یوه کلمه ده چه دلالت کوی په هغه معنیٰ چه په نفس ده دے کښے وی یعنی په دلالت کښے په معنیٰ خپله پابند ے محتاجه نه وی ضم ده کلمے اخری ته او مقترن وی.
په یو زمانه پورے ده از منو ثلاثو مخصوصو نه چه ماضی حال. استقبال دے۔

پس ده هغے نه صلواة په اصل کښے صَلَوَةٌ وو واو متحرک ماقبل قرینه مفتوح وو واو بدل شو په الف سره نو صلوٰةٌ شو۔ نو بیا په اول کښے الف لام داخل شو نو تنوین ساقط شو ده وجے ده منافات نه په مابین ده دواړو کښے کما مَرَّ۔ او صلواة صیغه ده مصدر ده او اسم مصدر هغے ته وائی چه دلالت کوی په معنیٰ مصدری۔ یعنی په حدث او اشتقاق ده افعالو قرینه نه کیږی او مصدر هغے ته وائی چه دلالت په حدث باندے کوی او اشتقاق ده افعالو قرینه کیږی ۔

فان قیل ◄ چه صلواة دعا ده او صله ده دعاء چه کلمه الیٰ راشی نو مراد قرینه دعاء ده خیر وی لکه ویلے کیږی دعا له۔ ای دعاء له خیراً او کله چه صله ئی علیٰ واقع شی نو مراد قرینه دعا ده شر وی یعنی خیر ے کول لکه ویلے کیږی دعا علیه۔ ای دعاء علیه شراً او دلته صله ده صلواة علیٰ واقع شویده نو داخو لازم شوه دعاء ده شر ده پاره ده نبی علیه السلام۔

قلنا :- چه دلته صله ده صلواة علیٰ نه ده واقع شوے بلکه علیٰ جار سره ده خپل مجرور نه ظرف مستقر متعلق دے ده نَزَلَتْ یا ده نَازِلَةٌ سره بنا بر اختلاف او معنه نزلت یا نازلة صله ده علیٰ واقع شویده۔ او نقول :- چه دا قاعده په دعاء کښ ده چه صله ئے علیٰ واقع شی نو په معنیٰ ده دعاء ده شر سره وی او صلواة خو عین دعاء نه ده بلکه مرادف دے ده دعاء نو دا قاعده نه په دعاء کښے دا لازم نه ده چه په صلواة کښے به هم دغه رنګ وی۔

فائده. مرادفین هغه لفظونو ته ویلے کیږی چه معنیٰ ئی یوه وی۔ او دلته مرادفین حکمه وائی چه مرادف معنی چه یو کس په سور لی سورشی روسته ده بل نه لکه حدیث کښی صحابی فرمائی کنت ردیف رسول الله ص او دا لفظونه هم متشابه شویدی ده هغے سره حکمه دا سمه دی لکه په معنیٰ کښے چه الفاظ سواره شوی وی په یو بل پسے حکه تول په یو معنیٰ دال دی ---

قوله والسلام :- سلام صیغه ده اسم مصدر ده او مصدر حقیقی ده سه ماده تسلیماً راځی۔ پس سلام په اصل وضع کښ موضوع وو ده پاره ده یو ترخی ونے یعنی ده یو ترخے ونے (درخته) نوم وو لکه یو بانډے ټول اعرابی په بنا دیه باندے نو یو سړی ته ئے اول عرابی ووئ

چه السلام علیک نو هغه ورته وویل چه الجسجاس علیک نو هغه اعرابي ورته اوویل چه را
تا ماته څنګه جواب راکړو نو هغه ورته ووېل چه هما شجران متزان جعلت انت علیٰ واحرة
فجعلت علیک الاخری - یعني دا سلام او جسجاس دوه ترخې ونې دي تا اوګڅوله په ما باندې
یوه نو ما اوګرځوله په تا باندې بله - پس ده هغې نه بیا انسلاخ شوید ے دغه معنیٰ نه
او مستعملیږي په دریو معانیو سره یو په معنیٰ ده سلامتیا سره او دلته دا معنیٰ ظاهره ده دویم
په معنیٰ ده انقیاد سره نو بیا معنیٰ ده والسلام علیٰ رسوله دا ده چه والسلام ای الانقیاد واجب
علیٰ رسوله معنیٰ انقیاد حکم الله لازم دے په رسول ﷺ باندے دریم دا چه دا نوم دے ده اسماؤ
ده الله نه نو بیا معنیٰ ده والسلام علیٰ رسوله دا ده چه والسلام ای الله مداوم علیٰ حفظ رسوله
معنیٰ الله همیشه حفاظت کونکے دے ده خپل رسول - پس حاصل دا دے چه که معنیٰ ده سلامتیا
شي نو ده علیٰ نه مخکښې نزلت یا نازلة محذوف دے او چه په معنیٰ ده انقیاد شي نو ده علیٰ
نه مخکښې واجب یا لازم محذوف دے او چه اسم شي ده اسماء ده الله نه نو بیا مخکښې ده علیٰ
نه عبارت محذوف دے ای مداوم او ده علیٰ نه روسته او ده رسوله نه مخکښې عبارت محذوف
دے حفظ - نو تقدیر ده عبارة دارنګه دے والسلام مداوم علیٰ حفظ رسوله -
او دلته په کتاب کښې په ځاۍ ده رسول خیر خلقه دے نو معنیٰ اوله به دلته داسے وي چه
سلامتیا ده (افتونونه) دې نازل وي په غوره ده مخلوقاتو ده الله باندے چه محمد ﷺ دے
باقي دوه معاني دلته غیر ظاهر دي ځکه چه سلام عطف شوید ے په صلوٰة باندے او جار
مجرور روسته ذکر دے نو چه تقدیر دارا اوباسو چه نزلت یا نازلة نو ده صلوٰة او سلام
دواړو سره لګي او چه تقدیر دا راوباسے چه واجب علیٰ خیر خلقه یا مداوم علیٰ حفظ خیر خلقه
نو ده صلوٰة سره نه لګي فتامل ع

---

قوله خیر خلقه :- علیٰ ده حروفو جارونه ده په دے مقام کښې - او علیٰ صیغه ده ماضي هم
راځي ده علیٰ یَعْلُوْ عُلُوًّا فهو علیٌّ نه او علیٰ په اصل کښې عَلَوَ وو واو متحرک ماقبل ترینه مفتوح
وو نو واو بدل شو په الف سره نو علیٰ شو یَعْلُوْ په اصل کښې یَعْلُوُ وو په ضمه ده واو سره نو
ضمه په واو ثقیله وه او غورځیده نو یَعْلُوْ شو عُلُوًّا اصل کښې عُلُوْوًا وو بیا واو اول مدغم
شو په ثاني کښې نو عُلُوًّا شو - عَلِيٌّ په اصل کښې عَلِیْوٌ وو واو او یا جمع شول اول ساکن

ؤ واو ثانی متحرک وُ نو واو بدل شو په یا ؤ سره او یا په یا کښې مدغم شوه نو عَلِیٌّ شو۔
اَو خیر مجرور دے دَه هغه دَه علیٰ نه ځکه حرف جر په مدخول خپل کښې عمل دَه جر کوی
اَو خلقه۔ کښې خلق مضاف دے او (ہٗ) ضمیر مضاف الیه دے او دواړو مجرور دی خلقِ
مجرور لفظاً دے او (ه) ضمیر چه مضاف الیه دے هغه مجرور محلاً دے۔
ځکه چه ضمیر مبنی دے اعراب پکښې نشے راتلے۔ خلق هغو ځکه مجرور دے چه دا مضاف الیه
واقع شوید ے دَه پاره ده مضاف چه لفظ دَه خیر دے په ماقبل کښې او (ه) ضمیر ځکه
مجرور دے چه دا مضاف الیه واقع شوید ے د پاره ده خلق او مضاف الیه مجرور وی
فائده ÷ په ډیرو کتابو کښې په ځائ دَه خیر خلقه رسوله ذکر دے۔
پس رسول وزن فعول دے او وزن فعول په دوه معنیٰ کالو سره راځی یو په معنیٰ
ده فاعل سره لکه صَبُوْرٌ په معنیٰ دَه صابر سره او دوَیم په معنیٰ ده مفعول سره لکه حَلُوْبٌ
په معنیٰ ده محلوبٌ سره۔ یعنی لوشلے شوے دلته هم وزن فعول په معنیٰ ده مفعول سره دے
نو رسول په معنیٰ ده مرسول سره دے۔ یعنی فرستاده شده۔ او دا معنیٰ لغوی دَه رسول ده لنو
رسول ته رسول ځکه وائی چه دا هم لیګلے شوید ے ده طرف ده اللّٰه نه ده پاره دد ے
چه تبلیغ ده احکامو شرعیو اوکړی خلقو ته۔
اَو په اصطلاح کښې رسول دیته وائی چه انسان بعثه اللّٰه تعالیٰ الی الخلق لتبلیغ الأحکام الشرعیة
یا رسول په اصطلاح کښې من نزل علیه الوحی والملک سواء رأ الملک اولم یره۔
پس بعث فعل متعلق دے ده لتبلیغ الاحکام سره او ده الی الخلق سره متعلق نهٔ دے چه اعتراض
وارد شی په تعریف چه آدم؏ رسول وُو او حال دا دے چه تعریف دهغه شامل نهٔ دے ځکه چه
هغه خلقو ته نهٔ وُو لیګلے شوے ځکه چه په هغه وخت کښې خو خلق نه وُو موجود۔ پس چه بعث
فعل متعلق شی دَه دے قول سره چه لتبلیغ دے نو معنیٰ به دا شی چه رسول انسان دے چه
لیګلے دے اللّٰه تعالیٰ خلقو ته دَهٔ پاره دَهٔ تبلیغ دَهٔ احکامو شرعیو نو بناء په اول باندے تعریف
آدم؏ ته شامل دے او بناء په ثانی باندے تعریف شامل نهٔ دے ادم؏ ته ومن المباحث
فی هذا المقام بحث الفرق بین النبی والرسول لکنه لایلیق بهذا المختصر ولفظ الرسول ذکرته وان
لم یکن فی الکتاب۔ لفائدة المتعلمین وانه کثیر الوقوع فی الکتب۔

قوله محمد ۔ دا مجرور دے بنا پہ دے چہ بدل واقع شوید ے دۀ خیر خلقه نه او محمد
صیغه ده اسم مفعول ده دۀ باب تفعیل حَمَّدَ یُحَمِّدُ تحمیداً نه او دا اسم مفعول مستعمل دے ده پاره
ده مبالغے نو معنا داده چه ډیر صفت کړے شوے ۔

وآله اجمعین ۔ او صلواة او سلام دے نازل وی پۀ آل دۀ محمد م پہ ټولو باندے
آله کښ آل ځکه مجرور دے چہ دا عطف دے پۀ خیر خلقه باندے او هغه مجرور ؤو نو داهم
مجرور شو ځکه چہ معطوف تابع دے او معطوف علیه متبوع دے او تابع معرب کیږی پۀ
اعراب ده متبوع خپل سره ۔ او آل پہ دوه قسمه دے یو آل نسبی دے او بل آل حسبی دے آل
نسبی هغه دے چہ پہ هغو باندے صدقه اغستل حرام ؤو لکه اولاد دۀ عقیل رض او دۀ علی رض
او دۀ حارث رض ۔ او آل حسبی هغه دے چه صادقیږی پۀ هغه باندے دا قول دۀ نبی ع
کل تقیٍّ ونقیٍّ فهو آلی یعنی آل حسبی هر پرهیزګار ته ویلے کیږی ۔ پس تقی هغه دے چه
ځان ساتی دۀ حرامو نه او نقی هغه دے چه ځان ساتی دۀ حرامو او ده هغه څیزونو نه
چه پہ کښی شائبه ده حرامو وی ۔ او کله اطلاق ده آل خاص پۀ ازواج مطهراتو ده نبی علیه
السلام کیږی ۔

پس ده هغه پہ اصل دۀ آل کښے اختلاف دے ۔ بعض والی چه دا پہ اصل کښے اَوَلٌ ؤو او دلیل
پہ دے باندے تصغیر دۀ دے دی پہ اُوَیْلٌ سره ځکه چه تصغیر شئ رد کوی اصل خپل
ته نو چه پۀ تصغیر کښے دۀ همزه نه روستو واو راغے نو معلومه شوه چه دا آل هم پۀ اصل
کښے اَوَلٌ ؤو بیا واو متحرک ؤو پۀ حرکت لازمی سره او ما قبل دۀ دینه مفتوح ؤو واو بدل
شو پہ الف سره او دیته قاعده ده قال والی نو ده اَوَلٌ نه آل جوړ شو ۔
او بعض والی چه دا پۀ اصل کښے اَهَلٌ ؤو او دلیل پۀ دے باندے تصغیر دۀ دے دی
پہ اُهَیْلٌ سره ۔ بیا هاء بدل شوه پۀ همزه سره دۀ وجے دۀ قرب دۀ مخرج دۀ دوئی نه
ځکه چه دا دواړه دۀ حروفو حلقیو نه دی نو پہ ما بین دۀ دوئی کښے مناسبت دے نو
نو أَأْلٌ شو بیا همزه ساکن شوه او ما قبل ترینه به همزه مفتوح وه همزه ساکن بدل
شوه پہ الف سره وجوبًا ځکه دا قاعده ده هر هغه همزه چه ساکن وی او ما قبل ترینه
بله همزه متحرکه وی نو همزه ساکن بدلیږی وجوبًا پہ داسے حرف علت سره چه موافق

دهٔ حرکت دَهٔ همزه دهٔ ماقبل سره وی لکه اٰمَنَ اُوْجِبَ اِیْسِرْ شو نو دهٔ اُاُلْ نه آلَ جوړ شو اَوَال صیغه ده اسم جمع ده اسم جمع پهٔ درے قسمه ده یو قسم هغه ده چه دلالت په افرا د کوی او مفرد ولـه بالکل نهٔ وی لکه رَهْطٌ شو دویم قسم هغه دے چه مفرد ولړه وی لیکن ده خپل لفظ نه نهٔ وی لکه نسآء چه جمع دهٔ اِمْرَءَةٌ ده ۔ امرءةٌ معنیٰ یوه ښځه او نساء معنیٰ ډیرې ښځې او دریم قسم هغه دے چه مفرد ورله ده خپل لفظ نه هم وی لیکن جمع شوے وی خلاف القیاس لکه رکبٌ چه جمع دهٔ رَاکِبٌ ده **فـائـدة** ـ آل صیغه دهٔ صفت مشبه هم راځی دهٔ آل یَئُوْلُ اَوْلاً نه بمعنیٰ (بازگشتن) لکن پهٔ دے مقام کښے صیغه دهٔ صفت مشبه صحیح نهٔ ده۔

هرکله چه آل حسبی عام وُو صحابه کرام رضـ پکښے تول داخل وُو نو مصنف رحـ ذکر کړهٔ اصحابه او نه کړه ـ لیکن په ډیرو کتابونو کښے لفظ دهٔ اصحابه هم ذکر دے ځوکه آل یعنیٰ دهٔ آل حسبی شی نو ذکر ده اصحابه پس دهٔ آل نه بناء دے په تخصیص بعد التعمیم لکه څرنګه چه تخصیص بعد التعمیم شوید ے پهٔ دے قول دهٔ الله تعالیٰ کښے چه تَنَزَّلُ الْمَلَائِکَةُ وَالرُّوْحُ فِیْهَا بِاِذْنِ رَبِّهِمْ ـ دلته ذکر ده روح پس دهٔ ذکر دهٔ ملائکو نه تخصیص بعد التعمیم دے ځکه چه مراد دهٔ روح نه جبرئیل امین دے او هغه پهٔ ملائکو کښے داخل دے۔

پس اصحاب جمع دهٔ صاحب دهٔ بنا برخلاف القیاس یا جمع دهٔ صَحْبٌ دہ موافق القیاس ـ او صحابی هغه چا ته ویلے کیږی چه نبی م ئے لیدلی وی او ایمان ئے ورباندے راوړے وی او په خپل ایمان مرهم وی ـ **فان قیل** :- چه اصحاب خو جمع قلت ده او جمع قلت معنے ته وائی چه دلالت کوی په کمرهٔ لسو باندے او حال دا دے چه اصحاب کرام رضـ خو ده لاکهونه هم ډیر دی نو جمع قلت ویل صحیح نهٔ دی ۔ **قلنا** :- چه دا اګرکه جمع قلت ده لیکن پهٔ معنیٰ دهٔ جمع کثرت سره ده او جمع کثرت هم په معنیٰ ده جمع قلت سره راځی ـ چه جمع قلت په معنیٰ ده جمع کثرت سره وی لکه دغه اصحاب شو او چه جمع کثرت په معنیٰ ده جمع قلت سره وی لکه قروء شو په دے قول ده الله تعالیٰ کښے چه یَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْءٍ نو دلته قروء جمع کثرت ده لیکن په معنیٰ ده جمع قلت سره دے ځکه چه دلته اطلاق دهٔ قروء په دریو حیضونو باندے شوید ے او درے ده لسونه کم دی او دغه م لسونه کم افرادو

ده دلالت دَه پاره جمع قلت راځي او لفظ ده اصحابه اګرکه دلته ذکر نه وُو لیکن ده پاره ده فائده
دَه طالبانو مونږه دلته اولیکه ځکه په نورو کتابونو خطبو کښې ذکر دي - (تامل)

قوله اجمعین :- دا تاکید معنوي دے او غرض ده مصنف رح دَه دینه رد دے په روافضو
باندے ځکه چه هغوئے ده بعض صحابو صفتونه کوي او دَه بعض بد وائي نو مصنف رح په
هغوئے اشارةً رد اوکړو چه صحابه رض ټول غوره مخلوق دے او دَه صفت کولو لائق دي:
پس تاکید په دوه قسمه دے یو تاکید معنوي دے او بل تاکید لفظي دے - تاکید لفظي
تکرار دَه لفظ اول ته وائي حقیقةً وي لکه ضربت ضربت او که حکماً وي لکه ضربتُ ضربتَ دلته ضربت
اګرکه حقیقةً مکرر نه دے لیکن حکماً مکرر دے ځکه چه دا په حکم دَه دے قول کښې دے
چه ضربتُ ضربتُ - او تاکید معنوي هغه دے چه راشي په الفاظو معدودو و مخصوصو سره
چه هغه اته لفظونه دي - نفسٌ عینٌ کِلا وکِلتا کُلٌّ اجمعُ اکتعُ ابتعُ ابصعُ - او اجمعین
ده اجمع نه - صیغه ده جمع سالم مذکر اسم فاعل ده په حالت جري او نصبي کښې او په حالت
رفعي کښې اجمعون راځي -

اما بعد :- بعدُ ظرف دے دَه ظروفو مقطوعة الاضافة نه مضاف الیه دَه دے محذوف
دے الجملة المتقدمة نو معنیٰ داده هرچه دے پس دَه جملو درې ګونو ته چه بسمله حمدیه صلاتیه

ده قوله اما :- اما حرف شرط دے او قائم مقام دَه مهما دے پس په اما کښې اختلاف دے -
سیبویه وائي چه دا کلمه موضوعه بر اسها ده او څه تغیر پکښې نه دے راغلے ځکه چه دا حرف دے
او حروف خالي دي دَه قواعدو نحویو او صرفیو نه او خلیل رح وائي چه تغیر پکښې کیږي نو بیا بعض
وائي چه داپه اصل کښې مهما وُو بیا (ها) بدل شوه په همزه سره ځکه چه دا دواړه دَه حروفو
حلقیو نه دي نو مأما شو بیا قلب مکاني اوشو په میم دَه اولي او ده همزه کښې نو أمما شو بیا
دوه حرفه دَه یو جنس نه جمع شو اول ساکن وُو او ثاني متحرک وُو اول مدغم شو په ثاني کښې
وجوبًا نو امّا شو او بعض وائي چه داپه اصل کښې اِنْمَا وُو بیا نون بدل شو په میم سره
او میم مدغم شو په میم کښې نو اِمّا شو او کسره ده همزه بدل شوه په فتحه سره دَه پاره ددے
چه لازم نشي التباس ده اِمّا عاطفه سره نو اَمّا شو -

قوله بعد، بعد ظرف دے او په دیکښې درې حالتونه راځي یو دا چه مضاف الیه ورسره

په لفظ کښې ذکروی لکه لله الامر من قبلِ کل شيءٍ ومن بعد کل شيءٍ دوئم حالت دادے چه مضاف الیه ده لفظ نه حذف وی او په نیت کښې مراد وي لکه په دے قول ده مصنف کښې چه اما بعد ای اما بعد الحمد الثلاثة اودریم حالت دادے چه مضاف الیه ده لفظ نه هم حذف وی او په نیت کښې هم مراد نهٔ وی یعنی محذوف نسیاً منسیاً وی لکه ربَّ قبلٍ خیرٍ من بعدٍ - دلته مضاف الیه محذوف دے نسیاً منسیاً - نو په دے دوو حالتونو کښې به دا معرب وی یعنی په حالت اولی او ثالث کښې ځکه چه علت ده بناء پکښې نشته چه مشابهت دے ده حرف سره او په دوئم حالت کښې چه مضاف الیه محذوف وی ده لفظ نه او منوی وی په نیت کښې - مبنی به وی ځکه چه دا مشابه دے ده حرف سره په احتیاج کښې لکه حرف محتاجه دے په دلالت کولو کښې ضم ده کلمې اُخرې ته نو دا هم محتاجه دے هغه محذوف مضاف الیه ته - ځکه چه هغه په لفظ کښې نشته او مقصود دے خو په دے حالت کښې چه مبنی کیږی نو خاص په ضمے سره به وی ځکه چه دلته نقصان راغلے دے په سبب ده حذف ده مضاف الیه سره نو مبنی کیږی په ضمے سره ده پاره ده دے خیرے چه دا ضمه جبیره شی مافات لره ده مضاف الیه نه یعنی هغه نقصان لره چه راغلیدے ده حذف ده مضاف الیه نه او خاص ضمه به جبیره ځکه کیږی چه ماسوا ده ضمے نه یو سکوت دے او یو حرکت فتحه ده او یو حرکت کسره ده او دا دریواړه جبیره نشی کیدی هرچه دے سکون ځکه سکون عدم محض دے نو جبیره به څنګه شی - او هرچه ده فتحه او کسره نو هغه حرکتونه ضعیفه دی. او ضمه جبیره کیدلے شی ځکه دا حرکت قویه دے -

بدان :- دا طریقه ده مصنفینو ده چه کله یو اهم خبره ذکرکوی نو مخکښې ده هغې نه بدان راوړی که کتاب په فارسی وی او اعلم راوړی که کتاب ده عربی وی ده پاره ده بیدار کولو ده مخاطب چه هسے نه مخاطب چرته په غفلت کښې پاتی شی او دا خبره ترینه فوت شی نو مصنف رح هم په هغه طریقه باندے کار اوکړو او ویئیل چه بدان -

ارشدک الله تعالی :- دا جمله معترضه ده په مابین ده دے قول ده مصنف کښې چه بدان او ده دے قول کښې چه این مختصریست ، او غرض ده دے جملے معترضے ده راوړلو نه خوشحاله کول ده مخاطب دی ځکه چه مصنف بدان وُوایه نو ځان ئے آمر اوګرځولو او مخاطب ئے مأمور اوګرځولو نو ده مخاطب په زړه کښې خفګان پیدا شو ځکه

دهٔ انسان طبیعت داغوا پری چه زه دے په خپل طبیعت کارکوم - قوله ارشد :- ارشد صیغه دهٔ واحد مذکر غائب فعل ماضی معلوم دهٔ باب افعال نه - (ک ک) ئے مفعول به دے او الله ئے فاعل دے او دا ارشد اګرکه فعل ماضی ده لیکن په معنیٰ دهٔ فعل مضارع سره ده ځکه دیر مواضع دی. چه هلته فعل ماضی په معنیٰ دهٔ فعل مضارع سره راځی لکه راغلی دی په دے قول ده شاعر کښ

امد ماضی بمعنیٰ مضارع چندجا | عطف ماضی بر مضارع در مقام ابتدا

بعد موصول نداء ولفظ حیث کلما | در جزاء شرط باشد پرو باشد در دعاء

نو یوده هغه مواضعو نه موضع دهٔ دعاء دے او دلته هم دا مقام دهٔ دعاء دے - فان قیل - چه هرکله مقصود معنیٰ دهٔ مستقبل وه نو صیغه دهٔ ماضی ئے ولے ذکر کړه - قلنا :- چه صیغه ده ماضی ئے ذکر کړیده دهٔ پاره ده تفاول یعنی دهٔ پاره دهٔ دے چه په اعتبار دهٔ صورت سره دا سے معلومه شی چه ګویا دعاء قبول شویده - او نقول :- چه ماضی ئے ذکر کړیده ځکه چه ماضی اخصر ده دهٔ مضارع نه فان قیل :- چه دا کتاب ده فارسی دے نو دعاء ئے په عربی کښے ولے ذکر کړیده قلنا - چه دعاء ئے په عربی کښے ځکه ذکر کړیده چه دعاء په الفاظو عربیو سره دیره قریب وی اجابت ته -

قوله الله :- تحقیق ده لفظ دهٔ الله مخکښے تیر شویدے - فان قیل :- چه ارشد فعل دے او (ک ک) ضمیر دهٔ مخاطب ئے مفعول به ده او الله ورله فاعل او اصل تقدیم دهٔ فاعل دے په مفعول باندے نو دلته مفعول به ولے مقدم شویده - قلنا :- چه تقدیم ده فاعل په مفعول به باندے په هغه وقت کښے غوره دے چه کله مانع موجود نه وی. او دلته مانع موجود شویدے چه کون ده مفعول به ضمیر متصل دے او کله چه مفعول به ضمیر متصل وی نو تقدیم دهٔ فاعل بیا اولیٰ نهٔ وی بلکه ممنوع وی ځکه که فاعل مقدم شی نو بیا لازمیږی فوات ده اتصال -

قوله تعالیٰ :- تعالیٰ په اصل کښے تعالوو او تعالوو صیغه دهٔ واحد مذکر غائب فعل ماضی معلوم ده دهٔ باب تفاعل نه مجرد ئے علو دے واو په مجردو کښے په دریم ځائی کښے وو نقل شو پنځم ځائی ته نو واو بدل شو په یاء سره تعالیٰ شو بیا (ی) متحرک ما قبل ئے مفتوح وو نو ری) بدل شوه په الف سره نو تعالیٰ شو - او دا حال واقع شویدے دهٔ الله نه

او الله ورلره ذوالحال دے نو معنیٰ داده په حال کون دهٔ الله کښے چه لوئی دے او صفت دهٔ پاره
دهٔ الله نه صیح کیږی ځکه الله معرفه ده او تعالیٰ جمله فعلیه ده او جمله فعلیه خبریه صفت ده
نکرے واقع کیږی او دهٔ معرفے نه واقع کیږی ځکه چه په مابین دهٔ دے دوارو کښے منافات
دے او منافات ځکه دے چه معرفه دلالت کوی په ذات معینه او جمله دلالت کوی په نسبت
مبهمه او په مابین ده تعین او دهٔ ابهام کښے منافات دے ۔

که این مختصر یست مظبوط در علم نحو ۔ دا دے تعلق دهٔ بدان سره دے نو معنیٰ
داده پوهه شه چه دا یو مختصر کتاب دے چه محفوظ (یعنی مکتوب) دے په علم نحو کښے ۔

قوله مختصر ۔ مختصر صیغه ده اسم مفعول ده دهٔ باب افتعال نه مصدر ترینه اختصاراً راځی
او اختصار معنیٰ په لږ عبارة سره مطلب اداکول پس یو مختصر دے او بل مقتصر دے مختصر دیته
وائی چه الفاظ ئے کم وی او مطلب ئے ډیر وی او مقتصر دیته وائی چه الفاظ هم کم وی او مطلب
په کښے هم کم وی قوله مظبوط ۔ مظبوط صیغه ده اسم مفعول ده دلته مظبوط په معنیٰ ده
محفوظ او دهٔ مکتوب سره دے قوله در علم نحو ۔ علم په لغت کښے دانستن ته وئیل کیږی او په
اصطلاح کښے حاضر عند المدرک ته وائی ۔ او نحو په لغت کښے په اتهٔ معانیو سره راځی په
معنی ده قصد او په معنیٰ دهٔ مثل او په معنیٰ ده طرف یعنی اړخ ول ۔ او په معنیٰ دهٔ جانب او په معنیٰ ده
قسم او په معنیٰ ده مقدار او په معنیٰ دهٔ قبیلے او په معنیٰ دهٔ صیانت ۔ والتفصیل فی الشرح ۔
او په اصطلاح کښے علم نحو هو علم باصول یعرف بها احوال اواخر الکلم الثلث من حیث الاعراب
والبناء وکیفیة ترکیب بعضها مع بعض ۔ که مبتدی را بعد حفظ مفردات لغت ومعرفت
اشتقاق وضبط مهمات تصریف بآسانی بکیفیة ترکیب عربی راه نماید ۔ چه مبتدی
یعنی اول شروع کونکی ته پس ده یادولو دهٔ مفرداتو دهٔ لغت نه او پس ده پیژاندلو دهٔ اشتقاق
نه او پس ده یادولو دهٔ اهم مسئلو ده علم صرف نه په آسانی سره طریقے دهٔ ترکیب عربی ته
لارښائی ۔ یعنی په دے سره طریقه دهٔ ترکیب دهٔ الفاظو عربیو پیژاندلے کیږی ۔ قوله
مبتدی مبتدی صیغه ده اسم فاعل ده دهٔ باب افتعال نه مصدر دا دے ابتداءً راځی او دهٔ ابتداء
معنیٰ شروع کول دی ۔ نو ده مبتدی ۔ معنی ابتدائی شروع کونکے ۔

قوله مفردات لغت ۔ مفردات جمع دهٔ مفرد ده او مفرد په ډیر قسمه راځی مقابل ده تثنیه

او دَ جمع او مقابل دَ مضاف او مقابل دَ جملې دلته مفرد مقابل دَ جملې او مضاف مراد دے
پهٔ قرینه ده ذکر دَ ترکیب سره پهٔ مابعد کښې او لغت صیغه ده مصدر ده پهٔ اصل کښې لُغَوٌ
وُو واو متحرک او ماقبل ترینه مفتوح وُو واو بدل شو پهٔ الف سره التقاء دَ ساکنین راغله
په مابین دَ الف او دَ تنوین کښې الف مدّه وُو حذف شو واو پهٔ عوض کښې په آخر کښې
(ت) راوړے شوه نو لُغَةٌ شو - پس لغت په لغت کښې نطق ته وائي عرب وائي لغیٰ
فلانٌ بالکلام ای نطق به او په اصطلاح کښې الالفاظ الموضوعة للمعانی -

فائده - وفی بیان اللغة تحقیق لطیف اذکره لکثرة الفائدة ولکن ینبغی للمعلم ان یجتزوقت
تعلیم المبتدی عنه و لیکتف بالقدر الذی مرّ انفاً -

چراذره کړه دا خبره - چه په لغت کښې لابدی ده دَ معرفت دَ امورو سبعو نه اوّل معنٰی
لغوی دوئم معنٰی اصطلاحی دریم مناسبت په مابین ده معنٰی لغوی او اصطلاحی کښې او څلورم صیغه
پنځم باب دَ دے شپږم تعلیل په دیکښې اوؤم وزن - هرچه ده معنٰی لغوی او اصطلاحی نو هغه
مخکښې ذکر شو یدلے او هرچه دے مناسبت په مابین دَ معنیین کښې - پس مناسبت دَ معنٰی
لغوی او اصطلاحی په معنٰی التزامی کښې دے ځکه چه نطق لازم دے دَ لفظ سره او هرچه
ده صیغه نو هغه هم تیره شو یده او هرچه دے باب نو داده باب دَ لَغِیَ یَلْغٰی نه دے او هر
چه دے وزن نو مخکښې دَ حذف او تعویض نه فُعَلٌ دے بضم الفاء وفتح العین - او هر چه
دے پس دَ حذف او تعویض نه نو فُعَةٌ دے بضم الفاء وفتح العین وحذف اللام -

فان قیل :- په مصدر کښې چه حرف حذف شی نو عوض ترینه (ت) راوړے کیږی
لیکن دا په هغه وخت کښې راوړے کیږی چه هغه حرف حذف شوے وی بغیر دَ التقاء دَ
تنوین نه او په لُغَةٌ کښې خو الف حذف شوید لے دَه وجه دَ التقاء دَ تنوین نه —

قلنا :- چه دلته اگرچه قاعده موجوده نه ده لیکن عوض (ت) راوړے شویده ځکه چه
دا مصدر دے او مصدر فرعه ده دَ فعل پهٔ اعلال کښې او پهٔ فعل کښې حذف نه وُو شوے
او دلته حذف او شو نو که مونږه عوض دَ محذوف نه (ت) رانه وړو نو لازمیږی مخالفت
دَ فعل او دا نا جائز دے او چه عوض دَ محذوف نه (ت) راوړے شی نو مخالفت دَ
فعل نه ولے نه راځی ځکه چه دا حذف کلا حذف دے -

قوله ومعرفت اشتقاق - اشتقاق صيغه دَ مصدر ده دَ باب افتعال نه په لغت کښې اشتقاق څيرولو ته وائي او په اصطلاح کښې اشتقاق ديته وائي - چه ان تجد بين اللفظين تناسبًا في اللفظ والمعنى جميعًا - او دلته اشتقاق اصطلاحي مراد دے او کله ذکر ده اشتقاق او شي او مراد تربنه علم الأشتقاق وي يعني مضاف تربنه حذف وي .

پس علم الأشتقاق هغه علم دے چه په هغه سره دَ مصدر نه يا دَ اسم جامد نه ده کلماتو د ه جوړه ولو طريقه معلوميږي لکه دَ نَصْرًا نه ماضي او مضارع او اسم فاعل وغيره او ده لَبَنٌ اسم جامد نه لَابِنٌ - قوله وضبط مهمات تصريف - مهمات صيغه ده جمع سالم مؤنث اسم فاعل ده دَ باب افعال نه مفرد مؤنث دَ دے مُهِمَّةٌ راځي او دَ مهمة معنى لغوى ده په غم او فکر کښې غورځونکے څيز او مجازًا مستعمليږي په امر عظيم او ګران کار کښې ځکه چه ګران کار هم انسان په غم او فکر کښې اچوي. دلته مراد معنى مجازي ده يعني ده علم صرف هغه مشکل کرد انو نه مراد دے او تصريف په لغت کښې تغير ته وائي او په اصطلاح کښې تحويل الأصل الواحد الى امثلة مختلفة لمعانٍ مقصودةٍ لا تحصل الّا بها - ليکن دلته مضاف محذوف دے او چه اصل کښې علم تصريف وُو نو مراد دلته علم تصريف يعني علم صرف دے .

قوله بکيفية ترکيب عربي - ترکيب په لغت کښې جعل دَ شيئين يا دَ اکثر دَ شيئين دے شيء واحد او په اصطلاح کښې جعل دَ شيئين يا اکثر دَ شيئين دے شيء واحد په داسے شان سره چه په هغو اطلاق کيږي دَ اسم واحد لکه مسند او مسند اليه يو کړے نو هغے ته جمله ويلے کيږي او چه مضاف او مضاف اليه يو کړے نو هغے ته مرکب اضافي وائي او چه صفت او موصوف يو کړے نو هغه ته مرکب توصيفي وائي .

وبزودي در معرفت اعراب وبناء وسواد خوانندن توانائي دهد بتوفيق الله تعالى وعونه - او په جلتئ سره به پيژاندلو دَ اعراب او دَ بناء کښې او په لوستلو کښې دَ ملکے نه طاقت ورکوي په توفيق دَ الله سره او په مدد دَ هغه سره قوله در معرفت اعراب وبناء - اعراب صيغه دَ مصدر ده دَ باب افعال نه - دَ اعراب معنى لغوي اظهار دے يا يه معنى دَ خراب والي سره دے ليکن باب افعال - کښې همزه راځي دَ پاره دَ سلب او دَ زائل والے ده خرابئ - دلته مراد دَ اعراب نه کيدل دَ اسم دي معرب او د رفع نصب جر.

نهٔ دی مراد او مراد دهٔ بناء نه کیدل دهٔ اسم دی مبنی نهٔ جوړه ول اووزن۔ قوله وسواد خوانند ده سواد معنیٰ ده مکه اودهٔ خواندن معنی ده لوستل۔ قوله بتوفیق اللّٰه۔ توفیق صیغه دهٔ مصدر دهٔ باب تفعیل نه پهٔ لغت کښې جعل اسباب العبد موافقة للمطلوب۔ یعنې ګرځول دهٔ اسبابو دی موافق دهٔ مطلوب سره مطلوب خیروی اوکه شروی۔ او پهٔ اصطلاح کښې جعل الأسباب موافقةً للمطلوب الخیر۔ قوله وعونه۔ عون صیغه دهٔ مصدر دهٔ عَانَ یَعُوْنُ عَوْنًا نه بمعنیٰ مدد۔

## فصل

بدانکه لفظ مستعمل درسخن عرب بردو قسم است۔ لفظ په لغت کښې رمی ته وائی لکه عرب وائی اکلت التمرة ولفظت النواة۔ او پهٔ اصطلاح کښې مایتلفظ به الأنسان ته وائی یعنې هغه شئ چه انسان پرې تلفظ کوی. فان قیل: چه تعریف دهٔ لفظ دے جامع نشو افرادو خپلو له خارج شوترینه ملفوظ دهٔ اللّٰه تعالیٰ اوملفوظ ده ملائکو اوملفوظ ده جناتو ځکه چه په هغې خو انسان تلفظ نه کوی بلکه اللّٰه اوملائک اوجنات پرې تلفظ کوی قلنا: چه تلفظ دهٔ انسان عام دے چه ابتداءً وی اوکه ثانیاً وی اوپه دوئ باندے انسان که تلفظ اولاً نه کوی نوثانیاً ئے کوی. اومستعمل: صیغه دهٔ اسم مفعول ده دهٔ باب استفعال نه پهٔ معنیٰ ده مستعمل کړے شوی سره یعنې چه لفظ موضوع وی نوپهٔ قید دهٔ مستعمل سره ئے احتراز اوکړو دهٔ لفظ غیرمستعمل یعنې غیرموضوعه نه ځکه چه بحث دهٔ هغې نه بحث نهٔ کوی اوپهٔ قید دهٔ مستعمل کښې اشاره ده دے خبرے ته چه لفظ پهٔ دوه قسمه دے یو مستعمل دے اوبل غیرمستعمل دے۔ مستعمل هغه دے چه هغه له معنیٰ وی اودیته لفظ موضوعه وائی ځکه چه موضوعه معنیٰ وضع کړے شوے اوداهم وضع کړے شوے دے دهٔ پاره ده معنیٰ۔ اوغیرمستعمل هغه دے چه معنیٰ ورله نهٔ وی اودیته لفظ غیرموضوعه وائی ځکه چه داوضع دهٔ نورو ټبو نه ځکه چه په هر ژبه کښې یو لفظ مستعمل وی نوهغه دریے قسمه راځی بلکه شوے نه دے دهٔ پاره دهٔ معنیٰ۔ قوله درسخن عرب: قید دهٔ عربی دهٔ پاره ده احتراز نه داقید اتفاقی دے فان قیل: چه هرکله په دے سره احتراز مقصود نهٔ وُو نو بیا ولے دا قید زیاتی کړے شو قلنا۔ چه داقید ئې ځکه زیات کړے دے چه مقصود بیان ده قواعدو دهٔ عربی دے اونور مقصود نهٔ دے۔

قوله مفرد ومرکب - یو مفرد دے او بل مرکب دے وجه ده حصر داده چه دالفظ به خالی نه
وی یا به جزء دَ لفظ دلالت کوی په جزء ده معنیٰ یا به نه کوی که نه کولو نو مفرد او که جزء
دَ لفظ دلالت کولو په جزء دَ معنیٰ نو مرکب لکه زَیْدٌ او زَیْدٌ قَائِمٌ شو نو زیدٌ مفرد دے ځکه
چه دَ دے یو جزء چه مثلاً (ز) ده دلالت نه کوی په جزء دَ معنیٰ - او زیدٌ قائمٌ مرکب دے
ځکه چه دَ دے یو جزء چه (زید) دے مثلاً دلالت کوی په جزء دَ معنیٰ چه هغه سړے مسمیٰ
بالزید دے - دا رنګه بل جزء چه (قائمٌ) دے دلالت کوی په جزء ده معنیٰ چه ذات من له
القیام دے - فائده - مفرد مقابل دَ مرکب هم راځی او مقابل دَ مضاف شبه مضاف هم
راځی او مقابل دَ تثنیے او جمع هم راځی دلته مراد دَ مفرد نه مقابل دَ مرکب دے په قرینے
ده ذکر دَ مرکب سره په مقابل ده دیکښے - مفرد لفظی باشد تنها که دلالت کند بر یکے معنیٰ
مفرد هغه یو لفظ دے چه دلالت کوی په یوه معنیٰ باندے - یعنی جزء دَ لفظ په دلالت نه
کوی په جزء دَ معنیٰ باندی - پس په دے قید سره خارج شو دَ مفرد نه مرکبات کلامیه
لکه زَیْدٌ قَائِمٌ او مرکبات غیر کلامیه لکه غُلَامُ زَیْدٍ ځکه چه په دوی کښے جزء ده لفظ دلالت
کوی په جزء دَ معنیٰ باندے - وآن را کلمه گویند - او دغه مفرد ته کلمه وائی یعنی
مفرد او کلمه الفاظ مترادفه دی او معنیٰ ئے واحده ده

وکلمه بر سه قسم است اسم چون رَجُلٌ وفعل چون ضرب وحرف چون هل - او کلمه په درے
قسمه ده یو اسم دے لکه رجل شو او بل فعل دے لکه ضرب شو او بل حرف دے لکه هَلْ شو
وجه دَ حصر په درے قسمونو کښے داده چه دا کلمه به خالی نه وی یا به دلالت په خپله معنیٰ
باندے کوی او یا به نه کوی بلکه محتاجه به وی ضم دَ کلمے اُخریٰ ته - که دلالت ئے
کولو په خپله معنیٰ باندے بغیر دَ ضم ده دَ کلمے اُخریٰ نه نو بیا به خالی نه وی یا به
مقترن وی په یوه زمانه پورے دَ ازمنو ثلاثو مخصوصو نه او یا به مقترن نه وی په
یوه ازمنو ثلاثو مخصوصو پورے - که اول وُو نو فعل او که ثانی وُو اسم او که دلالت
ئے په خپله معنیٰ باندے بغیر دَ ضم ده کلمه اُخریٰ نه نه کولو نو حرف -

قوله اسم - اسم په نزد دَ بصریانو مشتق دے دَ سِمُوٌّ ناقص واوی نه او دَ سِمُوٌّ
معنیٰ ده اوچت والے نو بیا اسم (یعنی اسم اصطلاحی) ته اسم ځکه وائی چه دا هم اوچت دے په

اخوبن خپلو چه فعل او حرف دی ځکه اسم مسند او مسند الیه دواړه واقع کیږی او فعل مسند واقع
کیږی او مسند الیه نه واقع کیږی او حرف نه مسند واقع کیږی او نه مسند الیه ـ
او په نزد د کوفیانو اسم مشتق دے د وسم مثال واوی نه او وسم داحی په معنی د علامے
سره نو بیا اسم ته ځکه اسم وائی چه دا علامه ده په معنی خپله باندے او اطراد په اسامیو
کښے شرط نه دے نو اعتراض نه وارد یږی چه بیا حرف ته هم اسم وایه او فعل ته هم اسم
وایه ځکه چه دا هم دواړے علامے دی په معانیو خپلو باندے ـ او په اصطلاح کښے اسم
هغه کلمه ده چه په خپله معنی باندے په خپله دلالت کوی بغیر د ضم د کلمے اخری
نه او مقترن نه وی په یوه د زمانه ازمنو ثلاثو مخصوصو پورې چه ماضی ده حال دے او استقبال
دے مثال د اسم لکه رجل شو رجل معنی مرد ـ قوله فعل :- فعل په لغت کښے حدث ته
وائی او په اصطلاح کښے فعل هغه کلمه ده چه دلالت کوی په معنی خپله بغیر د ضم د کلمے
اخرے نه او مقترن وی په یو زمانه پورے د ازمنو ثلاثو نه ـ نو په فعل اصطلاحی کښے
درے ځیزونه دی حدث نسبت ـ زمان او فعل ته فعل ځکه وائی چه فعل په لغت کښے
حدث ته وائی او په فعل اصطلاحی کښے درے ځیزونه دی نو حدث پکښے یو جزء دے نو تسمیه د
ده کل او شوه په اسم د جزء سره ـ مثال د فعل لکه ضَرَبَ معنی وهل کړید ی هغه یو سړی
په زمانه تیره شوے کښے قوله وحرف، حرف په لغت کښے طرف ته وائی لکه وائی عرب دا انک
جلست حرف الوادی ای طرف الوادی ـ او په اصطلاح کښے حرف هغه کلمه ده چه دلالت
نه کوی په خپله معنی باندے بغیر د ضم د کلمے اخرے نه لکه هَلْ شو نو د دے معنی
استفهام دے لیکن دا په هغه معنی خاص چه هل ضرب زید کښے استفهام د ضرب چه منسوب
دے زید ته نو د دے باندے یوازے دلالت نشی کولے ترڅو چه ورسره بل کلمه ضم نه کړے
لکه هَلْ ضَرَبَ زَیْدٌ ـ او حرف ته حرف ځکه وائی چه حرف په لغت کښے طرف ته وائی
او دا حرف اصطلاحی هم واقع کیږی په طرف د کلام کښے او معنی د وقوع د دے په طرف کښے
دا ده چه د کلام دوه جزونه دی یو جزء مسند الیه دے او بل مسند نو دا چه په کلام کښے
دا شی نو نه مسند وی او نه مسند الیه وی ـ پس وارد نه شو اعتراض چه دا حق په مینځ د
کلام کښے هم واقع کیږی لکه سرتُ من البصرة الی الکوفة شو نو دلته من هم حرف دے او الی هم

حرف دے او دواړه په منځ کښې داخلیدی ۔ فتامل ۔ والتفصیل فی المطولات ۔

چنانکه در تصریف معلوم شده است ۔ لکه څرنګه چه علم صرف کښې معلوم شویدلي یعنی بیان

دهٔ دریو اقسامودهٔ کلمې ۔ امامرکب لفظی باشد که از دو کلمه یا بیشتر حاصل شده باشد ۔ هر

چه دے مرکب نو هغه لفظ دے چه دهٔ دوو کلمو نه یا دهٔ زیاتو نه حاصل شوے وی او زیاتت

دره هٔ حد نشته دے ۔ یا مرکب هغه لفظ دے چه جزء دهٔ لفظ ئې دلالت کوی پهٔ جزء دهٔ معنیٰ باندے

فائده ۔ افراد او ترکیب صفتونه دهٔ الفاظو هم واقع کیږی او ته معنیٰ هم یعنی پهٔ دوئی سره توصیف

دهٔ لفظ هم کیږی نو ویلې کیږی معنیٰ مفرد او معنیٰ مرکب ۔ پس تعریف دهٔ لفظ مفرد او مرکب

مخکښې تیر شوید ے ۔ او معنیٰ مفرد هغه ده چه جزء دهٔ لفظ دال دهٔ هغې معنیٰ دلالت کوی

پهٔ جزء دهٔ معنیٰ باندے او معنیٰ مرکب هغه ده چه جزء ده لفظ دال دَ هغې دلالت کوی پهٔ جزء

دهٔ معنیٰ باندے ۔ لیکن افراد او ترکیب صفتونه بالذات دهٔ الفاظو واقع کیږی ۔ او توصیف

دهٔ معنیٰ پهٔ دوئی کولے شی پهٔ واسطې دهٔ لفظ سره ۔

ومرکب بر دوگونه است مفید وغیر مفید ۔ او مرکب پهٔ دوه قسمه دے یو مرکب مفید دے

او بل مرکب غیر مفید دے وجه دهٔ حصر په دے دوو قسمونو کښې دا ده چه دا مرکب به خالی نه

وی یا به مفید دهٔ فائدے تامے وی او یا به نهٔ وی که وُو نو مرکب مفید او که نه وُو نو مرکب

غیر مفید ۔ مرکب مفید ئې مقدم کړے دے پهٔ غیر مفید باندے دهٔ وجې دهٔ اصالت دُه

دینه او دا اصل ځکه دے چه مفید دهٔ فائدے تامې دے پهٔ خلاف دُه غیر مفید نه ځکه

چه هغه مفید دهٔ فائدے تامې نه دے او مرکب مفید ته مرکب تام هم وائي ځکه چه

دا مفید دهٔ فائدے تامې دے او غیر مفید ته ناقص هم وائي ځکه چه پهٔ دیکښې نقصان

دے چه مفید دُهٔ فائدے تامې نهٔ دے ۔ مفید آنست که چون قائل بر آن سکوت کند سامع

را خبرے یا طلبی معلوم شود ۔ یعنی مرکب مفید هغه دے چه متکلم پهٔ هغه سکوت او کړي

او مخاطب محتاجه نهٔ وی شئ آخر ته په شان دهٔ احتیاج مسند او مسند الیه ته یعنی مفید دهٔ

فائدے تامے وی ۔ او مرکب مفید ته مفید ځکه وائي چه مفید صیغه دهٔ اسم فاعل ده دهٔ باب

افعال نه پهٔ معنیٰ ده فائده ور کونکی او دا هم فائده تامه ور کوی ۔ نو معنیٰ دا شوه چه مرکب مفید

هغه دے چه کله تلفظ کوئی په هغه چپ شی نو اوریدونکی ته خبر یا طلب معلومیږی ۔ خبر په جمله خبریه

دهٔ خبر یا طلب معلومیږی ۲

کښې او طلب په جمله انشائیه کښې   وآن را جمله گویند وکلام نیز - او دغه مرکب مفید ته جمله هم وائی او کلام هم وائی یعنی مرکب مفید او جمله او کلام یو شی دے او دا مذهب دهٔ اکثرو نحاتو دے

پس جمله بر دو قسم است خبریه وانشائیه - پس جمله په دوه قسمه ده یو خبریه او بل انشائیه وجه ده حصر په دے دوو قسمونو کښې داده چه دا جمله به خالی نهٔ وی یا به قائل دهٔ دے متصف کیدلے شی په صدق او کذب سره او یا به نشی کیدلے کهٔ اول وو نو خبریه او که ثانی وو نو انشائیه - او یا وجه دهٔ حصر په دے کښې داده چه دا جمله به خالی نهٔ وی یا به احتمال دهٔ صدق او کذب لری او یا به نه لری که احتمال دهٔ صدق او دهٔ کذب پکښې وو نو خبریه او که نه وو نو انشائیه - فان قیل - چه ته وائی جمله خبریه هغه وی چه احتمال دهٔ صدق او کذب لری نو نقض دے راغے په محمدٌ الرسول الله او په الله موجودٌ او په الله واحدٌ باندے ځکه چه دا ټولے جملے خبرے دی او احتمال دهٔ صدق او دهٔ کذب پکښې نشته بلکه دا ټولے صادقې دی - قلنا - چه جمله خبریه هغه نه چه احتمال ده صدق او دهٔ کذب لری په اعتبار دهٔ ذات سره قطع نظر دهٔ خصوصیت دهٔ موضوع او محمول نه او قطع نظر دهٔ قرائن خارجیو نه او په دے مثالونو مذکورو کښې احتمال دهٔ کذب ختم شویدے نو داده وجه دهٔ دغه عوارضو نه دے یعنی دهٔ قرائنو وغیره نه او دارنګه کیږی ته کذب وو فقط نکه الانسان حمارٌ - فتامل -

فصل   بدانکه جمله خبریه آنست که قائلش را بصدق وکذب صفت توان کرد - پوهه شه چه جمله خبریه هغه ده چه ویلونکے دهٔ هغے موصوف کیدلے شی په صدق او کذب سره او قائل دهٔ جملے خبریه ځکه موصوف کیدلے شی په صدق او یا په کذب سره چه په جمله خبریه کښې متکلم یعنی قائل حکم او کړو لکه یو سړی اووائی زیدٌ قائمٌ نو دے حکم او کړو په قیام باندے دهٔ پاره دهٔ زید - نو اوس دا حکم هٔ دے به یا رښتیا وی او یا به دروغ وی کهٔ رښتیا وی نو دے به موصوف کیږی په صدق سره او کهٔ دروغ وی نو دے به موصوف کیږی په کذب سره - او جمله خبریه ئے په انشائیه مقدم کړے ده دهٔ اصالت دهٔ وجے نه ځکه چه مدار دهٔ عقائدو اسلامیهٔ ټول په جمله خبریه دے لکه اللهٔ حقٌ محمدٌ رسول الله حقٌ الجنة حقٌ النارُ حقٌ الصراط حقٌ الحساب حقٌ وغیره

وآن بر دو نوع است اول آنکه جزو اولش اسم باشد ، او جمله خبریه په دوه قسمه ده اول

قسم هغه دي چه جزء اول دُه هغه اسم وي برابره خبره دُه چه جزء ثاني ورسره اسم وي لکه
زيدٌ قائمٌ اوکه فعل وي لکه زيدٌ قامَ وآن را جمله اسميه گويند او دے جملے ته
چه (جزاول ئے اسم وي) جمله اسميه وائی ځکه چه جزاول ئے اسم وُو نو تولے جملے ته نوم
کيخودلے شو اسميه من قبيل تسمية الکل باسم الجزء چون زيدٌ عالمٌ - نو زيد مبتداء دے او
عالمٌ خبرٌ مبتداء سره دُه خپل خبر نه جمله اسميه شوه يعني زيد داناست - يعني زيد
عالِمٌ دے . جزاولش مسند اليه است - جزء اول دُه دے مسند اليه دے - مُسند صيغه ده
اسم مفعول ده دُه باب ده اَسْنَدَ يُسْنِدُ اسناداً نه دُه اسناد معنیٰ نسبت کول دي نو مسند اليه
معنیٰ دا شوه هغه اسم چه هغه طرف ته نسبت کرے شوے وي او مسند اليه ته مسند اليه
ځکه وائی چه ديته هم نسبت کرے شوے دے وآن را مبتداء گويند - اودغه مسند اليه ته چه
کوم چه زيدٌ عالمٌ کښے دے مبتداء وائی يعني دلته دا مسند اليه مبتداء واقع شويدے مبتداء صيغه
دُه اسم مفعول ده دُه باب افتعال نه او معنیٰ ده ابتداء ده شيروع کول - او په اصطلاح
کښے مبتداء هغه اسم دے چه مجرد وي دُه عوامل لفظيونه - فائده - مسند اليه
ته په دے مثال مذکور کښے لکه څرنګه چه مبتداء وائی نودا رنګه محکوم عليه ورته هم وائی -
پس مسند اليه او محکوم عليه عام دي او مبتداء خاص ده نو هره مبتداء به مسند اليه او محکوم
عليه وي او دا لازم نه ده چه هره مسند اليه او محکوم عليه به مبتداء وي لکه زيدٌ عالمٌ
کښے زيد مبتداء ده او مسند اليه هم دے او محکوم عليه هم دے او ضَرَبَ زيدٌ کښے زيدٌ مسند اليه
او محکوم عليه دے ليکن مبتداء نهٔ ده ځکه مبتداء خو هغه اسم دے چه مجرد وي دُه عوامل
لفظيونه او په ديکښے عامل لفظي عمل کرے دے . چه هغه ضَرَبَ دے بلکه زيدٌ فاعل دے.
وجزء دوم مسند است - او جزء دوم يعني عالمٌ مسند دے مسند ته مسند ځکه وائی چه مسند صيغه
دُه اسم مفعول ده دُه دے معنیٰ ده نسبت کرے شوے يعني هغه شئ چه دُه هغه نسبت کرے شوے
دے او دُه دے مسند هم نسبت کرے شويدے مسند اليه ته . وآن را خبر گويند - او دے مسند
ته خبر وائی او ديته خبر ځکه وائی چه دا خبر ورکوي دُه حال دُه مبتداء نه او دے مسند ته
محکوم به هم وائی ځکه چه دُه محکوم به معنیٰ داده - هغه شئ چه په هغه سره حکم کرے
شوے وي په بل شي باندے او په دے مسند سره چه عالمٌ دے هم حکم کرے شويدے به

پهٔ بل شی چه مسند الیه دے ۔ **دوم آنکه جزاولش فعل باشد وآن را جمله فعلیه گویند** ۔ دویم قسم جمله خبریه هغه ده چه جزاول دهٔ هغے فعل وی او هغے ته جمله فعلیه وائی او دیته جمله فعلیه ځکه وائی چه د جملے فعلیے معنیٰ داده چه جمله منسوب شوے فعل ته او دا هم منسوب ده فعل ته پهٔ دے معنیٰ سره چه جزء اول دهٔ دے فعل دے او هر کله چه د اسمیه پهٔ اعتبار دهٔ هغه یو جزء مره شوه چه جزء اول دے نو د اسمیه دهٔ کل ده پهٔ اسم ده جزء سره ۔ چون ضَرَبَ زَیْدٌ بزد زید ۔ لکه ضرب زید شو (معنیٰ) وهل کړي دی زید (ترکیب) ضَرَبَ فعل زیدٌ فاعل فعل سره ده فاعل خپل نه جمله فعلیه خبریه شوه **جزاولش مسند است وآن را فعل گویند وجزء دوم مسند الیه است وآن را فاعل گویند**

جزء اول دهٔ دے (ضرب زیدٌ) مسند دے او دیته فعل ویلے کیږی او جزء دوم ئے مسند الیه دے او دیته فاعل ویلے کیږی ۔ فائده ۔ مسند عام دے او فعل خاص دے نو کله یه یو شئ مسند وی او فعل به نهٔ وی لکه چه مسند اسم وی لکه عالمٌ شوٓ پهٔ زیدٌ عالمٌ کښے او دا رنګه مسند الیه دهٔ فاعل نه عام دے نو کله به مسند الیه وی او فاعل به نهٔ وی لکه زیدٌ شوٓ پهٔ زیدٌ عالمٌ کښے نو دا مسند الیه دے لیکن فاعل نهٔ دے بلکه مبتدا ده ۔

فان قیل ÷ ۔ چه جمله اسمیه هغے ته وائی چه جزء اول ئے اسم وی او جمله فعلیه هغے ته وائی چه جزء اول ئے فعل وی نو چه جزء اول دهٔ جملے حرف وی نو پکار ده چه هغے ته جمله حرفیه او ویلے شی لکه انّ زیداً قائمٌ شوٓ ۔ قلنا ÷ ۔ چه مراد دهٔ جزء اول نه هغه جزء دے چه مسند او مسند الیه واقع کیږی او حرف مسند او مسند الیه نهٔ واقع کیږی ۔

حاصل دهٔ ماقبل دا دے چه جمله خبریه په دوه قسمه ده یوه اسمیه ده او بله فعلیه ده وجه دهٔ حصر په دے دوو قسمونو کښے دا ده چه دا جمله بهٔ خالی نهٔ وی یا به جزء اول دهٔ دے فعل وی یا به اسم وی که فعل وُو نو جمله فعلیه او که اسم وُو نو جمله اسمیه ده ۔

پس جمله اسمیه هغه ده چه جزء اول دهٔ هغے اسم وی لکه زیدٌ عالمٌ شو او جمله فعلیه هغه ده چه جزء اول دهٔ هغے فعل وی لکه ضرب زیدٌ شوٓ ۔ او پهٔ هره جمله خبریه کښے دوه جزونه وی یو هغه جزء وی چه پهٔ هغه باندی حکم کیږی او بل جزء هغه وی چه پهٔ هغه سره حکم کیږی په هغه بل جزء باندے نو دے اول ته محکوم علیه او مسند الیه وائی او دے دوم ته مسند او محکومٌ به وائی ۔

وبدانکه مسند حکم است ومسند الیه آنچه بروحکم کنند ، او پوهه شه چه مسند حکم دے او مسند الیه
هغې دے چه په هغه باندے حکم کوی یعنی په هغهٔ باندے حکم کیږی نو دهٔ دینه معلومه شو ۵
چه مسند الیه او محکوم علیه یو شئ دے او مسند او محکوم بهٔ یو شئ دے ـ که ته دا ئی چه اقسام دهٔ
کلمے درے دی اسم فعل او حرف نو چه هر یو به مسند او مسند الیه واقع کیږی یا په بعض مسند او
مسند الیه واقع کیږی او بعض به نهٔ واقع کیږی نو دے وائی - واسم مسند ومسند الیه تواند
بود وفعل مسند باشد ومسند الیه نتواند بود و حرف نه مسند باشد ونه مسند الیه -
ترجمه ) او اسم مسند او مسند الیه واقع کیدلے شی او فعل مسند واقع کیدلے شی او مسند الیه نشی واقع
کیدلے او حرف نهٔ مسند واقع کیدلے شی او نه مسند الیه -
پس ازدہ کرلا داخبرہ - چه اسم مسند او مسند الیه دواړه واقع کیدلے شی ځکه چه په مسند او
مسند الیه کښے لابدی دهٔ استقلال بالذات او التفات بالذات ته یعنی چه دا به مستقل هم وی
او مقصود فی نفسه به هم وی او اسم مستقل بالذات هم دے او ملتفت الیه بالذات هم دے او
فعل مسند واقع کیږی ځکه چه په مسند کښے لابدی ده دهٔ استقلال بالذات او التفات بالذات
نه او فعل مستقل بالذات هم دے او ملتفت الیه بالذات هم دے او مسند الیه نه واقع کیږی
ځکه چه دا فعل اګرکهٔ مستقل بالذات هم دے او ملتفتٌ الیه بالذات هم دے لیکن دا
واضع وضع کړے دے مسند ایدا که مونږ یې مسند الیه اوګرځوو نو لازم به شی خلاف
دهٔ وضع دهٔ واضع نه - او یا فعل مسند الیه نشی واقع کیدلے ځکه په مسند الیه کښے دا ضروری
ده چه په ذات دلالت کوی حقیقتاً یا تقدیراً - او فعل خو عرض دے نو دلالت په ذات
نشی کولے نو مسند الیه به خاص اسم واقع کیږی خو دا اسم به یا عام دے حقیقتاً وی لکه زیدٌ عالمٌ
او که تأویلاً وی لکه سَوَاءٌ عَلَیْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ - نو دلته ءانذرتهم مبتدا او مؤخره
ده او مسند الیه واقع شوی دے لیکن دا په تاویل دهٔ مصدر سره دے نو تقدیر دا رنګه
دے چه انذارک وعدم انذارک ایاهم مستویٌ - او حرف نه مسند واقع کیږی او نه مسند
الیه ځکه چه دا نه مستقل بالذات دے او نه ملتفت الیه بالذات دے بلکه غیر مستقل دے
محتاجه دے ضم دہ کلمے اُخرٰی ته او اګه ده دهٔ باره دهٔ تعرف دهٔ حال دهٔ غیر -
هر کله چه فارغ شو مصنف رح ده بیان دهٔ جملے خبریه نه نو شیروع شے او کړه په بیان دهٔ جملے

انشائیه کښې نوږې ویل -

بدانکه جمله انشائیه آنست که قائلش را بصدق وکذب صفت نتوان کرد - پوه شه چه جمله انشائیه هغه ده چه قائل دَ هغې متصف کیدلے نشی په صدق اوکذب سره - اوقائل دَ دے په صدق اوکذب سره شکه نشی متصف کیدلے چه صادق سړی ته هله ویلے کیدیشی چه متکلم یو حکم اوکړی اوهغه موافق وی دَ نفس الامر سره لکه متکلم ووائی زیدٌ قائمٌ اوزید رښتیا ولاړ وی اوکاذب ورته هله ویلے کیدیشی چه متکلم یو حکم اوکړی اوهغه مطابق دَ نفس الامر سره نه وی لکه متکلم ووائی چه زیدٌ قائمٌ اوزید ولاړ نه وی . بلکه ناست وی - اوپه جمله انشائیه کښې حکم نشته - قوله بدانکه جمله انشائیه دَ دے ترکیبی معنیٰ داده هغه جمله چه منسوب ده انشاء ته اومعنی اصطلاحی تاپیژندلی ده - اوانشاء وائی ایجاد ده مالم یوجد ته یعنی پیدا کول دَ هغه شی چه موجود نه وی - چونکه جمله انشائیه متکلم په خپله پیدا کوی اودَ یو واقعې خبر نه ورکوی نو دَ دے وجې نه دیته انشائیه وائی -
وآن بر چند قسم است - هرکله چه فارغه شو دَ تعریف دَ جملے انشائیه نه نواراده دَ شروع شے اوکړه په بیان دَ اقسامو دَ دیکښې نوووئیل چه جمله انشائیه په یو څو قسم ده - اول امر
اول امر دے امر صیغه دَ مصدر ده دَ باب دَ نَصَرَ یَنْصُرُ نه په لغت کښې امر حکم کولو ته وائی یعنی طلب دَ فعل دَ فاعل نه اوپه اصطلاح کښې امر هغه فعل دے چه مشتق کیږی دَ فعل مضارع نه دَ پاره دَ دلالت کولو په طلب دَ فعل دَ فاعل نه مثال ده امر - چون اِضْرِبْ - لکه اضرب (ترکیب) اضرب صیغهٔ واحد مذکر امر حاضر معلوم ضمیر پکښې مستتر دے چه معبر دے په انت سره فاعل کیږی دَ فعل فعل سره دَ فاعل نه جمله فعلیه انشائیه امریه - ونهی چون لا تضرب - اودوئم نهی ده لکه لا تضرب مثی معنیٰ وهل مه کوه ته . (ترکیب) لا تضرب صیغه واحد مذکر مخاطب فعل نهی معلوم ضمیر پکښې مستتر دے چه معبر دے په انت سره فاعل کیږی دَ فعل فعل سره دَ فاعل خپل نه جمله فعلیه انشائیه مصدره بلا ناهیه - پس نهی په لغت کښې منع کولو ته وائی اوپه اصطلاح کښې هغه فعل دے چه په هغه سره طلب ده ترک دَ فعل کولے شی دَ فاعل نه . واستفهام - اودریم استفهام دے استفهام صیغه دَ مصدر ده دَ باب استفعال نه اودَ باب استفعال یوه مشهوره خاصه ده طلب نو معنیٰ دَ استفهام داده چه طلب دَ فهم دَ ناواقف متکلم ده واقف نه اوپه اصطلاح کښې دَ نحاتو په نیز استفهام هغه جمله ده چه دَ هغې په ذریعه ناواقف متکلم طلب

ده فهم کوی واقف نه - چون هل ضرب زیدٌ - دا مثال دَ استفهام دے (ترکیب) هل حرف استفهام غیر عامل ضَرَبَ فعل زیدٌ فاعل کیږی دَ فعل فعل سره دَ فاعل خپل نه جمله انشائیه استفهامیه -

وتمنی - اویله تمنی ده - تمنی صیغه دَ مصدر ده دَ باب تفعل نه په اصل کښے تَمَنِّیٌ وُو ضمه دَ ماقبل دَ یاء بدل شوه په کسره سره دَ وجے دَ مناسبت دَ یاء نه بیا اعلال دَ قاعدے او شُو نو تمنٍّ شو لیکن په فارسی کښے تنوین نه راځی نو صفه یاء بیا معاد شوه نو تمنیّ شوه تمنی په لغت کښے آرزو کولو تمنا ئی یعنی اظهارله محبت دے دَ پاره دَ حصول دَ شئ او په اصطلاح کښے تمنی هغه جمله ده چه په هغے سره متکلم اظهارله محبت کوی دَ پاره دَ حصول دَ شئ - چون لیت زیدًا حاضرٌ - کاشکی چه زید حاضر وائی - لیت حرف دَ حروف مشبه بالفعل نه زیدٌ اسم ده لیت دے او حاضر خبر دَ لیت دے لیت سره دَ اسم او خبر خپل نه جمله انشائیه تمنائیه وکلهب او پنځم قسم ترجی ده ترجی په لغت کښے امید کولو تمه وائی یعنی اظهار دَ امید دَ پاره دَ حصول دَ شئ او په اصطلاح کښے ترجی هغه جمله ده چه په هغے سره اظهار دَ محبت کیږی دَ پاره دَ حصول دَ شئ - مثال دَ ترجی چون لعل عمرًا غائبٌ - شاید چه عمرو به غائب وی لعل حرف دے دَ حروف مشبه بالفعل نه عمرًا اسم دَ لعل دے او غائبٌ خبر ده لعل دے لعل سره دَ اسم او خبر خپل نه جمله اسمیه انشائیه ترجیه -

فائده - فرق په مابین ده تمنیّ او ترجی کښے دا دے چه تمنی مستعملیږی په هغه امورو کښے چه ممکن ځے وی او په هغه امور کښے چه محال وی لکه لیت زیدًا حاضرٌ او لیت الشباب یعود نو اول امر ممکن دے او ثانی محال دے او ترجی مستعملیږی خاص په هغه امورو کښے چه ممکن وی نو ویلے شی لعل زیدًا حاضرٌ او نشی ویلے چه لعل الشباب یعود لیکن دا فرق په استعمال کښے دے او فرق په معنی کښے اللهورد

وعقود - او شپږم قسم دَ جملے نه عقود دی عقود جمع دَ عقد ده عقد په لغت کښے غوټے ته وائی او په اصطلاح کښے عقود هغه الفاظ دی چه مستعملوی هغوی ره تجارت کر خلق په وخت دَ بیع او شرا کښے چون بعت واشتریت - لکه بعت او اشتریت شو - خرڅ کړه ما او وا غسته ما یعنی اخلم زه او خرڅومه نو دا جملے انشائیے دی خو په صورت دَ جملے خبریے کښے دی او په اصل کښے دا جملے خبریے دی لکه یو سړے اووائی چه بعت الفرس نو دا جمله خبریه ده لیکن چه کله بائع او مشتری ده خرڅولو او اغستلو په وخت کښے دا استعملوی چه بعتُ او اشتریتُ نو دا جملے انشائیے دی ځکه په دے

وخت کېنې دهٔ دے مقصد دا دے چه انشاء دهٔ بیع او انشاء دهٔ اغستلو کومه زهٔ فتامل فان فیه دقة ۔
(ترکیب) بعتُ فعل فاعل ۔ فعل سره دهٔ فاعل نه جمله فعلیه انشائیه عقودیه ۔ دا رنگه ترکیب دهٔ اشتریتُ
دے وندآء ۔ او اوم قسم نداء ده نداء صیغه دهٔ مصدر دهٔ نادیٰ ینادی منادات باب مفاعله
نه دهٔ نداء معنیٰ ده آواز کول او دلته مراد جمله ندائیه ده نو جمله ندائیه په اصطلاح کېنې هغه
جمله ده چه په هغې سره طلب دهٔ توجه دهٔ منادیٰ کولے شی نفس خپل ته چون یا اللّٰه
تکه یا اللّٰه شو ۔ (ترکیب) یا حرف نداء قائم مقام ده اَدْعُوْ ۔ اَدْعُوْ صیغه ده واحد متکلم فعل
مضارع معلوم ضمیر پکښې مستتر دے چه مُعَبّر دے په اَنَا سره فاعل کیږی دهٔ فعل او اللّٰه مناد
مفعول به فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ مفعول به خپلے نه جمله فعلیه انشائیه ندائیه شوه.
(فائده) پهٔ نداء کېنې لابدی دهٔ منادیٰ له او حرف نداء نه ۔
وعوض ۔ او اتم قسم عرض دے عرض په لغت کېنې پیش کولو ته وائی او پهٔ اصطلاح ؟
کښ نو عرض هغه جمله ده چه پهٔ هغې سره طلب دهٔ فعل دهٔ حصول کولے شی دهٔ فاعل نه پهٔ
نرمئ سره چون اَلَا تنزل بنا فتصیب خیراً ۔ تکه الا تنزل الخ معنیٰ ایا تهٔ نهٔ راځی زمونږه ش
پس او به رسیږے تهٔ خیر ته ۔ (ترکیب) اَلَا تنزل ۔ جمله انشائیه ده او فتصیب خیراً جمله خبریه ده
او عطف دهٔ جملے خبریه پهٔ جمله انشائیه نه صحیح کیږی نو دا مؤول دے په تاویل دهٔ الا یکون نزولٌ
منک فیکون اصابتہ خیرٍ منّا ۔ نو یکون سره ده اسم او خبر خپل نه جمله فعلیه معطوف علیه او یکون
سره دهٔ اسم او خبر خپل نه جمله فعلیه معطوفه معطوف سره دهٔ معطوفٌ علیها خپل نه جمله
فعلیه شوه ۔ وقسم او نهم قسم قسم دے قسم تاکید ده متکلم دے یو دهٔ طرفونو دهٔ کلام
خپل لره پهٔ ذکر دهٔ هغه شی سره چه تعظیم دهٔ هغه واجب وی پهٔ نزد دهٔ دهٔ او جمله قسمیه
په اصطلاح کېنې هغه جمله ده چه په هغې سره قسم کولے شی پهٔ یو شی باندے چون
واللّٰه لَاَضْرِبَنَّ زیداً ۔ شوه معنیٰ قسم دے په اللّٰه چه البته خامخا به وهم زهٔ زید لره (ترکیب) واو
حرف جاره لفظ اللّٰه مجرور جار مجرور تعلق نسی دهٔ فعل مقدر سره چه اُقسم دے اقسم صیغه
واحد متکلم فعل مضارع معلوم ضمیر پکښې مستتر دے چه معبر دے پهٔ اَنَا سره فاعل کیږی ده فعل
فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ متعلق خپل نه جمله فعلیه قسم او لَاَضْرِبَنَّ صیغه واحد متکلم فعل مضارع
معلوم مؤکد بانون تاکید ثقیله ضمیر پکښې مستتر دے چه معبر دے پهٔ اَنَا سره فاعل کیږی ده فعل

او زیداً مفعول به - فعل سره ده فاعل نه او سره ده مفعول به څخه نه جمله فعلیه جواب قسم قسم
سره ده جواب څخه نه جمله فعلیه انشائیه قسمیه - وتعجب اولنتم قسم تعجب دے تعجب لیو
کیفیت دے چه حاصلیږی په زړه کښې په سبب ده لیدلو ده یو امر غریب سره - او جمله تعجبیه
په اصطلاح کښې هغه جمله ده چه ده هغې په زریعه سره تعجب کولے شی په یو امر باندے
چون مَا اَحْسَنَهٗ وَاَحْسِنْ بِهٖ (ترکیب) په دیکښې دوه ترکیبونه دی یو په مذهب ده سیبویه
هغه دا دے چه مَا په معنیٰ ده شَیْءٌ منکر سره مبتداء ده او شَیْءٌ اگرچه نکره ده لیکن تنوین په دیکښې
ده پاره ده تعظیم دے نو تقدیر دا ډلکه شو چه شَیْءٌ عَظِیْمٌ نو تخصیص پکښې راغلید ے په صفت
سره نو ابتدائیت ئے صحیح دے او احسن صیغه واحد مذکر غائب فعل ماضی معلوم ضمیر پکښې مستتر
دے چه راجع دے مَا ته هغه ئے فاعل دے او (ه) ضمیر ئے مفعول به فعل سره ده فاعل
او سره ده مفعول به څخه نه جمله فعلیه خبر کیږی ده پاره ده مبتداء چه مَا دے - مبتداء سره
ده څخه خبر نه جمله اسمیه انشائیه تعجبیه - او تقدیر ده عبارة ده مَا احسنه په نزد ده سیبویه
دا ډلکه دے شَیْءٌ عَظِیْمٌ اَحْسَنَهٗ - یعنی لوئے شی دے چه خائسته کړی دے زید لره -
او دویم ترکیب په نزد ده فرآء دے هغه وائی چه دا مَا استفهامیه په معنیٰ ده اَیُّ شَیْءٍ دے نو
نو تقدیر دا ډلکه شو اَیُّ شَیْءٍ احسنه - څه شی خائسته کړے دے زید لره (ترکیب) اَیُّ مضاف
شَیْءٍ مضاف الیه مضاف سره ده مضاف الیه څخه نه مبتداء اَحسن صیغې واحد مذکر غائب فعل
ماضی معلوم ضمیر پکښې مستتر دے چه معبّر دے په هُوَ سره فاعل کیږی ده فعل او (ه) ضمیر
مفعول به فعل سره ده فاعل او سره ده مفعول به څخه نه جمله فعلیه خبر ده مبتداء چه اَیُّ
شَیْءٍ دے مبتداء سره ده خبر څخه نه جمله انشائیه تعجبیه - قوله واحسن به احسن صیغه واحد
مذکر امر حاضر از باب افعال په معنیٰ ده اَحْسَنَ ماضی سره ده او بزیدٍ کښې با زائده ده
او زید فاعل ده اَحْسَنَ دے نو (ترکیب) داشو اَحْسَنَ فعل زیدٌ فاعل فعل سره ده فاعل
څخه نه جمله انشائیه تعجبیه - نو معلومه شوه چه جمله ده احسن بزیدٍ په معنیٰ ده
اَحْسَنَ زیدٌ سره ده او معنیٰ ده احسن زیدٌ دا ده چه صاحب ده حسن کرځید لے دے زید
یعنی څه خائسته شی یدے زید فائده - ده فعل تعجب دوه صیغې راځی یوه په وزن
ده ماضی معلوم ده باب افعال ځو چه مخکې ترینه لفظ ده مَا وی لکه ما احسن زیدٌ -

دوئیم په وزن دٔ مفرد مذکر امر حاضر دی باب افعال حق ما بعد ترینه جار مجرور واقع وی لکه اَحْسِنْ بِزَیْدٍ شو لیکن دا امر حاضر هم په معنیٰ دٔ ماضی سره دے - هرکله چه فارغه شو مصنف ره دٔ بیان نه مرکب مفید نه لو اراده ده شروع ئے اوکړه په بیان دٔ مرکب غیر مفید کښے نو وئیل

فصل بدانکه مرکب غیر مفید آنست که چون قائل بر آن سکوت کند سامع را خبرے یا طلبے معلوم نشود - (ترجمه) دا فصل دے پوهـ شه مرکب غیر مفید هغه دے چه کله ویونکے په هغهٔ چپ شی نو اوریدونکی ته خبر یا طلب نهٔ معلومیږی. یعنی مرکب غیر مفید هغه دے چه مفید دٔ فائدے تامے نهٔ وی بلکه مخاطب محتاجه وی سوال ته لکه ته ووائی غلام زَیْدٍ نو مخاطب ته پته نه لګی چه غلام دٔ زید څه مطلب دے چه ته ... ورسره ووائی چه غلام زَیْدٍ جاء - یا هذا غلام زیدٍ یا اطلب غلام زیدٍ نو بیا به مخاطب ته پته لګیږی او مفید به وی او دهٔ دے وجے نه چه دا مفید دٔ فائدے تامے نهٔ دے نو دیته مرکب غیر مفید وائی او دیته مرکب ناقص هم وائی دٔ وجے دٔ نقصان نه په دیکښے.

پس اخذه کړی دا خبره - چه مرکب غیر مفید په دوه قسمه دے یو تقیدی دے اول غیر تقیدی دے - تقیدی هغه دے چه جزء ثانی قید وی دٔ پاره دٔ جزء اول او غیر تقیدی هغه دے چه جزء ثانی قید نهٔ وی دٔ پاره دٔ اول - پس تقیدی په دوه قسمه دے یو اضافی دے اول توصیفی دے اضافی هغه دے چه جوړ شوے وی دٔ مضاف او مضاف الیه نه لکه غلام زیدٍ شو او توصیفی هغه دے چه جوړ شوے وی دٔ موصوف او صفت نه لکه رجلٌ عالِمٌ -

او غیر تقیدی په درے قسمه دے یو مرکب بنائی دے اول مرکب صوتی دے او دریم مرکب منع صرف دے قسم اول او ثالث مصنف ره ذکر کړی دی او قسم ثانی چه مرکب صوتی دے هغه ئے نهٔ دے ذکر کړے - پس مرکب صوتی هغه دے چه جزء ثانی پکښے اسم صوت وی لکه سیبویه شو دا مرکب دے دٔ (سیب) نه او دٔ (ویه) نه چه صوت دے لیکن مصنف دٔ وجے دٔ اختصار نه تقسیم په دے طریقه سره نهٔ دے کړے بلکه تقسیم ئے داسے کړے دے چه مرکب غیر مفید په درے قسمه دے - اضافی - بنائی - مرکب منع صرف او تفصیل دٔ دے مذکور دے کتاب کښے هغه دا دے چه و آن بر سه قسم ست اول مرکب اضافی - او مرکب غیر مفید په درے قسمه دے اول مرکب اضافی دے هغه دا چه مرکب شوی وی دٔ مضاف

او مضاف الیه نه او دیته مرکب اضافي ځکه وائی چه دا مرکب شوید ے دٔ مضاف او مضاف الیه
چون غلام زید ـ لکه غلام زید شو ـ غلام مضاف زید مضاف الیه مضاف سره دٔ مضاف
الیه ځنې مرکب اضافي ـ جزاول را مضاف گویند وجزء دوم را مضاف الیه ـ جزء اول ته
مضاف وائی ځکه چه مضاف صیغه دٔ اسم مفعول ده دٔ باب افعال نهٔ دهٔ دے معنیٰ ده نسبت کړے
شوے او دٔ دے جزء اول هم نسبت کړے شوید ے جزء ثاني ته او جزء ثاني ته مضاف الیه
وائی ځکه چه دٔ مضاف الیه معنیٰ ده نسبت کړے شوے دیته او دے جزء ثاني ته هم
نسبت کړے شوے دے دٔ جزء اول ـ
او پهٔ اصطلاح کښے مضاف هر هغه شئ دے چه نسبت ئے کړے شوے وی اسم ته پهٔ واسطے
دٔ حرف جر سره لفظاً یا تقدیراً او مضاف الیه پهٔ اصطلاح کښے هغه اسم دے چه نسبت ورته
کړے شوے وی دٔ یو شئ په واسطے دٔ حرف جر سره لفظاً یا تقدیراً ـ او په مابین دٔ
مضاف او مضاف الیه کښے اضافت راځی نو اضافت پهٔ لغت کښے نسبت ته وائی ١٢ ـ
ومضاف الیه همیشه مجرور باشد ـ او مضاف الیه به همیشه مجرور وی ځکه چه ورستو
دٔ مضاف نه حرف جر راځی لفظاً لکه مررت بزید کښے او یا تقدیراً لکه غُلَامُ زیدٍ شو نو دا به
مجرور وی پهٔ هغه حرف جر سره لیکن چه حرف جر مذکور وی نو دٔ هغے نه تعبیر پهٔ مضاف
الیه سره نهٔ کیږی بلکه تعبیر ورنه کیږی پهٔ جار مجرور سره ـ او یا چه حرف جر مذکور نهٔ
وی نو مضاف الیه به مجرور ځکه وی چه مضاف دٔ عواملو قیاسیو نه دے پهٔ مضاف الیه
ځنې کښے عمل دٔ جر کوی او چه پهٔ کوم ځائے کښے حرف جر ملفوظ وی نو مثلاً خو به مجرور
وی پهٔ حرف جر سره ځکه چه حرف جر پهٔ مدخول خپل کښے عمل دٔ جر کوی ـ
دوم مرکب بنائی ـ دویم قسم مرکب بنائی دے دیته مرکب بنائی ځکه وائی چه بغیر دٔ اثناعشر
نه دٔ دے دواړه جزونه مبنی وی ـ او دٔ دے بل نوم مرکب تعدادی دے دیته مرکب تعدادی
ځکه وائی چه پهٔ عدد کښے راځی یعنی دٔ اَحَدَ عَشَرَ نه تر تسعةَ عَشَرَ پورے ـ وا و آنست که دو
اسم را یکے کرده باشند و اسم دوم متضمن حرفی باشد ـ او مرکب بنائی هغه دے چه دوهٔ
اسمونه یو کړے شوی وی او دویم اسم متضمن وی معنیٰ دٔ حرف لره چون اَحَدَ عَشَرَ تا
تسعة عشر ـ لکه احد عشر شو تر تسعة عشر پورے یعنی احد عشر ـ اثنی عشر ثلاثة عشر ـ اربعة عشر وغیره

[1] او پهٔ اصطلاح کښے نسبت ـ دٔ یو شئ دے اسم ته پهٔ واسطے دٔ حرف جر سره لفظاً یا تقدیراً ١٢

که دراصل احد و عشر و تسعة و عشر بوده است - یعنی بالواو المقدره وُو - واو را حذف کرده هردو اسم را یکے کردند - واو ئے حذف کړه او دوه اسمونه ئے یوکړه نو احدعشر اوتسعة عشر شو او باقی په دے قیاس دی - وهر دو جزء مبنی باشد برفتح - او دواړه جزونه به مبنی وی په فتح سره - هرچه ده نفس بناء دَ جز اول پس دَ وجے دَ وقوع دَ آخر دَ دینه په وسط کښے ځکه چه اعراب په وسط دَ کلمے کښے نه جاری کیږی او هرچه ده نفس بناء دَ جزء ثانی ځکه چه دا متضمن دے معنیٰ دَ حرف لره او اسم چه متضمن شی معنیٰ دَ حرف لره نو مبنی کیږی ځکه چه هر کله چه اسم متضمن شو معنیٰ دَ حرف لره نو مشابه شو دَ حرف سره او مشابهت دَ حرف سره دا علت دَ بناء دے او هرچه دَ بناء په فتح سره ځکه چه دلالت دے دَ ترکیب دَ دوو اسمین نه نو حرکت دَ فتح موږ ته ورکړو چه تخفیف حاصل شی -

الا اثنا عشر که جزء اول معرب است - دا الا اثنا عشر استثناء ده دَ ما قبل دے قول دَ مصنف چه وهر دو جزء مبنی باشد بر فتح نو معنیٰ دا شوه چه مگر اثنا عشر چه جزء اول دَ دے معرب دے - یعنی دَ اثنا عشر جزء ثانی خو مبنی دے ځکه چه دا متضمن دے معنیٰ دَ حرف لره لیکن جزء اول ئے معرب دے ځکه دا په اصل کښے اثنان وُو نو بیا په وجه دَ ترکیب سره نون دَ تثنیے ساقط شو لکه په حالت دَ اضافت کښے چه ساقطیږی نو مشابه شو دَ مضاف سره او اضافت دَ خواصو معظمو مکبرو دَ اسم نه دے او خاصه ده شئ چه پیوست شی په شئ پوری نو شئ راجع کوی اصل خپل ته او اصل په اسماؤ کښے اعراب دے نو معرب شو حاصل دا دے چه دا جزء اول معرب ځکه دے چه دا مشابه شوے دے دَ مضاف سره په سقوط دَ نون دَ تثنیه کښے او اضافت دَ خواصو دَ اسم نه دے او خاصه شئ خپل اصل ته راجع کوی او اصل په اسماؤ کښے اعراب دے.

سوم مرکب منع صرف و او آنست که دو اسم را یکے کرده باشند و اسم دوم متضمن حرفی نباشد - (دریم) قسم ده مرکب غیر مفید نه مرکب منع صرف دے او دا هغه دے چه دوه اسمونه یوکړے شوی وی او دویم اسم متضمن نه وی معنیٰ دَ حرف لره - یعنی چه دوه اسمونه وی او دال وی په ځانله ځانله معانیو باندے او ته قرینه دَ ځانله ځانله معانیو لحاظ قطع کړے او دال ئے کړے په معنیٰ ثالثه باندے او جزء ثانی متضمن نه وی

معنیٰ دَ حرف لرو - چون بعلبکّ لکه بعلبکّ شو بعل نوم دَ بُت وُو او بکّ نوم دَ
یو پادشاه وُو بیا دَ دغه دواړو معانیو نه لحاظ قطع شو او دواړه اسمونه یو کړے شو
او نوم او ګرځول شو دَ یو ښار دَ هغه ښار چه دغه پادشاه جوړ کړے وُو.
وحَضَرَمَوْتَ - نو دا نوم دَ یوے قبیلے دے او مرکب دے دَ دوو اسمونو نه چه حَضَرَ
او مَوْتَ دے که جزء اول ئې مبنی یا شی بر فتح پر مذهب اکثر علماء - چه جزء اول دَ دے
مبنی وی په فتحه سره په مذهب دَ اکثرو علماء - هرچه ده نفس بناء دَ وجے دَ وقوع دَ آخر
دَ دینه په وسط دَ کلمه کښے ځکه چه په وسط دَ کلمه کښے اعراب نه جاری کیږی،
او هرچه ده بناء په فتح سره دَ وجے دَ خفت دَ فتح نه او په اکثر سره ئې احتراز او کړو
دَ اول نه ځکه چه په دیکښے دوه مذهبونه نور هم دی لیکن هغه قلیل دی وجزء دوم معرب
او جزء دوم به معرب وی دَ وجے دَ عدم وجود دَ علت دَ بناء نه په دیکښے چه تضمن دے
معنیٰ دَ حرف لرو - پس اذا ذکرته داخبره - چه په مرکب منع صرف کښے درے مذهبونه دی
یو مذهب دَ اکثرو علماؤ دے او هغه دا دے چه جزء اول به مبنی وی بنا بر فتح او جزء ثانی
به ئے معرب وی خو په اعراب دَ غیر انصراف سره هرچه ده بناء دَ جزء اول او اعراب دَ
جزء ثانی فلما مرّ آنفًا او هرچه دے غیر انصراف دَ جزء ثانی دَ وجے دَ وجود دَ سببین
نه چه یو ترکیب دے او بل علمیت دے او دوئم مذهب دا دے چه جزء اول معرب دے په
اعراب دَ منع صرف سره او ثانی معرب دے په اعراب دَ غیر منصرف سره - سره دَ اضافت
دَ اول نه ثانی ته او دریم مذهب دا دے چه دواړه جزونه معرب دی په اعراب دَ
منصرف سره سره دَ اضافت دَ اول نه ثانی ته نو وائی به ته په مذهب دَ اکثرو علماؤ
جاءنی بَعْلَبَكُّ ورأیت بَعْلَبَكَّ ومررت بِبَعْلَبَكَّ - او وائی به ته په مذهب ثانی -
جاءنی بَعْلُبَكَّ ورأیت بَعْلَبَكَّ ومررت بِبَعْلِبَكَّ او وائی به ته په مذهب ثالث جاءنی بَعْلُبَكٍّ
ورأیت بَعْلَبَكٍّ ومررت بِبَعْلِبَكٍّ تامل فیه -
حاصل دد دے فصل دا دے چه مرکب غیر مفید هغه دے چه مفید دَ فائدے تامے نه
وی او دا په درے قسمه دے یو مرکب اضافی دے او دا هغه دے چه مرکب شوی وی
دَ مضاف مضاف الیه نه لکه غلامُ زیدٍ دوئم مرکب بنائی دے او دا هغه دے چه

دوه اسمونه یوکړے شوی وی او جزء ثانی متضمن وی معنیٰ دَ حرف لره او دَه دے دواړو جزونه به مبنی وی په فتح سره سوی دَه عشر نه چه دلته به جزء اول معرب وی او دریم مرکب منع صرف دے او داهغه دے چه دوه اسمونه یوکړے شوی وی او جزء ثانی متضمن نه وی معنیٰ دَ حرف لره لکه بعلبک شو او په دیکښے دری مذهبونه دی التفصیل بیان شوه

ویدانکه مرکب مفید همیشه جزء وجمله باشد ـ او پوه شه چه مرکب مفید به همیشه جزء دَ جملے وی یعنی دا به یو جزء دَ جملے واقع کیږی او یو جزء به ورسره بل وی نو جمله به جوړیګی چون غلامُ زیدٍ قائمٌ ـ لکه غلام زیدٍ قائمٌ شو (ترکیب) غلام مضاف زید مضاف الیه مضاف سره دَ مضاف الیه خپل نه مرکب اضافی مبتداء قائمٌ دے خبر مبتداء سره دَ خپل خبر جمله خبریه اسمیه ـ وعندی اَحَدَ عَشَرَ دِرهَمًا ـ معنیٰ زما سره یولس دی دَه جهت دَه روپو نه یعنی زما سره یولس روپۍ دی. (ترکیب) عندی ظرف مستقر خبر مقدم اَحَدَ عَشَرَ مرکب بنائی ممیز درهمًا تمیز ـ ممیز سره دَ خپل تمیز نه مبتداء مؤخر مبتداء سره دَ خپل خبر نه جمله اسمیه خبریه ـ وَجَاءَ بَعلَبَکّ (ترکیب) جاء صیغه واحد مذکر غائب فعل ماضی معلوم بعلبک ورسره فاعل فعل سره دَ فاعل خپل نه جمله فعلیه خبریه ـ پس په مثال اول کښے غلام زید مرکب غیر مفید دے او هغه جزء دَ جملے واقع شوید ے او په مثال ثانی کښے اَحَدَ عَشَرَ مرکب غیر مفید دے او جزء دَ جملے واقع شوید ے او په مثال ثالث کښے بَعلَبَکّ مرکب غیر مفید دے او جزء دَ جملے واقع شویدے۔

## فصل

بدانکه هیچ جمله کمتر از دو کلمه نباشد ـ دا فصل دے پوه شه چه هیڅ یوه جمله به کم نه دوو کلمو نه نه وی ځکه چه جمله مرکب دے او مرکب هغے ته وائی چه دَ دوو کلمو یا دَ ډیرو کلمو نه جوړ شوے وی نو په کم دَ دوو کلمو کښے نشی موجود کیدلے. لفظاً چون ضرب زیدٌ وزیدٌ قائمٌ یا به دوه کلمے لفظاً وی لکه ضَرَبَ زیدٌ او زیدٌ قائمٌ شو مثال اول دَ جملے فعلیے دے او دویم مثال دَ جملے اسمیے دے یا تقدیراً چون اضرب که انت درو مستتر است یا به دوه کلمے تقدیراً وی لکه اِضرِبْ شو چه انت په دیکښے مستتر دے نو اِضرِبْ یو شو او لفظی ده او انت به کلمه ده او دا تقدیری ده ـ قوله یا تقدیراً ـ تقدیر په لغت کښے اندازه کولو ته وائی او په اصطلاح کښے دیته وائی چه یو شی په نیت کښے اراده وی په یو ځائی کښے بغیر دَ ذکر دَه هغه شی نه۔

پهٔ لفظ کښې - وازین بیشتر باشد وبیشتر ازحد نیست - اوده دوونه به زیاته وی او زیات لره ځه حد نشته --

بدانکه چون کلمات جمله بسیار باشند ، دا توطئه او تمهید دے دهٔ پاره دهٔ فصل آتی او بیان دهٔ مسائلو دے - معنیٰ هر کله چه کلمات دهٔ جملے زیات وی - نو دا خو بهٔ مختلف هم راځی نو چه کله مختلف راغلۀ نو اسم وفعل وحرف را بایک دیگر تمیز باید کردن - نو اسم او فعل او حرف لره دهٔ یو بل نه جدا کول پکار دی - ونظر کردن که معرب ست یا مبنی وعامل است یا معمول او پکار دی نظر کول چه دا کلمه معرب ده یا مبنی عامل دے یا معمول - وبا ید دانستن که تعلق کلمات بایکدیگرے چگونه است - او پکار دی پیژاندل چه تعلق دهٔ کلماتو دهٔ یو بلے سره څه قسم دے - تا مسند ومسند الیه پیدا گردد ومعنیٰ جمله بتحقیق معلوم شود دهٔ پاره دهٔ دے چه مسند او مسند الیه پیدا شی او معنیٰ دهٔ جملے پهٔ تحقیق سره معلومه شی -

**فصل** هر کله چه پهٔ فصل سابق کښې ذکر شو چه اسم فعل او حرف دهٔ یو بل نه جدا کول پکار دی او امتیاز دهٔ یو شی دهٔ بل نهٔ راځی په علامت دهٔ شی سره نو پهٔ دے فصل کښې مصنف علامات دهٔ اسم او فعل او حرف بیانوی - بدانکه علامت اسم آنست که الف لام یا حرف جر دراولش باشد - پوهه شه چه علامت دهٔ اسم دا ده چه الف لام یا حرف جر به پهٔ اول دهٔ دیکښې وی الف لام علامه دهٔ اسم ځکه ده چه دا واضع وضع کړی دی دهٔ پاره دهٔ معنیٰ مستقلے مطابقی او معنیٰ دهٔ حرف غیر مستقله ده او دهٔ فعل معنیٰ که مستقله لیکن معنیٰ تضمنی ئے مستقله ده او پهٔ اعتبار دهٔ معنیٰ مطابقی سره غیر مستقل دے نو خاص شو پهٔ اسم پورے او حرف جر علامه دهٔ اسم ځکه ده چه دا واضع وضع کړے دے دهٔ پاره دهٔ افضاء او دا سبکلو دهٔ فعل او شبه فعل مدخول خپل ته نو مدخول ئے حرف نشی راتلے ځکه چه هغه غیر مستقل دے او فعل هم نشی راتلے ځکه چه لازمیږی افضاء دهٔ شی نفس خپل ته او دا نا روا ده مثال ده فعل لکه مررت بزید او مثال دهٔ شبه فعل لکه انا مار بزید - چون الحمد لله بزید - لکه الحمد او بزید شولو اول مثال دهٔ الف لام دے او دوئم مثال دهٔ حرف جر دے یا تنوین در آخرش باشد چون زیدٌ - یا به تنوین پهٔ آخر دهٔ دیکښې وی لکه زیدٌ شو - تنوین علامه دهٔ اسم دهٔ ځکه چه معانی دهٔ تنوین بجمیع اقسامه بغیر دهٔ تنوین ترنم نه خاص دے پهٔ اسم پورے نو دا هم خاص شو پهٔ اسم پورے - وسیجئ بحث التنوین - ان شاء الله -

یا مسند الیه باشد چون زیدٌ قائمٌ - یا به مسند الیه وی لکه زیدٌ قائمٌ شو یعنی لکه زیدٌ شو
په زیدٌ قائمٌ کښې مسند الیه کیدل علامه دَ اسم ځکه ده چه فعل او حرف مسند الیه نشی واقع
کیدے کما مرّ بیانه یا مضاف باشد چون غلام زیدٍ - یا به مضاف وی لکه غلام زیدٍ شو
یعنی غلام شو په ترکیب دَ غلام زیدٍ کښې - او دا علامت دَ اسم ځکه ده چه فوائد دَ اضافت
چه تعریف تخصیص تخفیف دے خاص دی په اسم پورے نو دا هم خاص شو په اسم پورې
فائده - مضاف والے خاصه دَ اسم هله ده چه کله په تقدیر دَ حرف جر سره وی او
چه حرف جر مذکور وی نو بیا مضاف فعل هم واقع کیږی لکه مررت بزیدٍ شو
یا مصغر باشد چون قریشٌ - یا به مصغر وی لکه قریشٌ شو او مصغر کیدل علامه دَ اسم
ځکه ده چه تصغیر دلالت کوی په تعظیم او تحقیر او ترحم باندے او دا خاص په اسم کښې راځی.
نو دا تصغیر هم خاص شو په اسم پورے - یا منسوب باشد چون بغدادیٌّ - یا به منسوب
وی لکه بغدادیٌّ شو منسوب صیغه دَ اسم مفعول ده په معنیٰ دَ نسبت کړے شوے او منسوب
کیدل خاصه دَ اسم ځکه ده چه په منسوب کښې یاء نسبتیه راځی او یا نسبتیه مشدده چه په یو اسم
پورې متصل شی نو ما قبل ته ئې کسره راځی او کسره اخته دَ جر ده او جر خاصه دَ اسم ده
نو دا هم خاصه دَ اسم شوه . یا مثنیٰ باشد چون رجلانِ - یا به تثنیه وی لکه رجلان شو
او دا علامه دَ اسم ځکه ده چه تثنیه متقاضا کوی دَ تعدد او تعدد راځی په اسم کښې نه
په فعل او حرف کښې -
یا مجموع باشد چون رجالٌ یا به جمع وی لکه رجالٌ شو (جمع رجل) او دا علامه دَ اسم ځکه دَ چه
جمع تقاضا کوی دَ تعدد او تعدد راځی په اسم کښې یا موصوف باشد چون جاء رجلٌ عالمٌ - یا به
موصوف وی لکه جاء رجلٌ عالمٌ شو یعنی رجلٌ شو په جاء رجل عالم کښې او دا علامه دَ اسم ځکه ده
چه موصوفیت دلالت کوی په قلت او قلت په اسم کښې راځی نه په فعل و حرف کښې -
یا تائی متحرکه بدو پیوند چون ضاربةٌ - یا تائی متحرکه په دے پورے پیوسته شی لکه
ضاربةٌ شو او دا علامه دَ اسم ځکه ده چه دا راځی په مقابله دَ تائی ساکنه کښې - او تائی ساکنه
خاصه وه په فعل پورے نو دا خاصه شوه په اسم پورې او تقسیم مو پدے طریقے سره اوکړو
چه ساکنه مو فعل له ورکړه او متحرکه مو اسم له ورکړه ځکه چه اسم خفیف دے او فعل ثقیل دے

او ثانی متحرکه ثقیله ده او ساکنه خفیفه ده نو موزون ورکړو ثقیل چه ثانی متحرکه ده خفیف ته چه اسم دے او خفیف چه ثانی ساکنه ده ثقیل ته چه فعل دے دٔ پاره دٔ رعایت دٔ تعادل او برابروالی - فائده - دے دلائل مذکوره نه ظاهرګ دا ثابتیږی چه دا مذکور خاصے دٔ اسم دی لیکن هرکله چه دا ثابت شو چه دا خاصے دٔ اسم دی نو دا ورسره ثابت شوه چه دا علامے دٔ اسم دی ځکه چه علامه دٔ شئ هغه شئ کیږی چه خاص وی پهٔ هغه شئ پورې.

وکذا فی علامات الفعل فتامل -

وعلامت فعل آنست که قد در اولش باشد چون قد ضرب - او علامه دٔ فعل داده چه قد یه پهٔ اول دٔ دیکښے وی لکه قد ضرب شو - او قد علامه دٔ فعل ځکه ده چه دا خاص پهٔ فعل کښے راځی او پهٔ اسما و حرف کښے نهٔ راځی او دا خاص پهٔ فعل پورې ځکه دے چه دا راځی د پاره دٔ تحقیق ده فعل مع التقریب پهٔ ماضی کښے او دٔ پاره دٔ تحقیق دٔ فعل مع التقلیل پهٔ مضارع کښے او دا معنی نه راځی مګر پهٔ فعل کښے ځکه چه ماضی او مضارع دواړه فعلین دی - یا سین باشد چون سیضرب - یا یه پهٔ اول دٔ دیکښے سین وی او دا علامه دٔ فعل ځکه ده چه دا راځی دٔ پاره دٔ استقبال قریبه او استقبال هم فعل دے نو دا خاص شو پهٔ فعل پورې. یا سوف باشد چون سوف یضرب یا په پهٔ اول دٔ دیکښے سوف وی لکه سوف یضرب شو او دا سوف خاصه ده فعل ځکه دٔ چه سوف راځی دٔ پاره دٔ استقبال بعیده او استقبال هم فعل دے نو دا خاصه دٔ فعل شوه - یا حرف جزم بود چون لم یضرب. یا یه پهٔ اول دٔ دیکښے حرف جزم وی لکه لم یضرب شو - حرف جزم خاصه دٔ فعل ځکه دٔ چه حروف جزم بعض راځی دٔ پاره دٔ نفی دٔ فعل لکه لم شو او بعض راځی دٔ پاره دٔ طلب دٔ فعل لکه لام امر شو او بعض راځی دٔ پاره ده ترک دٔ فعل لکه لاء نهی شو او بعض راځی دٔ پاره دٔ تعلیق دٔ فعل پهٔ شرط پورے لکه حرف شرط شو او نفی دٔ فعل او طلب دٔ فعل او ترک دٔ فعل او تعلیق دٔ فعل پهٔ شرط پورے دا نه موجود کیږی مګر پهٔ فعل کښے - یا ضمیر مرفوع متصل بدو پیوند چون ضربت - یا یه ضمیر مرفوع متصل پهٔ دے پورے پیوسته شوی وی لکه ضربتٔ پهٔ حرکاتو ثلاثو سره پهٔ ری کښے او ضمیر مرفوع متصل خاصه دٔ فعل ځکه ده چه مرفوع ضمیر دٔ فاعل دے او فاعل نه وی مګر فعل لره. یا تائی ساکن یا تائی ساکن پهٔ دے پورے متصل شوے وی -

چون ضربتْ ـ لکه ضربت شو او دا خاصه دهٔ فعل ځکه ده چه تائی ساکنه دلالت کوی پهٔ تانیث دهٔ فاعل یا ندے او فاعل نهٔ وی مگر فعل وی یا امر باشد چون اضرب ـ یا امر وی لکه اضرب شو او امر خاصه دهٔ فعل ځکه ده چه امر طلب دهٔ فعل ته وائی او دا نه راځی مگر پهٔ فعل کښے .

یا نهی باشد چون لاتضرب ـ یا به نهی وی لکه لاتضرب شو او دا خاصه دهٔ فعل ځکه ده چه نهی طلب دهٔ ترک دهٔ فعل ته وائی او دا نهٔ راځی مگر پهٔ فعل کښے وعلامت حرف آنست که هیچ علامتی از علامات اسم وفعل درو نباشد ـ او علامه دهٔ حرف دا ده چه یوه علامه دهٔ علاماتو دهٔ اسم او فعل نه پهٔ دیکښے نهٔ وی نو چه یو کلمهٔ نهٔ وی او نهٔ پکښے علامه دهٔ اسم وی نه دهٔ فعل نو هغه به حرف وی لکه هل شو ـ فصل بدانکه جمله کلمات عرب بر دو قسم است ـ پوهه شه چه ټول کلمات دهٔ عربو پهٔ دوه قسمه دی ـ فان قیل : چه ستا بهٔ تفصیل او تقسیم دهٔ کلے پوهٔ شوی یے اقسامو ثلاثو ته ـ یعنی اسم او فعل او حرف ته نو ثانیاً تقسیم کول مستدرک دی قلنا ـ چه تقسیمات متعدده پهٔ هغه وخت کښے مستدرک وی چه پهٔ جهت واحده سره وی او چه پهٔ جهاتو مختلفو سره وی نو هغه مستدرک نهٔ دی او دا تقسیمین پهٔ جهتین مختلفین سره دی نو مخکښے تقسیم اقسامو ثلاثو ته شوے دے پهٔ ځانله جهت سره او دلته تقسیم کوی دوؤ قسمونو ته پهٔ ځانله جهت سره چه تقسیم دے پهٔ جهت دهٔ اعراب او دهٔ بناء سره ـ

پس کلمات پهٔ اعتبار دهٔ اعراب او دهٔ بناء سره پهٔ دوه قسمه در معرب ومبنی ـ وجه دهٔ حصر پهٔ دے دوؤ قسمونو کښے دا ده چه دا کلمه بهٔ خالی نهٔ وی یا بهٔ آخیر دے مختلف کیږی پهٔ اختلاف دهٔ عوامل سره او یا به نهٔ مختلف کیږی که اول وُو نو معرب او که ثانی وُو نو مبنی ـ

پس معرب صیغه دهٔ اسم ظرف ده دهٔ اعراب نه چه پهٔ معنیٰ دهٔ ایضاح سره ده نو دهٔ معرب معنیٰ دهٔ ځائی دهٔ وضاحت او دیته دا نوم ځکه وائی چه دا هم ځائی دهٔ وضاحت دهٔ معانیو ثلاثو دے چه معنیٰ دهٔ فاعلیت مفعولیت اضافت ده آو یا دا ماخوذ دے دهٔ عَرِبَتِ المِعْدَةُ نه معنیٰ خرابه شویده معده ـ نو بیا دیته معرب ځکه وائی چه دا معرب ده باب افعال صیغه ده او پهٔ باب افعال کښے همزه راځی دهٔ پاره دهٔ سلب او ازالے ـ نو دهٔ معرب معنیٰ ده ځائی دَ دهٔ ازالے دَ فساد او دا معرب هم ځائی دهٔ ازالے دهٔ فساد دے (چه التباس دهٔ یو معنیٰ دے دهٔ معنیٰ آخر سره او پدیکښے دا التباس ځکه نهٔ راځی چه په دیکښے علامه دهٔ فاعل رفع راځی او دهٔ مفعول نصب او دهٔ مضاف الیه جر نو هر

یو معنیٰ معلو میږی پهٔ علامے خپلے سره پهٔ دے شان سره چه معنیٰ دهٔ فاعلیت معلومیږی ده رفع نه اودهٔ مفعولیت دهٔ نصب نه اودهٔ اضافت دهٔ جر نه --

اوپهٔ اصطلاح کښے معرب هغه مرکب دے چه مشابه نهٔ وی دهٔ مبنی اصل سره - اوعلامه ئے داده چه آخر ددے یه مختلف کیږی پهٔ اختلاف دهٔ عوامل مختلفو سره - آومبنی صیغه دهٔ اسم مفعول ده دهٔ بناءٔ نهٔ اودهٔ بناءٔ معنیٰ ده برقرار پاته کیدل اومتغیر نهٔ کیدل - اوپهٔ اصطلاح کښے مبنی هغه دے چه مشابه وی دهٔ مبنی اصل سره اویا واقع نه وی پهٔ ترکیب کښے اوعلامه ئے داده چه آخیر دهٔ دے بمنهٔ مختلف کیږی پهٔ اختلاف دهٔ عوامل سره - لیکن مصنف رح دهٔ پاره دهٔ تسهیل دهٔ طالبانو تعریف حقیقی نهٔ دی کړی اوتعریف باالاثر ئے کړے دے لکه چه وائی معرب آنست که آخرش باختلاف عوامل مختلف شود - معرب هغه دے چه آخر دهٔ هغه مختلف کیږی پهٔ اختلاف دهٔ عوامل سره یعنی چه عوامل پکښے مختلف راشی نو دهٔ دے آخر به هم مختلف کیږی نو چه عامل دهٔ رفع وی نو پهٔ آخر کښے به رفع وی اوچه عامل دهٔ نصب راشی نو پهٔ اخر کښے به نصب راځی اوچه عامل دهٔ جر راشی نو پهٔ آخر کښے به جر راځی -

فان قیل - چه نقض دے راغلو پهٔ انّ عمرًا قائمٌ اوپهٔ رائیت عمرًا جالسًا اوپهٔ زیدٌ ضاربٌ عمرًا ځکه چه عمرو معرب دے اوعامل وربانندے مختلف مختلف راغلے دے او آخر دهٔ دے نهٔ دے بدل شوے مختلف شوے قلنا چه مراد دهٔ عوامل مختلفو نه دادی چه مختلف وی پهٔ عمل کښے دانهٔ چه پهٔ ذات کښے مختلف وی اودلته چه دا عوامل مختلف راغلی دی نو دا نفس پهٔ ذات کښے مختلف دی اوپهٔ عمل کښے پهٔ نسبت سره عمرو ته موافق دی مختلف نهٔ دی - چون زیدٌ در جاءنی زیدٌ ورأیت زیدًا ومررت بزیدٍ مثال دهٔ معرب ) لکه زیدٌ شو پهٔ جاء نی زیدٌ کښے ورأیت زیدًا ومررت بزیدٍ کښے ، (ترکیب) جاء فعل نون وقایه یا ضمیر متکلم مفعول به زیدٌ فاعل - فعل سره دهٔ فاعل اومفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه - قوله رائیت زیدًا - رائیت فعل فاعل زیدًا مفعول به - فعل سره دهٔ فاعل اوسره دهٔ مفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه . ومررت بزیدٍ ، مررت فعل فاعل با جار زیدٍ مجرور جار سره دهٔ خپل مجرور نه متعلق دهٔ فعل سره فعل سره دهٔ فاعل اوسره دهٔ متعلق خپل نه جمله فعلیه خبریه - (تشریح الأمثله) جاء عامل است وزیدٌ معرب است وضمه اعراب است ودال محل اعراب - جاء عامل دے اوزید معرب دے اوضمه اعراب دے اودال محل ده

دهٔ اعراب دے او باقی دوه مثالونه هم په دے قیاس دی صرف په اعراب او په عامل کښے فرق دے
نو په مثال ثانی کښے عامل رأیتُ دے او اعراب نصب دے او په مثال ثالث کښے عامل باء ده او
اعراب جر دے ۔ ومبنی آنست که آخرش باختلاف عوامل مختلف نشود ۔ او مبنی کلمه هغه
ده چه آخیر دهٔ هغې په اختلاف دهٔ عوامل سره نهٔ مختلف کیږی یعنی که عامل دهٔ رفع په کښے راشی
او که دهٔ نصب او که دهٔ جر لیکن دا به په خپل حال وی ۔ چون هٰؤلاء در جاءنی هٰؤلاء ورأیتُ هٰؤلاء
ومررتُ بهٰؤلاء ۔ (ترکیب) جاء فعل نون وقایه یاء ضمیر متکلم مفعول به هٰؤلاء فاعل ۔ فعل سره
دهٔ فاعل او سره دهٔ مفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه ۔ رأیت فعل وفاعل هٰؤلاء مفعول
به فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ مفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه ۔ مررتُ ۔ فعل فاعل باء
جار هٰؤلاء مجرور جار سره دهٔ مجرور خپل نه مفعول به محلاً فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ مفعول به
خپل نه جمله فعلیه خبریه ۔

وجه دهٔ بناء دهٔ هٰؤلاء دا ده چه دا مشابه دے دهٔ حرف سره په احتیاج کښے ځکه که څرنګه
چه حرف محتاج دے ضم دهٔ کلمے اخرٰی ته (ای فی الدلالة علی معناه) نو دا رنګه دا محتاج دے مشارالیه ته (ای الا ذکره) ۔ هٰؤلاء
مثال دهٔ هغه مبنی دے چه مشابه وی دهٔ مبنی اصل سره (ای التعین) او مثال دهٔ هغه مبنی چه واقع فی الترکیب
نهٔ وی لکه زیدٌ عمرٌ وبکرٌ شو په حالت دهٔ تعداد کښے فائده ۔ معرب ئے مقدم کړے دے
په مبنی باندے ځکه معرب اصل دے په نسبت سره مبنی ته او دا اصل ځکه دے چه غرض دهٔ وضع
دهٔ الفاظو نه اظهار دهٔ ما فی الضمیر دے او دا په معرب کښے په وجه اسهل سره حاصلیږی دهٔ
مبنی نه ۔ هر کله چه فارغه شو ۔ مصنف رح دهٔ تقسیم دهٔ کلماتو نه معرب او مبنی ته او دهٔ تعریف دهٔ
هر واحد نه نو شروع ئے او کړو په تعین دهٔ کلماتو کښے چه معرب کوم دی او مبنی کوم دی نو بوئے ذیل

فصل ۔ بدانکه جمله حروف مبنی است ۔ پوهه شه چه ټول حروف مبنی دی یعنی هر
مبانی وی او که معانی وی او دا مبنی ځکه دی چه علت دهٔ اعراب په کښے نشته او علت دهٔ اعراب
دوه څیزونه دی یو ورود دهٔ معانیو ثلاثو چه معنیٰ دهٔ فاعلیت مفعولیت اضافت ده او دوئم
مشابهت کامله دهٔ اسم معرب سره ۔ واز افعال فعل ماضی وامر حاضر معروف وفعل مضارع
با نون جمع مونث وبا نون تاکید نیز مبنی است ۔ او دهٔ افعال نه فعل ماضی (بتمامها)
او امر حاضر معروف (بتمامها) او فعل مضارع سره ده نون دهٔ جمع مؤنث او سره به نون دهٔ تو

دهٔ تاکید نه هم مبنی ده - یعنی فعل ماضی او امر حاضر بتمامها مبنی دی او پهٔ فعل مضارع کښې هغه چه نون دهٔ جمع مؤنث او نون دهٔ تاکید پورې متصل شوې وی - هرچه ده ماضی او امر حاضر نو دا مبنی دی دهٔ وجې دهٔ عدم دهٔ وجود دهٔ علت دهٔ اعراب نه په دیکښې چه ورود دهٔ معانیو ثلاثو دې او مشابهت کامله دې دهٔ اسم معرب سره - او هرچه ده فعل مضارع چه اتصال پورې راغلی وی دهٔ نون دهٔ جمع مؤنث او دهٔ نون دهٔ تاکید نو دا ځکه مبنی وو چه مضارع اګرکه مشابه ده دهٔ اسم معرب سره چه اسم فاعل دې پهٔ مشابهت کامله سره لیکن نون دهٔ جمع مؤنث او نون دهٔ تاکید لازم دې دهٔ کلې سره نو ما قبل دهٔ دینه پهٔ حکم دهٔ وسط کښې دې او پهٔ وسط کښې اعراب نشی راتلې او اعراب پهٔ دې هم نشی جاری کیدلې ځکه که اعراب پهٔ دې جاری کوو نو لازمیږی اجراء دهٔ اعراب پهٔ کلمه اُخری حقیقةً او دا صحیح نهٔ ده ځکه چه کومه کلمه معرب کیږی نو اعراب په هغې جاری کیږی - آویا پهٔ دې اعراب نشی جاری کیدې ځکه چه دا نون پخپله مبنی دې نو که اعراب په دې جاری شی نو لازمیږی اعراب په مبنی باندې او دا ناروا ده - بدانکه اسم غیر متمکن مبنی است - پوهه شه چه اسم غیر متمکن مبنی دې ځکه اسم غیر متمکن هغه اسم دې چه مشابه وی دهٔ مبنی اصل سره او مشابهت دهٔ مبنی اصل سره علت دهٔ بناء دې -

واما اسم متمکن معرب است بشرط آنکه در ترکیب واقع شود - او هرچه اسم متمکن دا معرب دې پهٔ شرط دهٔ دې سره چه پهٔ ترکیب کښې واقع شی - او که چرته واقع فی التراکیب نهٔ وُو نو هغه به بیا مبنی وی لکه زیدٌ عمرٌ وبکرٌ شوُو حاصل دا دې چه اسم متمکن په دوه قسمه دې یو هغه دې چه واقع فی التراکیب وی اوّل قسم هغه دې چه واقع فی التراکیب نه وی - نو چه کوم اسم واقع فی التراکیب نهٔ وی - نو هغه به مبنی وی - دهٔ وجې دهٔ عدم وجود دهٔ علت دهٔ اعراب نه پهٔ دیکښې چه معانی ثلاثه دی،

او چه کوم واقع فی التراکیب وی نو هغه به معرب وی دهٔ وجې دهٔ وجود دهٔ علت دهٔ اعراب نه پهٔ دیکښې چه ورود دهٔ معانی ثلاثو دې لیکن مراد دهٔ وقوع فی التراکیب نه وقوع ده فی التراکیب سره دهٔ عامل دهٔ دې نه نو که ترکیب ئې راغلی وُو لیکن دهٔ عامل سره نه وُو نو هغه به معرب نهٔ وی - لکه غلام زیدٍ شوُو نو ده غلام ترکیب دهٔ لیدو سره راغلې دې لیکن دا غلام معرب نهٔ دې ځکه زید دهٔ دې لهٔ پاره عامل نهٔ دې او چه ترکیب ئې دهٔ عامل سره نهٔ وی راغلې بلکه دهٔ

بل سړی سره نو هلته په دوی نه معرب کیږی ځکه معنا دَ فاعلیت او مفعولیت او اضافت پکښې
نشته لکه په مذکور مثال کښې چه معنا دَ اضافت په زید کښې ده عمر کښې نه ده ،

و فعل مضارع معربست بشرط آنکه از نونهائے جمع مونث ونون تاکید خالی باشد، او فعل مضارع
معرب ده په شرط دَ دے چه خالی وی دَ نونات دَ جمع مؤنث نه او دَ نون تاکید نه او دا
په معرب وی دَ دې وجې دَ وجود دَ علت دَ اعراب نه په دیکښې او ده عدم مانع دَ اعراب
نه چه اجراء دَ اعراب ده په وسط کښې ، او یا په مبنی باندې ځکه لازمیده په وخت دَ وجود
دَ نوناتو مذکورو کښې او دلته هغه موجود نه دی ، او علت دَ اعراب مشابهت کامله دَ مضارع
دے دَ اسم فاعل سره لفظاً او معناً هرچه دے لفظاً نو هغه دا دے چه مضارع او اسم فاعل
مشابه دی په حرکاتو سکناتو کښې او په عدد دَ حروفو کښې او په وقوع دَ دے دواړو کښې صفت
دَ پاره دَ نکرے او هرچه دے معناً نو دَ وجې دَ کون دَ دے دواړو نه په معنا دَ حال
او استقبال سره . پس در کلام عرب بیش ازین دو قسم معرب نیست باقی همه مبنی است ، پس
په کلام دَ عربو کښې دَ دے (زیات) دوو قسمونو نه معرب نشته باقی ټول مبنی دی .

حاصل دا دے چه کلمه په دوه قسمه ده اسم او فعل او حرف . نو حروف ټول مبنی دی او فعل
په درے قسمه دے فعل ماضی فعل مضارع فعل امر حاضر نو فعل ماضی او امر حاضر هم مبنی دی
دَ وجې دَ عدم علت دَ اعراب نه په دے کښې کما مر - او دی دریو قسمونو ته مبنی اصل وائی
ځکه مبنی اصل هغه دے چه بناء دَ هغه دَ وجې دَ غیر نه نه وی بلکه مبنی وی دَ وجې دَ عدم
دَ وجود دَ علت دَ اعراب نه په دیکښې ، او فعل مضارع په دوه قسمه ده یو قسم هغه ده
چه خالی نه وی ده نوناتو دَ جمع مؤنث او دَ نون تاکید نه او اول قسم هغه دے چه خالی وی نو اول
قسم مبنی دے او دویم قسم معرب دے او اسم په دوه قسمه دے یو متمکن دے او بل غیر متمکن دے
نو اسم غیر متمکن هم مبنی دے - او اسم متمکن په دوه قسمه دے یو هغه دے چه واقع فی الترکیب
وی او بل قسم هغه دے چه نه وی . نو اول قسم معرب دے او قسم ثانی مبنی دے نو معرب صرف
دوه څیزونه دی یو اسم متمکن چه واقع فی الترکیب وی او بل فعل مضارع چه خالی وی ده
نوناتو نه

و اسم غیر متمکن اسمیست که با مبنی اصل مشابهت دارد او اسم غیر متمکن هغه اسم دے چه
دَ مبنی اصل سره مشابهت لری او اسم غیر متمکن ته دا لوم ځکه ایکری چه غیر متمکن هغه اسم دے چه ځائی نه

نه ورکوی اعرابا تو ثلاثو لره سره دَه تنوین نه ښ. او دا اسم غیر متمکن هم ځائی نه ورکوی اعرابا تو
ثلاثو لره سره ده تنوین نه - او دا اسم غیر متمکن چه مبنی کیږی نو دَه وجه دَه مشابهت نه دَه مبنی اصل
سره او مشابهت دَه مبنی اصل سره په دریو طریقو دے یو داچه اسم متضمن وی معنیٰ دَه حرف
لره لکه په این کښے چه ظرف دے او متضمن دے معنیٰ دَه حرف استفهام لره دوئم داچه مشابهت
ئے داغلے په احتیاج کښے لکه هٰؤلاء شو نو دا مشابه دے دَه حرف سره په احتیاج کښے
ځکه لکه څرنګه چه حرف محتاجه دے په دلالت کښے په معنیٰ خپلے باندی ضم دَه کلمے اُخریٰ
ته نو دارنګه هٰؤلاء محتاجه دے مشار الیه ته او دریئم داده چه اسم واقع شوے وی په ځائے
دَه وقوع دَه مبنی اصل لکه نزال شو چه اسم فعل دے او واقع دے په ځائی ده اِنْزِلْ باندے دے -
او څلورم دا دے چه یو اسم مشابه وی په وزن کښے دَه داسے اسم سره چه هغه واقع وی په ځائی
دَه وقوع ده مبنی اصل کښے لکه فَجَارِ شو و په معنیٰ ده زناکار سره چه دا مشابه دے دَه مبنی نَزَالِ
سره په وزن کښے او نزال واقع دے په موقع دَه مبنی اصل کښے چه اِنْزِلْ دے پنځم داچه یو اسم
وی او واقع وی په ځائی دَه هغه اسم کښے چه هغه مشابه وی دَه مبنی اصل سره لکه زید شو و په
یا زَیْدُ کښے دا زید واقع دے دَه کاف خطابیه اسمیه په ځائی کښے ځکه چه یا زیدُ په معنیٰ
دَه اَدْعُوکَ سره دے او کاف اسمی خطابی مشابه دے دَه کاف حرفی خطابی سره او کاف
حرفی خطابی مبنی دے - ،

---

و مبنی اصل سه چیز است فعل ماضی و امر حاضر معروف و جمله حروف، هر کله چه په تعریف دَه
اسم غیر متمکن کښے ذکر دَه مبنی اصل او شو نو تعین دَه مبنی اصل ضروری دُو چه مبنی اصل کوم شئ دے
نو مصنف رح دَه هغے دَه بیان دَه پاره دا عبارت لیکلو ده چه و مبنی اصل سه چیز است الخ او مبنی اصل
درے څیزونه دی فعل ماضی امر حاضر معلوم او ټول حروف، او مبنی اصل دیته وائی چه بناء په
کښے دَه اصل وضع نه راغلے وی نه دَه وجے دَه مشابهت دَه مبنی اصل نه -

---

و اسم متمکن اسمیست که با مبنی اصل مشابه نباشد - او اسم متمکن هغه اسم دے چه دَه مبنی اصل
سره مشابهت نه لری دَه اسم متمکن معنیٰ ده ځائے ورکو لکے او دا هم په ځان کښے ځائے ورکوی
اعرابا تو ثلاثو لره سره دَه تنوین نه - پس ددینه اوزده کړه دا خبره چه اسم غیر متمکن په
اته قسمه دے اول مضمرات دوئم اسمائے اشارات دریئم موصولات څلورم اسمائے افعال پنځم اصوات

شپږم ظروف اووم کنایات او اتم مرکب بنائی نکه دیته اشاره کړیده مصنف رح په دې قول خپل سره

**فصل** بدانکه اسم غیر متمکن بر هشت قسم است اول مضمرات - پوهه شه چه اسم غیر متمکن په اته قسمه دے اول مضمرات دی - مضمرات ئے مقدم کړه په باقیو اقسامو باندے ځکه چه مضمرات اصل دی په نسبت سره باقی اقسامو ته او دا اصل ځکه دی چه دا اعرف دۀ ټولو معارفو نه دے - پس مضمرات جمع دۀ مُضْمَرَةٌ ده او مضمر په لغت کښے مشتق دے دۀ اضمار نه او اضمار پټولو ته وائی او په اصطلاح دۀ نحاتو کښے مضمر هغه اسم دے چه وضع شوے وی دۀ پاره دۀ ذات متکلم یا دۀ ذات مخاطب یا دۀ ذات غائب، او دیته مضمر ځکه وائی چه دلته هم یو مقصودی شئ وُر نو هغه پټ کړے شوے دے او دا ضمیر تر دیته کنایه کړهٔ لے شویده او یا دیته مضمر ځکه وائی چه مضمر مشتق دے دۀ ضُمُورُ نه او ضُمُورُ وائی خوار والی ته او خوار دیته وائی چه قلت دۀ لحم وی پکښے او په دیکښے هم خوار والی دے یعنی قلت دۀ حروفو دے پکښے اکثر۔

اول مضمرات چون انا من مرد و زن - لکه انا شو و معنیٰ زه یو سړے او زه یو ښځه دا مثال دۀ ضمیر مرفوع منفصل دے وضربت زدم من او ضربتم معنیٰ وهل کړی دی ما - دا مثال دۀ مرفوع متصل دے وایای خاص مرا - او ایای معنیٰ خاص ما لره دا مثال دۀ منصوب منفصل دے - وضربنی بزد مارا او لکه ضربنی معنیٰ وهلے یئے یم زه دا مثال دۀ منصوب متصل دے ولی مرا - او لی معنیٰ ما لره دا مثال دۀ مجرور متصل دے او دۀ مجرور منفصل مثال ئے نۀ دے خودلے ځکه مجرور صرف یو قسم دے چه متصل دے او منفصل نشته،

پس اذره کړه دا خبره - چه ضمائر شپیته الفاظ دے او دال دی په نوی معانیو باندے ځکه چه ضمیر پنځهٔ قسمه دے مرفوع متصل مرفوع منفصل منصوب متصل منصوب منفصل مجرور متصل او هر واحد لره اتلس معانی دی نو اتلس لره چه پنځو کښے ضرب ورکړے نو حاصل القرب ئے لس اتیا راځی او هر واحد لره اتلس معانی دی ځکه هر واحد دۀ دے ضمیر نه به خالی نه وی نو یا به غائب وی یا به مخاطب وی او یا به متکلم وی بیا هر واحد دۀ دوئی نه به یا مذکر وی یا مؤنث بیا هر واحد ده مذکر مؤنث نه یا به واحد وی یا به تثنیه وی او یا به جمع وی نو چه غائب مذکر وی نو هغه درې قسمه شو واحد تثنیه جمع او چه غائب مؤنث وی نو هغه هم شان درے قسمه شو او چه مذکر مخاطب وی

نو هغه هم واحد تثنیه جمع او چه مؤنث مخاطب وی نو هغه هم واحد تثنیه جمع او چه متکلم
مذکر وی نو هغه هم واحد تثنیه جمع او چه متکلم مؤنث وی نو هغه هم واحد تثنیه او جمع
نو شپږ[6] ولره چه ضرب ورکړے په دریو[3] کښے نو حاصل الضرب ئے اتلس[18] راځی ۔
او هرچه کوم دے الفاظو دالوستیں نو دا ځکه دے چه وضع دَ ضمائرو په اختصار ده نو دَ
پاره دَ حصول دَ اختصار اشتراک اوکړے شو په واحد متکلم مذکر او مؤنث کښے،
او په تثنیه متکلم او جمع متکلم مذکر او مؤنث کښے نو یو لفظ دال شو په واحد متکلم مذکر
او مؤنث او بل لفظ دال شو په تثنیه متکلم او په جمع متکلم مذکر او مؤنث نو څلور
الفاظ په متکلم کښے کم شو او دا رنګه اشتراک کړے شوے دے په تثنیه مذکر
او مؤنث غائبین کښے او په مخاطبین کښے نو دوه[2] الفاظ په تثنیه کښے کم شو نو دَ اتلس[18]
نه دوولس[12] پاتی شو نو پنځه ځله چه شپږ شپږ ئے نو حاصل دَ جمع ئے دیرش[30] راځی
نو ټول دیرش[30] الفاظ کم شو نو باقی نهه پاتے شو دننه نه
او دا تحقیق دے دَ استاذ مکرم، او صاحب نحومیر اشتراک نهٔ تثنیے مذکر او مؤنث
ته نهٔ دے کتلی نو اویا[70] الفاظ ئے شمیر کړے دی او دیته اشاره کړے ده مصنف رح په دے
قول خپل سره واین هفتاد ضمیر است، او دا اویا[70] ضمائر دے چهارده مرفوع متصل
ضَرَبْتُ ضَرَبْنَا ضَرَبْتَ الی اخره ۔ څوارلس[14] مرفوع متصل دی لکه ضربت الخ قوله مرفوع مرفوع
صیغه دَ اسم مفعول دَ په معنیٰ دَ اوچت کړے شوی سره او په اصطلاح کښے هغه
ضمیر دے چه مبتدا یا خبر یا فاعل واقع شوے وی. قوله متصل متصل صیغه دَ اسم فاعل
دَ ده باب افتعال نه معنیٰ میلاوید ونکے او په اصطلاح کښے متصل هغه ضمیر دے چه غیر
مستقل بنفسه وی یعنی یوازی نشی استعمالیدلے،
نو پس ضمیر مرفوع متصل هغه ضمیر دے چه فاعل واقع شوے وی او متصل وی دَ عامل خپل
سره نو ضمیر مرفوع متصل به همیشه فاعل وی او مبتداء او خبر نشی راتلے ځکه چه هلته بیا
اتصال نشی کیدے دَ عامل خپل سره ځکه چه اتصال امر لفظی دے او په مبتدا او خبر کښے
عامل معنوی دے نو دَ عامل معنوی سره اتصال نشی کیدے ۔
فائده ۔ ضمیر مرفوع متصل په دوه[2] قسمه دے یو بارز دویم مستتر ۔ بارز هغه دے چه

په هغه باندې تلفظ کیدلې شي او دیته بارز ځکه وائي چه بارز صیغه د اسم فاعل ده د دې معنیٰ ده ظاهریدونکې او دائم ظاهر ده په لفظ کښې او مستتر صیغه دې چه په هغې باندې تلفظ نشي کیدلې او دیته مستتر ځکه وائي چه مستتر وائي پټیدونکې او دائم پټیدونکې دې ځکه چه ظاهر په لفظ کښې نشته وچهارده مرفوع منفصل، او څوارلس د پاره د مرفوع منفصل دي. قوله منفصل منفصل صیغه د اسم فاعل ده د باب انفعال نه د دې معنیٰ ده جدا کیدونکې او په اصطلاح کښې منفصل هغه ضمیر دې چه مستقل بنفسه وي یعنې ذکر شي کیږي بغیر د عامل نه او عامل ته ئې ضرورت نه وي په ذکر کښې،

پس ضمیر مرفوع منفصل هغه ضمیر دې چه د عامل خپل نه جدا وي. او په ترکیب فاعل یا مبتدأ یا خبر واقع شوې وي لکه اَنَا نَحْنُ اَنْتَ اَنْتُمَا کُنْتُو وچهارده منصوب متصل. او څوارلس ضمائر منصوبه متصله دي قوله منصوب منصوب صیغه د اسم مفعول معنیٰ نصب ورکړې شوې او په اصطلاح کښې هغه ضمیر دې چه واقع شوې وي مفعول به یا واقع شوې وي معمول د عامل ناصبه او دیته منصوب ځکه وائي چه دې لره هم نصب ورکړې شوې دې قوله متصل تیر تشریحه، پس ضمیر منصوب متصل هغه ضمیر دې چه متصل وي د عامل خپل سره او په ترکیب کښې معمول د عامل ناصبه واقع شوې وي، لکه ضَرَبَنِي ضَرَبَنَا الخ. وچهارده منصوب منفصل، او څوارلس ضمائر منصوبه منفصله دي. او ضمیر منصوب منفصل هغه ضمیر دې چه جدا وي د عامل خپل نه او په ترکیب کښې معمول د عامل ناصبه واقع شوې وي لکه اِیَّایَ اِیَّانَا الخ وچهارده مجرور متصل. او څوارلس ضمائر مجروره متصله دي قوله مجرور مجرور صیغه د اسم مفعول ده د دې معنیٰ لغوي. ده جر ورکړې شوې او په اصطلاح کښې مجرور هغه ضمیر دې چه واقع شوې وي معمول د عامل جاره او تفصیل د متصل تیر شو میدې. پس ضمیر مجرور متصل هغه ضمیر دې چه متصل وي د عامل خپل سره او په ترکیب کښې معمول د عامل جاره واقع شوې وي لکه لِیْ لَنَا لَکَ لَکُمَا لَکُمْ الخ ستوو،

هر کله چه فارغ شو مصنف رح د بیان نه د یو قسم د اسم غیر متمکن نه چه مضمرات دي نو شروع ئې اوکړه په بیان د قسم ثاني د اسم غیر متمکن کښې نو وئې ویل۔

دوهم اسمائے اشارات۔ قسم ثانی ده اقسامو دَ اسم غیر متمکن نه اسمائے اشارات
دی دوئ ته اسمائے اشارات حُکه وائی چه دوئ اسماء دی او راځی دَ پاره دَ اشارے
کولو حُکه چه پهٔ دوئ سره اشاره کولے شی مشارٌ الیه ته:-
پس اسماء جمع دَ اسم ده او اشارات جمع دَ اشارةٌ ده دَ اشارے لغوی معنی اشاره کول
او په اصطلاح کښے اسمائے اشارات هغه اسماء دی چه وضع کړے شوی وی دَ پاره دَ
تعین دَ مشارالیه او مشارالیه هغه شئ ته وائی چه کوم ته اشاره اوکړے شی او مشارالیه ته
مشارالیه حُکه وائی چه دَ مشارٌ الیه معنیٰ ده اشاره کړے شوے دیته او مشارالیه هم یو شئ
دے چه اشاره ورته کړے شویده ،
پس اسمائے اشارات پنځه قسمه دی او معانی مدلوله ورله شپږ دی هرچه دے کون
دَ معانی سته حُکه چه مشارالیه به خالی نهٔ وی یا به مذکر وی او یا به مؤنث وی بیا هر
واحد ده مذکر او مؤنث نه یا به مفرد وی یا تثنیه یا جمع نو درے مذکر شو او درے
مؤنث شو نو مجموعه شپږ شو او الفاظ دالـه پهٔ دوئ پنځه حُکه دی چه دَ جمع مذکر
او مؤنث دَ پاره یو لفظ راځی چه اولآء دے په مد سره یا اُولیٰ دے په قصر سره۔
فائده ۔ اسمائے اشارات مبنی حُکه دی چه دوئ محتاج دی مشارالیه ته پهٔ تعین
کښے نو مشابه شوُ ده حرف سره پهٔ احتیاج کښے او دا علت ده بناء دے ۔ ذَا وذَانِ
وذَیْنِ وتَا وتِیَ وتِهٔ وذِهٔ وذِهِیْ وتِهِیْ وتَانِ وتَیْنِ واُولآءِ بمد واُولیٰ بقصر۔ هغه
اسمائے اشارات ذَا او ذانِ الخ دی ذا راځی ده پاره دَ اشارے کولو دَ مفرد مذکر او ذَانِ
دَ پاره ده تثنیه مذکر او ذَین هم دَ پاره ده تثنئے خو ذَانِ په حالت رفعی کښے او ذَیْنِ په حالت نصبی
او جری کښے او تَا او تِی الی تِهِی ۔ دا راځی دَ پاره دَ مفرد مؤنث او تَانِ او تَیْنِ راځی ده پاره دَ
تثنئے مؤنث تَانِ په حالت رفعی کښے او تَیْن په حالت نصبی جری کښے او اولآء او اُولیٰ ۔ راځی دَ
پاره دَ جمع مذکر او مؤنث ،
فان قیل ۔ چه اسمائے اشارات خو مبنی دی او مبنی په حالت رفعی او نصبی او جری کښے نه
مختلف کیږی نو ذَانِ او ذَیْنِ او تَانِ او تَیْن حُلکه مختلف شو قلنا۔ چه پهٔ مبنی کښے هغه
اختلاف نشی راتلے چه کوم دَ وجے دَ عامل نه راځی او دلته دا اختلاف دَ وجے دَ عامل نه دَ

راغلي بلکه دا اختلاف دَ وضع دَ واضع نهٔ راغلي دے. او نقول چه ذان او زين اوتان او تين معرب دي. فان قيل - چه هر کلمه دا معرب وُو نو بيا ئے دا په بيان دَ اسم مبني کښې ولے ذکر کړه او دا بيان دَ اسم مبني ځکه دے چه دا بيان دَ اقسامو دَ اسم غير متمکن دے او هغه مبني دے قلنا - دا اگر که معرب وُو ليکن هر کله چه ذکر ده باقي اسمائے اشارات او شو نو دا ورسره شريک وُو په کون دَ دوي کښې اسمائے اشارات نو دائے هم ذکر کړه بالتبع. سوم اسمائے موصوله - دريم قسم دَ اسم غير متمکن نه اسمائے موصوله دي اسمائے موصوله هغه اسماء دي چه بغير دَ صلے نه کامل جزء دَ جملے نشي واقع کيدے او قيد دَ کامل په تعريف کښې ځکه دے چه نفس جزء دَ جملے بغير دَ صلے نه واقع کيدے شي او صله په لغت کښې جملةٌ مذکورةٌ بعد الشئ لايتم ذالک الشئ الابها (ترجمه) دا يوه جمله ده چه مذکوره وي پس دَ شئ نه چه نهٔ تماميږي دغه شئ مګر په دے جملے سره، [لهٰذا في حاشية ملاجامي ۱۲]

او په اصطلاح کښې جملةٌ مذکورةٌ بعد الموصول لايتم الابها - (ترجمه) صله يوه جمله ده چه مذکوره وي پس دَ موصول نه چه نهٔ تماميږي دغه موصول مګر په جملے سره. [دغه]

پس اوس کړلا داخبره، چه صله به جمله وي ځکه چه په صلے سره بيان دَ موصول کيږي او بيان نه راځي مګر په جملے سره ليکن جمله خبريه به وي او جمله انشائيه نشي راتلے ځکه چه دَ صلے دَ خپل موصول سره ربط وي او جمله انشائيه قايده دَ ربط نه ده ځکه چه جمله انشائيه موجود نهٔ ده نو قايده دَ ربط به څنګه شي،

او په صله کښې لابدي وي دَ يو ضمير نه چه راجع وي موصول ته ځکه چه جمله مستقله بنفسه وي او صله خو مربوط وي دَ مبتداء سره نو ځکه ضروري شو چه ربط را ولي دَ صلے دَ موصول خپل سره. فان قيل - چه ته وائي چه صله به جمله وي نو نقض دے راغلي په الف لام موصوليو باندے ځکه چه دَ دوي صله خو اسم فاعل او اسم مفعول راځي قلنا - چه مونږ مراد په موصولاتو سره (چه صله به ئې جمله وي) موصولات دي غير دَ الف لام موصوليو نه - [... او دا مفرد دي ۱۲] الذي الذان الذين - هغه موصولات دا دے الذي راځي موصول دَ مفرد مذکر او الذان او الذين دَ تثنيه مذکر او الذين دَ جمع مذکر او التي دَ مفرد مؤنث او اللتان اللتين دَ تثنيه مؤنث او اللاتي او اللواتي دَ جمع مؤنث

**قوله وما ومن** - ما او من عام دی دهٔ مفرد مذکر تثنیه مذکر جمع مذکر. مفرد مؤنث تثنیه مؤنث جمع مؤنث ټولو دهٔ پکاره راځی نو تعبیر به قرینه کولے شی پهٔ الذی الخ سره په مناسبت دهٔ مقام سره **قوله وایٌ وایّةٌ** ، اوبل دهٔ موصولات نه ای او ایة دی -

**والف لام بمعنی الذی در اسم فاعل واسم مفعول** اوبل الف لام دے چه پهٔ معنی دهٔ الذی سره پهٔ اسم فاعل او اسم مفعول کښے ، یعنی الف لام موصولی هغه دے چه پهٔ اسم فاعل او اسم مفعول کښے راځی چون الضاربُ والمضروبُ لکه الضّاربُ او المضروب شو پهٔ معنی دهٔ الذی ضَرَبَ یا ضُرِبَ معلوم یا مجهول سره ؛

**فائده** - دهٔ الف لام موصولیهٔ صله به اسم فاعل او اسم مفعول وی ځکه چه الف لام موصولی مشابه دی دهٔ الف لام حرفی سره په صورت کښے او هغه تقاضا دهٔ دخول کوی پهٔ مفرد او دا الف لام موصولی پهٔ معنی دهٔ الذی التی سره دی او هغه موصولات دی تقاضا دهٔ دخول کوی پهٔ جمله نو دهٔ دواړو تقاضا دهٔ صورت پوره کول هم ضروری شو او دهٔ معنی هم او دا تقاضا دهٔ صورت او معنی ایهٔ هله پوره شی چه دواړو داخل شی پهٔ داسے اسم چه مفرد وی صورةً او جمله وی معنیً او هغه نه دی مگر اسم فاعل او اسم مفعول . نو دواړه داخل شو پهٔ اسم فاعل او اسم مفعول ، او اسم فاعل او اسم مفعول صله شوه دهٔ پکاره دهٔ دواړو ، او اسم فاعل او اسم مفعول صورةً مفرد دی ځکه لکه څرنګه چه پهٔ مفرد کښے تصرف نه کیږی تکلماً خطابةً غیبةً نو په دی دواړو کښے هم نه کیږی لکه انا رَجُلٌ انت رَجُلٌ هو رَجُلٌ انا ضاربٌ انت ضاربٌ هو ضاربٌ ، او جمله معنیً ځکه دے چه جمله دیته وائی چه ذات او صفت وی پهٔ کښے او په دیکښے هم ذات او صفت شته ځکه چه پهٔ ضاربٌ او مضروبٌ کښے ضمیر مستتر دے نو هغه ذات دے او دا ضاربٌ او مضروبٌ ورله صفتونه دی تامل -

**وذو بمعنی الذی در لغت بنی طی** - اوبل دهٔ موصولاتو نه ذو دے چه پهٔ معنی دهٔ الذی سره دے پهٔ لغت دهٔ بنی طی کښے او دیته ذو طائیه وائی ځکه چه دا منسوب دے بنی طی ته -

پس ذو پهٔ دوه معنو سره راځی یو پهٔ معنی دهٔ صاحب سره او دا معرب دے اوبل خاص دهٔ بنی طی پهٔ نزد دے پهٔ معنی دهٔ الذی سره او دا به مبنی دے ، او بنی طی دلیل شی پهٔ دے قول دهٔ شاعر سره - شعر -

فان الماء ماء ابی وجدی ۔ وبئری ذو حفرت وذو طویت ۔

ای الذی حفرتُ والذی طویتُ معنیٰ بیشکه اوبهٔ اوبهٔ دهٔ پلار زما دی او اوبهٔ دهٔ هغه کوهی دی چه هغه ما کنستلے دے او ماجوړ کړے دے ۔ نحو جاءنی ذو ضربک یعنی راغلے هغه سړے چه وهلے شے تهٔ (ترکیب) جاء فعل نون وقایه یاء ضمیر متکلم مفعول به ذو موصول بمعنی الّذی ضرب فعل ماضی معلوم ضمیر پکښے مستتر دے فاعل کیږے دهٔ فعل او (ک) ئے مفعول به ۔ فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ مفعول به خپل نه جمله خبریه صله کیږی دهٔ فعل چه جاء دے فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ مفعول به خپل جمله فعلیه خبریه

بدالکه ای و اَیَّةٌ معرب است ۔ غرض دهٔ دے عبارت نه دفع دهٔ یو وهم دے هغه وهم دا دے چه ایٌّ او ایّةٌ به مبنی وی ځکه دا ذکر شوی و پهٔ بحث دهٔ مبنی کښے نو مصنف رح ووئیل چه دا معرب دی فان قیل چه هر کله دا معرب وو نو پهٔ بحث ده مبنی کښے ولے ذکر کړه قلنا چه پهٔ مبنی کښے ئے ځکه ذکر کړی دی چه په دے دواړو کښے څلور حالتونه راځی نو اګر چه پهٔ باقی ټولو حالتونو کښے معرب دی لیکن پهٔ یو حالت کښے مبنی راځی نو نه هغی پهٔ اعتبار سره ئے ذکر کړه په بحث دهٔ اسم مبنی کښے ۔ او نقول چه باقی موصولات مبنی وو نو هغه ذکر کول ضروری وو ځکه چه دا بیان دهٔ اسم مبنی دے چه اسم غیر متمکن دے نو دا ایٌّ او ایّةٌ اګر چه معرب وو لیکن دهٔ موصولاتو سره شریک وو پهٔ موصولیت کښے نو دا ئے ذکر کړه بالتبع ۔

پس اذره کړه داخبره، چه اَیٌّ او اَیَّةٌ لره څلور حالتونه دی یو دا چه غیر مضاف وی او صدر دهٔ صلے یئے مذکور وی لکه ایٌّ هو قائمٌ دویم دا دے چه غیر مضاف وی او صدر دهٔ صلے مذکور نهٔ وی لکه ایٌّ قائمٌ شو او دریم دا دے چه مضاف هم وی او صدر ده صلے یئے هم مذکور وی لکه اَیُّهُمْ هو قائمٌ شو او څلورم دا دے چه مضاف وی ۔ او صدر دهٔ صلے ئے مذکور نهٔ وی لکه اَیُّهُمْ قائمٌ شو نو په اولو دریو حالتونو کښے دا معرب دی او پهٔ څلورم صورت کښے مبنی دی ۔

خطاط

محمد طیب طاهری بن مولوی عبد الغیاث القندهاری رح حالاً کوئټه بلوچستان ایرپورټ روډ مسلم آباد

١٢/١٠/٩٢ء ١٥/٥/١٤١٣ھ ۔

**چهارم اسمائے افعال** ، څلورم قسم ده اتو اقسامو دَ اسم غیر متمکن نه اسمائے افعال دی ، اسماء مضاف دے او افعال ئے مضاف الیه دے مضاف سره دَ مضاف الیه خپل نه مرکب اضافی ، دَه دے ترکیبی معنیٰ ده اسماء ده افعال لهٰذا اصطلاح کښے هغه اسماء دی چه په اعتبار دَ وضع سره په معنیٰ دَ امر حاضر یا دَ ماضی سره وی ، او دوئی ته اسمائے افعال ځکه وائی چه دا هم اسماء دی او په معنیٰ دَ افعالو سره دی . **فان قیل** چه اسم هغه کلمه ده چه دلالت کوی په معنیٰ خپله باندے بغیر دَ ضم دَ کلمے اخریٰ نه او مقترن نه وی ده یو زمانے سره دَ ازمنو ثلاثو مخصوصو نه او فعل هغه کلمه ده چه دلالت کوی په معنیٰ خپله باندے بغیر دَ ضم دَ کلمے اخریٰ نه او مقترن وی دَ یو زمانے سره دَ ازمنو ثلاثو مخصوصو نه نو په مابین دَ اسم او دَ فعل کښے تضاد دے او ته دوئی اسمائے افعال وائی نو دا خو اجتماع ضدین لازم شوه ،

**قلنا** . چه اسم او فعل اگرچه ضدین دی لیکن دلته اجتماع دَ ضدینو نه لازمیږی ځکه چه اعتبارین مختلف دی په دے شان سره چه دوئی ته اسماء وائی په اعتبار دَ وضع اول سره او افعال ورته وائی په اعتبار ده وضع ثانی سره .

**وآں بر دو قسم است اول بمعنی امر حاضر** ، او دا اسمائے افعال په دوه قسمه دی اول په معنیٰ دَ امر حاضر سره چون رُوَیدَ ـ نکه روید شو په معنیٰ دَ اَمهِل سره یعنی مهلت ورکړه وَبَلْهَ او نکه بَلْهَ شو په معنیٰ دَ دَعْ یعنی پریږده ته وَحَیَّهَلْ . او نکه حَیَّهَلْ شو په معنیٰ دَ اِیتِ سره یعنی راشه ، وَهَلُمَّ او نکه هلم شو دا هم په معنیٰ دَ ایتِ سره دے دا مصنف ره مشهور ذکر کړی دی باقی نور هم شته نکه دُونَکَ په معنیٰ ده خُذ ـ او هَآ په معنیٰ دَ خُذ او قَطْ په معنیٰ دَ اِنْتَهِ وعلیک په معنیٰ دَ الزم او صَهْ په معنیٰ دَ اُسْکُتْ . **دوم بمعنی فعل ماضی** ـ او دویم قسم اسمائے افعال دی په معنیٰ دَ فعل ماضی سره چون هَیْهَاتَ نکه هیهات شو په معنیٰ دَ بَعُدَ سره یعنی لری وه وشتّانَ . او نکه شتّان شو په معنیٰ دَ افترق سره ـ

فائده ، اسمائے افعال په دوه قسمه دی یو په معنیٰ دَ امر حاضر سره دی

او دا مشهور شپږ دي رُوَيْدَ، بَلْهَ حَيْهَلْ، هَلُمَّ، دُونَكَ هَا او دغه دولئ نه چه روسته کوم اسم
واقع شي نو هغه به منصوب وي بنا بر مفعوليت دَ پاره دَ دے اسمائے افعال
ځکه چه دا اسمائے افعال په معنیٰ دَ امرحاضر دَ فعل متعدي سره دي او فعل متعدي په
مفعول به کښے عمل دَ نصب کوي، او که ته وائې چه هرکله مابعد اسم ظاهر واقع
مفعول به شوه نو فعل خو بغير دَ فاعل نه نشي راتلے نو دَ دے فاعل هم نشئ رے نو مونږ
وايو ضمير مستتر دے او فاعل دَ دولئ به هميشه ضمير وي او اسم ظاهر نشي راتلے ځکه که
فاعل ئے اسم ظاهر راشي نو اسناد به ئے اوشي اسم ظاهر ته نو دا خو حا فردي ځکه چه په
معنیٰ دَ امرحاضر سره دي او اوبه ګرځي غائب او دا هيڅ نه ده،
او هر چه دي په معنیٰ دَ فعل ماضي سره نو هغه درے دي هَيْهَاتَ شَتَّانَ سَرْعَانَ پس ده
دولئ نه چه روسته کوم اسم واقع شي نو هغه به مرفوع وي بنا بر فاعليت ځکه چه دا
په معنیٰ دَ فعل ماضي سره دي دَ فعل لازمي نه او مابعد ئے فاعل دے او فعل په فاعل کښے
عمل دَ رفع کوي ۔

پس دَ هغه اسمائے افعال مبني دي ځکه چه دا مشابه دي دَ مبني اصل سره په اعتبار دَ معنیٰ
سره ځکه چه بعض په معنیٰ دَ امرحاضر سره دي. نو مشابه شو دَ امرحاضر
سره او هغه مبني اصل دے او بعض په معنیٰ دَ فعل ماضي سره دي نو مشابه شو دَ
فعل ماضي سره او فعل ماضي هم مبني اصل دے ۔

پنځم اسمائے اصوات ۔ او پنځم قسم دَ اقسامو دَ اسم غير متمکن نه اسمائے اصوات
دي او دا هم مرکب اضافي دے او اصوات جمع دَ صوت دَه او صوت معنیٰ آواز
او اسمائے اصوات هغه الفاظ دي چه په هغو سره دَ هم اواز نقل شوے وي او يا پرے
اواز کړے شوے وي بچهار پایه وغيره ته او دغه تعريف صاحب دَ کافيه کړے
دی لکه وائي الأصوات ماحُکِيَ به صوت اوصُوِّت به البهائم ۔

چون اُحْ اُحْ وَاُفْ وَبَخْ وَنَخْ وَغَاقِ ۔ قوله اح اح دا هغه اواز دے
چه دا اوزي په وخت ده ټوخي کښے آو اُف هغه اواز دے چه په وقت ده درد کښے دا اوزي
ده خولے نه او بخ هغه اواز دے چه کوم دَ خوشحالئ په وخت کښے خارجيږي،

اوَنخ هغه اواز دے چه کولے شی دَ پاره دَ کینولو دَ اوښ اَوعاق هغه اواز دی چه نقل کولے شی دَ اواز ده کارغه ، او دا تول اسمائے اصوات مبنی دی ځکه چه دا واقع فی الترکیب نهٔ دی

فان قیل ۔ چه هر کله علت دَ بناء دَ اصوات عدم وقوع فی الترکیب ده نو چه کله دا واقع شی په ترکیب کښے پهٔ دے شان سره چه او وائی یو سړے په طریقے دَ حکایت سره چه قال زیدٌ عاقِ نو پکار ده چه دا دے معرب شی او حال دا دے چه دا هغو مبنی دی قلنا ۔ چه دا هم مبنی دی خو دَ دے حیثیت نه نهٔ دی مبنی چه واقع فی الترکیب نه دی ځکه چه واقع فی الترکیب خو دی لیکن مبنی دی دَ دے حیثیت نه چه دا حکایت دے دَ هغه اصوات نه چه واقع فی الترکیب نهٔ دی ۔

پس اذدہ کړه دا خبره ، چه اصوات جاریه په لسان دَ انسان په دوهٔ قسمه دی یو قسم منقوله دی او بل غیر منقوله دی ، منقوله بیا پهٔ دوهٔ قسمه دی یو قسم هغه دی چه نقل شوی وی باب دَ مصادرو نه او مصدریة ورسره لازم وی لکه واهاً نو دَ دے قسم حکم پهٔ شان دَ مصدر دے دویم قسم هغه دی چه نقل شوی وی باب دَ مصادرو نه او مصدریة ورسره لازم نهٔ وی بلکه اسم فعل کرځیدلے وی لکه صَهْ نو دَ دے حکم په شان دَ اسمائے افعال دے ،

او اسمائے اصوات غیر منقوله پهٔ درے قسمه دی یو قسم هغه دی چه جاری کیږی پهٔ لسان دَ انسان باندے پهٔ وخت ده عروض دَ یو معنیٰ لکه لفظ دَ وَیْ شودَه پاره دَ تَنَدُّم او وَخْ شو دَه پاره دَ تعجب ۔ او دویم قسم هغه هغه دی چه جاری کیږی په لسان دَ انسان دَ پاره دَ حکایت پهٔ دے شان سره چه صادر کړی دا انسان دَ نفس خپل نه یو اواز چه مشابه وی دَ صوت دَ غیر سره لکه عاقِ شو دَ پاره دَ تشبیه دَ اواز دَ کارغه ، او دریم قسم هغه دی چه جاری کیږی پهٔ لسان دَ انسان دَ پاره حیوان یا دَ پاره دَ شړلو یا ده را بللو یا دَ کینولو ، او مقصود دلته په ذکر سره دا اصوات غیر منقوله دی نه منقوله او دا درے واړه قسمونه مبنی دی ۔

شَشم اسمائے ظروف ، شپږم قسم دَ اتو قسمونو دَ اسم غیر متمکن نه اسمائے

حروف دی. اضافت دهٔ فارسی دے او مرکب اضافی دے او ظروف جمع دهٔ ظرف ده ظرف
و نیٔ هغه شی ته چه بل شیٔ پهٔ کښې کیخودلے کیږی او په اصطلاح کښې اسماءٔ
ظروف پهٔ دوهٔ قسمه دی یوٓ زمان او بلٓ مکان اسم ظرف زمان هغه لفظ دے چه دلالت کوی
په زمانه دهٔ وقوع دهٔ فعل باندے او ظرف مکان هغه لفظ دے چه دلالت
کوی په ځائے دهٔ وقوع دهٔ فعل باندے - ظرف زمان چون اِذْ لکه اذ شوٗ معنیٰ وقت
وو اذ راځی دهٔ پاره ده ماضی اګرچه په مضارع داخل شی او دا مبنی حُکه دے چه
د مشابه دے دهٔ حرف سره پهٔ وضع کښې یعنی لکه څرنګه چه حرف د دوهٔ حرفونو راځی لکه
هَلْ شوٗ نو په دیکښې هم دوهٔ حرفه دی یعنی وضع یئے شویده په حرفینٔ
باندے مثال دهٔ اِذْ لکه جئتک اذ طلعت الشمس ، و اذا - او لکه اذا شوٗ دا راځی دهٔ
پاره دهٔ معنیٰ مستقبل اګرچه داخل شی په ماضی باندے نو که چرته په ماضی داخل
شوے وی نو هم به معنیٰ دهٔ دے استقبال وی لکه اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰہِ ، او دا مبنی حُکه دے
چه متضمن دے معنیٰ دهٔ حرف شرط لره نو مشابه شوٗ دهٔ حرف سره او اسم
چه مشابه شی دهٔ حرف سره نو مبنی کیږی ومتیٰ ، او لکه متیٰ شوٗ دا راځی دهٔ پاره
ماضی او مستقبل دواړو بیا دا په دوهٔ قسمه دے یوٓ متیٰ استفهامی دوهٔم متیٰ
شرطی د استفهامی استفهامی معنیٰ ده کوم وقت لکه مَتیٰ تُسَافِرُ او دهٔ متیٰ شرطی معنیٰ ده
څه وقت لکه متیٰ تَذْهب اَذْهبْ ، پس متیٰ استفهامی مبنی دے حُکه
چه دا متضمن دے معنیٰ دهٔ حرف استفهام لره نو مشابه شوٗ دهٔ حرف سره ، او متیٰ شرطی
هم مبنی دے حُکه چه دا متضمن دے معنیٰ دهٔ حرف شرط لره نو دا هم مشابه
شوٗ دهٔ حرف سره وکیف ، او کیف راځی دهٔ پاره دهٔ سوال دهٔ حال او دهٔ کیفیت
نه لکه کیف زیدٌ - او دا کیف حُکه مبنی دے چه دا هم متضمن دے معنیٰ ده
حرف استفهام لره ، او کوم اسم چه دا رنګے وی نو مبنی کیږی وایان ، او دا راځی دهٔ
پاره دهٔ زمانے مستقبل - معنیٰ کله - لکه ایان یوم الدین ، او دا مبنی حُکه
دے چه دا متضمن دے معنیٰ دهٔ حرف استفهام لره - فائده - فرق په مابین
ده متیٰ استفهامیه کښې او دهٔ ایان کښې دا دے چه متیٰ مستعملیږی په امور

عظیمو اوحقیرو دواړو کښې پس ویلې شی متی الساعة، ومتی یطیر الذباب
اوایان مستعملیږی خاص په امور عظیمو کښې نو ویلې شی ایان یوم الدین
او نشی ویلې ایان یطیر الذباب، ځکه چه طیران ده ذباب امر حقیر دے
وامس، اولکه امس شو دارا جی ده پاره ده زمانے ماضی لکه جاء زید امس دا مبنی
ځکه دے چه دا په معنیٰ ده فعل ماضی سره دے مشابه دے ده مبنی اصل سره
ومذ ومنذ، دا کله راځی په معنیٰ ده اول مدت ده فعل سره یعنی دلالت
کوی په ابتداء ده هغه زمانے چه شروع ده فعل ترینه شوے وی لکه ما رأیته
مذ او منذ یوم الجمعة یعنی ما نه دے لیدلے زید تره ده ورځ ده جمعې نه یعنی اول مده ده
نه لیدلو زما زید تره ورځ ده جمعې ده او کله راځی په معنیٰ ده جمیع مدے
ده فعل متقدم لکه ما رأیته مذ او منذ یومان یعنی ما نه دے لیدلے دے تره
دوه ورځې یعنی ټوله مده ده نه لیدلو زما زید تره دوه ورځې دی.
پس تقدیر ده مثال اول دا دے چه ابتداء مدة عدم رؤیتی ایاه یوم الجمعة، او تقدیر ده
مثال ثانی دا رنګه دے چه جمیع مدة عدم رؤیتی ایاه یومان، پس مذ
او منذ ظرف مبنی ځکه دی چه دا مشابه دی ده مبنی اصل سره چه مذ منذ
حرف دی.
پس اندره کړه دا خبره، چه مذ او منذ په دوه قسمه دی یو حرفی دی یعنی ده حروفو جاره
نه دی او بل مذ او منذ ده اسمائے ظروف نه دی یعنی اسمی دی، نتیجه ده مذ منذ
حرفی داده چه اسم واقعه روسته ده دینه په مجرور وی ځکه چه مذ او منذ حرفی
ده حروفو جارو نه دی او حروف جریه مدخول خپل کښې عمل ده جر کوی
او نتیجه ده مذ او منذ اسمی داده چه اسم واقعه پس ده دوی نه به مرفوع وی ځکه چه مذ
او منذ اسمی مبتداء ده او ما بعد ئے خبر دے او خبر مرفوع وی ځکه چه خالی
وی ده عوامل لفظیو نه. وقط اولکه قط دارا ځی ده پاره ده نفی ده
جمیع زمانه ماضی، معنی هیڅ کله لکه ما رأیته قط ما نه دے لیدلے دے تره
هیڅ کله یعنی په یو وقت کښې ده اوقاتو ده زمانه ماضی نه او دا مبنی ځکه دے چه دا مشابه دے

دہ حرف سرہ ځکه دا متضمن دے معنی دهٔ لام استغراقی لره او هغه حرف دے وعوضٌ

او لکه عوضٌ شو دا راځی دهٔ پاره دهٔ استغراق دهٔ نفی جمیع زمانے دهٔ مستقبل لره لکه

لا اعصی الله عوضُ (معنی) زهٔ به نافرمانی نهٔ کومه دهٔ الله پهٔ یو وقت کښے دهٔ او قاتو

دهٔ مستقبل نه نو په قطّ او عوضُ دوا رو کښے استغراق دے لیکن فرق دا دے چه قطّ

راځی دهٔ پاره دهٔ استغراق دهٔ نفی جمیع اجزاء دهٔ ماضی لره او عوضُ راځی دهٔ پاره دهٔ استغراق

دهٔ نفی جمیع اجزاء دهٔ زمانے مستقبل لره او دا عوض مبنی ځکه دے چه دا هم متضمن دے

معنی دهٔ لام استغراقی لره ، وقبلُ وبعدُ - او لکه قبل او بعد شو په قبلُ او بعدُ کښے

احوال ثلاثه دی یو دا چه مضاف الیه ورسره پهٔ لفظ کښے ذکر وی لکه لله الامر من قبلِ کلِّ شیءٍ

ومن بعد کلِّ شیءٍ دویم دا چه مضاف الیه محذوف وی نسیًا منسیًّا لکه رُبَّ قبلٍ خیرٌ من

بعدٍ او دریم دا چه مضاف الیه دهٔ دوی دهٔ لفظا نه حذف وی) و پهٔ نیت کښے مراد وی

لکه لله الامرُ من قبلُ ومن بعدُ - ای من قبل کلِّ شیءٍ ومن بعد کلِّ شیءٍ - نو پهٔ اول دوؤ

حالتونو کښے دا معرب دی او په دریم حالت کښے دا مبنی دی پهٔ ضمے سره وتحقیق لفظ

بعد قد مرّ فی ابتداء الکتاب فی ص۱۸ م۱۹ فاطلبه هناک وقس علیه لفظ قبلُ ، تامّل

و وقتیکه مضاف باشد و مضاف الیه محذوف منوی باشد - په هغه وخت کښے چه مضاف

وی او مضاف الیه محذوف وی دهٔ لفظ نه او مراد وی پهٔ نیت کښے دا قول دهٔ

مصنف رح متعلق دے صرف دهٔ قبلُ او بعدُ سره (تامل) و ظرف مکان چون حیث

و قدّام و تحتُ و فوقُ - او ظرف مکان لکه حیث قدّام تحتُ ، و فوق شو - دا ظروف

مکان ځکه دی چه دا راځی دهٔ پاره دهٔ مکان حیثُ دا همیشه مضاف وی او اکثر مضاف

کیږی جملے ته لکه اجلس حیثُ زیدٌ جالسٌ - او دا مبنی ځکه دے چه محتاجه دے جملے ته

نو مشابهت ئے راغلے دے دهٔ حرف سره پهٔ احتیاج کښے ،

قوله قدّام و تحتُ وفوق - دا قول راځی دهٔ پاره دهٔ مکان - قدام معنی مخکے

تحتُ معنی لاندے او فوق معنی اوچت ،

وقتیکه مضاف باشد و مضاف الیه

منوی باشند، پهٔ هغه وخت کښے چه دا مضاف وی او مضاف الیه محذوف وی دهٔ لفظ نه او مراد دوی پهٔ نیت کښے داعبارت متعلق دے مرف دهٔ قدام او تحت او فوق سره یعنی دا به مبنی وی پهٔ هغه وخت کښے چه مضاف محذوف وی دهٔ لفظ نه او مراد وی پهٔ نیت کښے او پهٔ دے وخت کښے به دا مبنی ولے وی حُکم چه دا مشابه شو ده حرف سره پهٔ احتیاج کښے او اسم چه مشابه شی دهٔ حرف سره نو مبنی کیږی ۱۱۰

هفتم اسمائے کنایات، ووُم قسم دهٔ اتو قسمونو ده اسم غیر متمکن نه اسمائے کنایات دی کنایات جمع دهٔ کنایهٔ ده او اسمائے کنایات مرکب اضافی دے دَ دے ترکیبی معنی ده اسماء دهٔ کنایاتو، او پهٔ اصطلاح کښے اسمائے کنایات هغه الفاظ غیر معینه دی چه پهٔ هغو سره تعبیر کولے شی دهٔ معانی معینونه، یعنی تعبیر چه کولے شی دهٔ معنی معین نه پهٔ لفظ غیر معین سره نو دا یه کولے شی دهٔ پاره دهٔ یو غرض دهٔ اغراضونه لکه ابهام غورځول ستو په سامعین باندے،

خو مراد دلته هغه اسمائے کنایه دی چه کوم مبنی دی او هغه نه دی مراد چه کوم معرب دی لکه فلانٌ او فلانةٌ شو، او کنایات ماخوذ دی ده دے محاورے دهٔ عربو نه کَنَوْتُ عن کذا بکذا او یا دهٔ دے محاورے دهٔ عربونه کَنَیْتُ عن کذا بکذا نو یانا قص واوی دی یا یائی دی پهٔ لغت کښے کنایه پټولو ته وائی او پهٔ اصطلاح کښے دیته وائی چه تعبیر او کړے دهٔ معنی معین نه پهٔ لفظ غیر معین سره

چون کم و کذا کنایت از عدد، لکه کم او کذا شو چه دا کنایه ده دهٔ عدد مبهم نه لکه کمْ دِرْهَمًا عندکَ شو څومره روپئ دی پهٔ نزد ستا یا کذا دِرْهَم عندی ډیرے دی ده جهت دهٔ روپئ نه پهٔ نزد ځما و کذا درهمًا عندی،

وکیت و ذیت کنایت از حدیث، لکه کیت او ذیت شو چه دا کنایه دهٔ خبرونه لکه قال زیدٌ کیت و ذیت وئیلے دی زید دا رنګے خبرے،

پس از دره کره دا خبرن، چه کنایات پهٔ دوه قسمه دی یو کنایات دهٔ عدد نه چه هغه کم او کذا دی دوېم قسم هغه دے چه هغه کنایه کرځی دهٔ خبرونه او هغه کیت ذیت دی بیا کم پهٔ دوه قسمه دے یو کم استفهامی دے او بل کم خبری دے،

کم استفهامی هغه دے چه په هغه سره سوال کولے شی دَ عدد مبهم نه لکه کم درهماً عندک څومره روپئ دی په نزد ستا پاتے دے ، اوکم خبری هغه دے چه په هغه سره خبر ورکولے شی دَ عدد مبهم نه لکه کم رجل عندی ، ډیر سړی دی په نزد ځما۔

پس دَه هغه داڅلور واړه اسمائے کنایات مبنی دی ، هرچه دے کم نو کم استفهامی خو ځکه مبنی دے چه دا متضمن دے معنیٰ دَه حرف استفهام لره او هرچه دے کم خبری نو دا محمل دے په کم استفهامی باندے ، او هرچه دے کذا نو دا ځکه مبنی دے چه دا مرکب دے دَ کاف تشبیهی او ذا اسم اشارے نه او دا دواړه مبنی وُو نو په هغه څېد بنا پاتی شو نو دَ دینه مرکب کذا مبنی شو اوکیت وذیت ځکه مبنی دی چه داکنایه دَه دَ جملے نه اوجمله من حیث الجمله مستحقه دَ اعراب هم نه ده او مستحق دَ بنا هم نه ده نو هرکله چه وقوع دَ دی راغله په ځائی دَ مفرد کښے اوخالی والے دَ مفرد المتی دَ اعراب اوبنا دواړو نه جائز نه وُو نو مختاره کړے شو په کښے بنا ځکه چه بنا مخکښے دَ ترکیب نه اصل دَه په اسماء کښے نو مختار کړے شو اصل ـ

هشتم مرکب بنائی ، اتم قسم دَ الواقسامو دَ اسم غیر متمکن نه مرکب بنائی دے چون احد عشر ، تفصیل دَ مرکب بنائی مخکښے تیر شوید ے په بیان دَه مرکب غیر مفید کښے ،

هرکله چه فارغ شو مصنف رح دَ تقسیم دَ کلماتو نه معرب او مبنی ته او دَ تفصیل دَه هر واحد نه نو اراده دَ شروع ئې اوکړه په تقسیم دَ اسم کښے معرفے اونکرے ته نو اوؤ ئے ویل ، فصل بدانکه اسم بر دو ضرب است معرفه ونکره

پوه شه چه اسم په دوه قسمه دے معرفه او نکره وجه دَ حصر په کښے داده چه دا اسم به خالی نه وی یا به وضع شوے وی دَ پاره دَ یو شئ معین اویا به وضع شوے وی دَ پاره دَ یو شئ غیر معین که اول وُو نو معرفه اوکه ثانی وُو نو نکره فان قیل چه مخکښے تقسیم شوید ے نو دا تقسیم مستدرک دے قلنا؟

چه تقسیمات متعدده هله مستدرک وی چه په جهت واحده سره وی
او دا تقسیمات متعدده په جهاتو مختلفو سره دی نو مخکښې په یو جهت سره
تقسیم شویدے او دا په بل جهت سره دے چه جهت دَ تعین او عدم تعین
دے پس حاصل دا شو چه اسم په اعتبار دَ تعین او عدم تعین سره په
دوهٔ قسمه دے معرفه او نکره ،

معرفه آنست که موضوع باشد برائی چیزے معین ، معرفه هغه
ده چه وضع شوے وی دَ پاره دَ یو شئ معین په قید دَ معین سره خارج
شو ده تعریف دَ معرفې نه نکره ، او معرفهٔ صیغه ده مصدر ده دَ وے
معنیٰ ده پیژاندل نو معرفه ته معرفه ځکه وائی چه دا هم وضع شویده دَ
پاره دَ داسے شئ چه پیژاندلے کیږی ، وامثال المعرفة اذکره فی ضمن الأقسام
وآن برهفت نوع است اول مضمرات - او دا معرفه په اوهٔ قسمه ده قسم
اول مضمرات دی ، تفصیل دَ مضمراتو مخکښې تیر شویدے او مثالونه هم مخکښې تیر
شویدی نو مصنف رحمه الله مثال دَ مضمراتو ذکر نهٔ کړو دوم اعلام ،
او قسم ثانی دَ اقسامو دَ معرفې نه اعلام دی اعلام جمع دَ عَلَم ده په لغت
کښې علامے او رأس الجبل ته وائی او په اصطلاح کښې علم هغه اسم دے چه وضع
شوے وی دَ پاره دَ یو شئ معین په دے شان سره چه نه شاملیږی
غیرلره په دغه وضع سره فان قیل - چه تعریف دَ علم دے جامع
نشو افراد و خپلو لره خارج شو تو یئه مثل دَ زید ځکه چه نهٔ وائی دا به شاملا
غیرلره نه وی او زید مثلاً دا خو شامل غیرلره دے یعنی چه دا وضع
کړے شوی وی دَ پاره دَ یو شخص نو دا خو غیرلره هم ورځی
قلنا - چه سونږ په تعریف کښې قید دَ وضع واحد اخیستے دے یعنی
چه دا به شامل غیرلره نه وی په دغه وضع واحد سره او که په وضع آخر سره
غیرته شامل وی نو وی په ، تامل

چونکه زید و عمرو ، لکه زید او عمر شو دوهٔ مثالونه یے داوړه ده پاره

اوزید چه مثلاً موضوع وی دَ پاره دَ یو شخص نو دا په دغه وضع سره غیرته نهٔ شاملیږی او چه غیرته شاملیږی نو په وضع آخر سره به وی یعنی هغه غیرته به هله شاملیږی چه دَ هغهٔ دَ پاره یے وضع مستقله اوشی ۱۲

دَ زیادتِ وضاحت پس دَ هغه عَلَمْ ته علم ځکه وائی چه عَلَمْ وائی علامت ته او دا عَلَمِ اصطلاحی علامه ده په هغه شخص معیّن باندے ځکه چه دا په هغه دلالت کوی سوم اسمائے اشارات دریم اسمائے اشارات دی چهارم اسمائے موصوله، څلورم قسم اسمائے موصوله دی، واین دو قسم را مبهمات گویند، او دے دوو قسمونو ته مبهمات وائی ځکه چه مبهمات صیغه دَ اسم مفعول ده دَ باب افعال نه مفرد دَ دے مُبْهَمَةٌ دے او دَ مبهمة معنیٰ ده پټ یعنی غیر معلوم نو دَ مبهمات معنیٰ شوه آسماء غیر معلوم، او اسمائے اشارات هم مبهم دی ځکه چه دَ مشار الیه نه او موصولات هم مبهم دی بغیر دَ صلے نه یعنی غیر معلوم دی پنجم معرفه به نداء. پنځم قسم معرفه ده په نداء سره چون یا رجلُ. لکه یا رجل شو، نو رجلٌ نکره وه لکن کله چه متکلم مخکښے حرف نداء راوړه او آواز ئے اوکړو یو خاص منادیٰ ته نو دا رجل معرفه شوه،

فائده، په حرف نداء سره تعریف هله حاصلیږی چه متکلم اراده دَ تعین اوکړی لکه یو سړے ووائی یا رجلُ او مراد دَ دے په رجل سره خاص وی او چه متکلم اراده دَ تعین او تعریف اونه کړی نو بیا په دے سره تعریف نه حاصل کیږی لکه یو روند سړے اووائی چه یا رجلُ خُذْ بِيَدِیْ او مراد دَ هغه نفس رجل وی ځکه چه ضرورت دَ هغه نفس رجل ته دے نه رجل خاص ته فتامل

ششم معرفه بالف لام، شپږم قسم ده اقسامو سبعو دَ معرفے نه معرفه ده په الف لامو سره خو مراد په الف لامو سره غیر دی دَ هغه الف لام نه چه ظرف زائد داخل وی دَ پاره دَ تحسین دَ کلام ځکه چه هغه تعریف نه فائده کوی لیکن الف لام چه تعریف فائده کوی نو دا هم په هغه وخت کښے تعریف فائده کوی چه قصد دَ تعریف شوے وی. چون الرّجلُ، مثال دَ معرفے په الف لامو سره لکه الرّجل شو، هفتم مضاف به یکے از ینها، اووم قسم مضاف دے یو دَ دے اقسامو مذکورو ته لیکن غیر دَ معرف باالنداء نه ځکه چه هغے ته اضافت نه کیږی حاصل دا دے چه اووم قسم دا قسامو سبعو نه دا دے چه مضاف وی مضمر یا اسم اشارے

نه یا علم نه یا معرف باللام نه ، لیکن په دے اضافت سره به داهله معرفه کیږي چه اضافت
معنوي وي نه لفظي حکه چه اضافت لفظي تعریف او تخصیص نه فائده کوي بلکه فائده
دَه اضافت لفظي نفس تخفیف لفظي دے - چون غلامه ، نکه غلامه شو او امثال ده هغے
دے چه اسم مضاف وي ضمیر ته وغلام زید ، دامثال دَه هغے دے چه مضاف وي
علم ته وغلام هذا ، دامثال دَه هغے دے چه مضاف وي اسم اشارے سته
وغلام الذي عندي ، دامثال دَه هغے دے چه مضاف وي موصول سته
وغلام الرّجل ، دامثال دَه هغے دے چه مضاف وي معرف باللام ته ،
هرکله چه فارغه شو مصنف رح دَه تعریف دَه معرفے نه او دَه بیان دَه اقسامو دَه
هغے نه نو شروع ئے اوکړه په تعریف دَه نکره کښے نو اوّئے وئیل ونکرة آنست
که موضوع باشد برائے چیزے غیر معین ، او نکره هغه ده چه وضع شوے وي
دَه پاره دَه یو شئ غیر معین ، پس نکره دَه تنکیر نه ده او دَه تنکیر معنیٰ ده نه
پیژاندل او په اصطلاح کښے نکره هغه ده چه تعریف ئے کړے دے مصنف رح په
دے قول خپل سره چه ونکرة الخ -
چون رجلٌ وفرسٌ نکه رجل او فرس شو او رجل نکره ده حکه داموضوع دے دَه
مطلق سړي او فرس نکره موضوع ده دَه پاره دَه مطلق فرس نو شامل دے هر فرس
له حاصل دا دے چه اسم په اعتبار دَه تعین او عدم تعین سره په دوه قسمه دے
معرفه او نکره ده معرفے اقسام سبعه بیان شول الخ هرکله چه فارغه شو
مصنف رح دَه تقسیم ده اسم نه معرفے او نکرے ته او دَه تقسیم دَه معرفے نه نو
اراده دَه شروع ئے اوکړه په تقسیم دَه اسم کښے مذکر او مؤنث ته او دا تقسیم په
اعتبار دَه تذکیر او دَه تانیث سره دے ، نو دا تقسیم چه کوي نو دا په جهت مغایر
سره دے دَه ممکښے تقسیم نه نو وئیل مصنف رح بدانکه اسم بر دو صنف است
مذکر و مؤنث ، پوهه شه چه اسم په دوه قسمه دے یو مذکر او بل مؤنث ، وجه
دَه حصر کښې دا ده چه دا اسم به خالي نه وي یا به په کښے علامه دَه تانیث وي او یا به
نه وي که نه وي نو مذکر او که وي نو مونث ، پس مذکر صیغه دَه اسم مفعول ده

دَه باب تفعیل نه دَه دے معنیٰ لغوی نسبت کړے شوے نر ته اوپهٔ اصطلاح کښے مذکر
هغه اسم دے چه علامه دَه تانیث پکښے نهٔ وی لکه ویلی دی مصنف رح مذکر آنست که
درو علامت تانیث نه باشد چون رجلٌ ، مذکر هغه ځے چه په هغه کښے علامه دَه تانیث
نه وی لکه رجلٌ سړے ، او مؤنث صیغه دَه اسم مفعول ده دَه باب تفعیل نه دَه دے معنیٰ لغوی
نسبت کړے شوے ماده ته او پهٔ اصطلاح کښے مؤنث هغه اسم دے چه علامه دَه تانیث
په کښے موجود وی لکه دیته اشاره کړے ده مصنف رح په دے قول خپل سره ومؤنث آنست
که درو علامت تانیث باشد چون اِمرأةٌ ، او مؤنث هغه ده چه په هغه کښے علامه دَه تانیث
وی لکه امرأة ښځه ، دولته (ت) ده. هرکله چه په تعریف دَه مذکر او مؤنث کښے علامه دَه تانیث مأخوذ وه
نو لابدی شوه دَه تعین دَه علامے دَه تانیث نو دَه دپاره دَه دے چه لازم نشی تعریف
باالمجهول نو مصنف رح تعین دَه علاماتو دَه تانیث اوکړو په دے قول سره وعلامت
تانیث چهارست ، علامے دَه تانیث څلور دی تا چون طلحةٌ ، اول تا ده لکه طلحةٌ سخی
مراد دَه تاء نه تاء لفظی ده دلیل په دے ذکر دَه تائی مقدره ده په مابعد کښے بیا طلحة نوم دَه
یو سړی دے نو دا صرف مؤنث لفظی دے والف مقصوره چون حُبلیٰ ، او بل الف مقصوره
دے لکه حبلیٰ شو او حُبلیٰ حاملے ښځے ته وائی ، او الف مقصوره هغه الف ته وائی چه روسته
دَه هغه نه همزه نه وی او دیته مقصوره ځکه وائی چه ده مقصور معنیٰ ده لنډ کړے شوے
او په دے باندے هم آواز لنډیږی په وخت دَه تلفظ کښے ، او یا دیته مقصوره ځکه وائی
چه مقصوره معنیٰ بند کړے شوے او دا هم بند کړے شوید ے دَه حرکت نه ۔
والف ممدوده چون حمرآء او دریم الف ممدوده دے لکه حمرآءُ سُور حمرآء ویلے کیږی
سرې ښځې ته او الف ممدوده هغه الف ته وائی چه روسته ترینه همزه وی او دیته ممدوده
ځکه وائی چه ممدوده معنیٰ اوږد کړے شوے ، او دا هم په وخت دَه تلفظ کښے اوږد
اداکیږی وتا حذف مقدره ، او څلورم تائی مقدره ده یعنی هغه (ت) چه پټه وی او په
لفظ کښے نهٔ وی چون ارضٌ ، لکه ارض شوه (زمکه) که در اصل ارضةٌ بوده ست ،
چه په اصل کښے ارضةٌ وه ، بدلیل اُرَیْضَةٌ ، په دلیل دَه اریضة سره یعنی دلیل په دے دا
چه دَه دے تصغیر اُرَیْضَةٌ راغلی دے او هلته (ت) ښکاره نو معلومه شوه چه دلته (ت) مقدره ده

اودا ار تُفته دلیل په دے ولے دے زیراکه تصغیر اسماء را باصل خود برد. حُکه چه
تصغیر اسماء لره خپل اصل ته وری یعنی اصل ته ئے رد کوی او چه په تصغیر کښے (ت)
راغله نو معلومه شوه چه دلته هم په اصل کښے (ت) وه واین را مؤنث سماعی گویند او
دے قسم مؤنث ته مؤنث سماعی وائی حُکه چه په دیکښے په ظاهر کښے علامه د تانیث نشته
بلکه سمع د تانیث ده شویده د عربو نه یعنی عربو دا استعمل کړے دے مؤنث ــــ
هرکله چه فارغه شو مصنف رح د تقسیم د اسم نه مذکر و مؤنث نو شروع
ئے اوکړه په تقسیم د مؤنث کښے حقیقی او لفظی ته نو وه ئے ویل، وبدانکه مؤنث بر دو
قسم است حقیقی ولفظی، او پوهه شه چه مؤنث په دوه قسمه دے حقیقی
او لفظی وجه د حصر په کښے دا ده چه دا مؤنث به خالی نه وی یا به په مقابله د دیکښے مذکر د
حیوانانو نه وی او یا به نه وی که اول وی نو مؤنث حقیقی او که ثانی وی نو مؤنث لفظی
حقیقی آنست که بازائ او حیوانے مذکر باشد، مؤنث حقیقی هغه دے چه په مقابله
د هغه کښے یو حیوان مذکر وی او مؤنث حقیقی ته حقیقی حُکه وائی چه حقیقی
معنیٰ منسوب بسوے حقیقت او دا قسم مؤنث هم منسوب دے حقیقت ته په دے شان
سره چه تانیث پکښے حقیقت راغلے دے چون امرءة که بازائ او رجل ست
لکه امرءة شو چه په مقابله د دیکښے رجل دے مذکر وناقة که بازائ او جمل ست
او لکه ناقه شو چه په مقابله د دیکښے جمل دے مذکر، ولفظی آنست
که بازائ او حیوانی مذکر نباشد او (مؤنث) لفظی هغه دے چه په مقابله د هغه کښے یو
حیوان مذکر نه وی بلکه صرف علامه د تانیث پکښے راغلے وی او دیته مؤنث
لفظی حُکه وائی چه لفظی معنیٰ منسوب لفظ ته دا هم منسوب دے لفظ ته په دے شان
سره چه تانیث صرف په اعتبار د لفظ سره دے د وجے د وجود د
علامے د تانیث نه او په حقیقت کښے تانیث نشته حُکه په مقابله کښے ئے مذکر نشته چون ظلمة وقوة
لکه ظلمة او قوة شو نو دا مؤنث لفظی دی د وجے د وجود د علامے د تانیث
نه او په حقیقت کښے مؤنث نه دے ظلمة معنیٰ تیاره او قوة معنیٰ طاقت د ظلمة مقابل دے نور
او د قوت مقابل دے ضعف لیکن دا حیوانات نه دی ـــــ

هرکله چه فارغ شو مصنف رح د تقسیم د اسم نه مذکر او مؤنث ته نو شروع ئې اوکړه
په تقسیم د اسم کښې مفرد او تثنیه او جمع ته نو وئې وئیل سبب آنکه اسم بر سه صنف ست
واحد مثنیٰ و مجموع . پوهه شه چه اسم په درې قسمه دے واحد مثنیٰ او مجموع،
وجه د حصر پکښې داده چه دا اسم به خالی نه وی یا به دلالت کوی په یو یا په دوه یا په زیاتو د دوو
که اول وو واحد او که ثانی وو تثنیه او که ثالث وو جمع ، پس د صیغه واحد په لغت کښې یو
ته وائی او په اصطلاح کښې واحد صیغه هغه ده چه تعریف ئې کړے دے مصنف رح په دے
قول خپل سره چه واحد آنست که دلالت کند بر یکے چون رجل ، او واحد صیغه دے
چه دلالت کوی په یو بانده لکه رجل شو ، او مثنیٰ صیغه د اسم مفعول ده د باب تفعیل نه
د دے لغوی معنیٰ ده دوه کړے شوے او په اصطلاح کښې مثنیٰ آنست که دلالت کند بر دو و بسبب آنکه
الف یا یائی ما قبل مفتوح و نون مکسوره با آخرش پیوند چون رجلان رجلین ، مثنیٰ صیغه
ده چه دلالت کوی په دوو بانده په سبب د دے سره چه الف یا (ی) ما قبل مفتوح او
نون مکسوره په آخر د دے پورے پیوست شوی وی لکه رجلان او رجلین
قوله بسبب آنکه حاصل د دے دادے چه تثنیه چه دلالت کوی په دوو بانده نو دا به په
دے سبب سره کوی چه الف او نون مکسوره به په آخر د دے پورے متصل شوے وی
او یا به یا او نون مکسوره په آخر د دے پورې متصل شوی وی لیکن الف او نون به په حالت
رفعی کښې وی او یا او نون به په حالت نصبی جری کښې وی او په دے قید سره مصنف رح
احتراز اوکړو د کلا او ده کلتا نه ځکه چه دا هم دلالت په دوو کوی لیکن الف او نون او
یا او نون پکښې نشته نو دا تثنیه نه ده
پس اذ دره کوه راخبره ، چه په تثنیه کښې په حالت نصبی او جری کښې (ی) ما قبل
مفتوح راځی او په جمع سالم مذکر کښې (ی) ما قبل مکسور راځی د دې د پاره د فرق په
مابین د تثنیه او د جمع کښې او فرق په عکس سره نه کوو ځکه چه تثنیه اسبق
ده وجوداً او فتحه اخف ده نو اخف ئې تثنیې اول واخسته نو کسره جمع ته پاتې شوه لیکن په جمع کښې
ضمه او په تثنیه کښې به مکسور ځکه وی چه د کسرے د تثنیې سره مناسبت دے په
توسط کښې په دې شان سره چه تثنیه متوسط ده په مابین د واحد او جمع

کښې او کسره متوسط ده په مابین دَ فتحې او ضمه کښې او نون دَ جمع سالم مذکر

به مفتوح وی دَ پاره دَ دې چې تخفیف حاصل شی، یعنې په حالت رفعی

دَ جمع سالم مذکر کښې ثقل راغلے دے دَ وجې دَ واو او دَ ضمه نه او په نصبی او جری

کښې دَ یاء او کسرے نه نو نون له مونږه فتحه ورکړو ځکه چې فتحه خفیف ده نو

دی سره به تخفیف حاصل شی او مجموع صیغه دَ اسم مفعول ده دَ دے لغوی معنیٰ ده جمع

کړے شوے او اصطلاحی تعریف مصنف رح کړے دے په دے قول خپل سره مجموع

ست که دلالت کند بر بیش از دو بسبب آنکه تغیرے در واحد کرده باشند، او جمع

فرده چې دلالت کوی په زیات یا ندے دَ دوؤ نه په سبب دَ دے چې تغیر په واحد

دَ دیکښې شوی وی لفظاً چون رِجَالٌ، برابره خبره ده چې دا تغیر

لفظاً وی لکه رجال شو په دیکښې تغیر په واحد کښې لفظاً شوید ے

ځکه چې دَ دے واحد رجل دے نو هلته په (رآء) باندے فتحه وه او په (ج) باندے

ضمه (ج) باندے فتحه راغلے ده او الف پکښې هم زیات شوید ے. یا تقدیراً

چون فُلْکٌ، او یا تغیر تقدیری وی لکه فُلْکٌ شو که واحدش نیز فُلْکٌ ست

بروزن قُفْلٌ وجمعش هم فُلْکٌ بروزن اُسُدٌ - چې واحد دَ دے هم فلک

دے په وزن دَ قفل او جمع دَ ده هم فلک ده په وزن دَ اُسُدٌ . نو په فلک کښې

لفظی تغیر نه دے شوے ځکه چې مفرد ئے هم فلک دے لیکن تغیر پکښې تقدیری دے

په دے شان سره چې کم فلک جمع ده نو هغه په وزن دَ اُسُدٌ دے او

چې کوم مفرد دے نو هغه په وزن دَ قفل دے او په وزن دَ اُسُدٌ ځکه دے

چې اُسُدٌ هم جمع ده او دویم په وزن دَ قفل ځکه دے چې قفل هم مفرد دے، تامل

هرکله چې فارغ شو - مصنف رح دَ تقسیم دَ اسم نه واحد تثنیه او جمع

نه او دَ تعریفونو دَ هر واحد نه نو شروع ئے او کړه په تقسیم دَ جمع کښې نو وئیل

وبدانکه جمع باعتبار لفظ بر دو قسم ست جمع تکسیر و جمع تصحیح - پوهه شه چې جمع

په اعتبار دَ لفظ سره په دوه قسمه ده جمع تکسیر او جمع تصحیح وجه دَ حصر پکښې دا ده چې

چې دا جمع به خالی نه وی یا به بناء دَ مفرد په کښې سلامت وی او یا به نه وی که بناء دَ واحد

په کښے سلامتیا باقی شوے وه نو جمع تصحیح او که نه وه نو جمع تکسیر، پس
ما نون قید دهٔ اعتبار دهٔ لفظ ذکر کړو دهٔ پاره دهٔ احتراز دهٔ تقسیم آخر نه په
ما سیاقی کښے حکم چه هغه تقسیم په اعتبار دهٔ معنیٰ سره دے، پس دهٔ صیغه
جمع تکسیر مرکب فارسی دے دهٔ دے ترکیبي معنیٰ ده جمع دهٔ تکسیر او تکسیر
صیغه دهٔ مصدر ده دهٔ باب تفعیل نه په معنیٰ دهٔ ماتولو سره او په اصطلاح کښے جمع تکسیر
هغه ده چه بناء دهٔ مفرد په کښے سلامت نه وی پاتی لکه وائی مصنف رحه جمع تکسیر
آنست که بنائی واحد در وے سلامت نباشد، جمع تکسیر هغه ده چه بناء دهٔ واحد په کښے
سلامت نه وی پاتی چون رِجَالٌ وَمَسَاجِدُ، لکه رجالٌ او مساجدُ شو په رجال کښے بناء دهٔ
واحد سلامت نه ده پاتی شوے حکم چه مفرد دهٔ دے رَجُلٌ دے نو هلته
په راء باندے فتحه وه او په (ج) باندے ضمه وه او دلته په (ر) باندے
کسره داغلے ده او په (ج) باندے فتحه داغلے ده او په مساجد کښے هم بناء دهٔ
واحد سلامت نه ده حکم چه دهٔ دے مفرد مَسْجِدٌ وُو نو په مسجد کښے (س)
ساکن وُو او دلته مفتوح شوید ے، فان قیل، چه نقض دے داغلے په مسلمون باندے
حکم چه په دیکښے هو هم بناء دهٔ واحد سلامت نه ده پاتی شوے حکم چه دهٔ دے مفرد مُسْلِمٌ
دے نو واو او نون پکښے نشته او دلته واو او نون داغلی دی او سره دهٔ دینه چه دا هو جمع
تکسیر نه ده بلکه جمع تصحیح ده، قلنا، چه جمع تکسیر هغه ده چه بناء دهٔ واحد په کښے سلامت
نه وی پاتی بلکه بناء دهٔ مفرد په کښے خرابه شوی وی هو په سبب دهٔ امورو داخلیو
سره او دلته بناء دهٔ مفرد په امورو داخلیو سره نه ده ماته شوے حکم چه امور
داخلی میم سین او لام او میم دی او هغه په خپل حال دی - فان قیل
چه نقض دے داغلے په مُصْطَفَوْنَ باندے حکم چه دا په اصل کښے
مُصْطَفَيُوْنَ وُو بیا اعلال او شو و نو (ی) بدل شوه په الف سره او الف حذف
شو او دا (ی) هو دهٔ امورو داخلیو نه ده نو بناء دهٔ مفرد ماته شوے ده په سبب دهٔ
امور داخل سره او سره دهٔ دے نه چه دا هو جمع تصحیح ده او جمع تکسیر نه ده قلنا
چه جمع تکسیر هغه ده چه بناء دهٔ مفرد په کښے ماته شوے وی په سبب دهٔ امورو

راخلیو سره پهٔ قصد دهٔ جمعیت اودلته چه راحذف دهٔ (ی) شویدے نوداخو دهٔ پاره دهٔ جمعیت نه دے شوے بلکه دهٔ و جے دهٔ قاعدے صرفی نه شویدے،

وابنیهٔ جمع تکسیر در ثلاثی بسماع تعلق دارد وقیاس رادرو مجالی نیست، اووزنونه دهٔ جمع تکسیر په ثلاثی کښے پهٔ سمع پورے تعلق لرے او قیاس له په دیکښے څهٔ دخل نشته،

قوله وابنیه ابنیه جمع دهٔ بناءٔ ده او بناءٔ پهٔ معنیٰ دهٔ وزن سره دے نودهٔ ابنیه معنیٰ شوه اوزان یعنی صیغے، ودر رباعی وخماسی بر وزن فعالِلُ می آید چون جَعْفَرٌ وَجَعَافِرُ وَجَحْمَرِشٌ وَجَحَامِرُ بحذف حرف خامس، اوپهٔ رباعی او خماسی کښے پهٔ وزن دهٔ فعالِلُ راځی لکه جَعْفَرٌ او جَعَافِرُ اوجَحْمَرِشٌ اوجحامِرُ په حذف دهٔ حرف پنځم سره (په جحمرشٌ کښے، یعنی پهٔ رباعی او خماسی کښے بناء ده پهٔ قیاس باندے او هغه داده چه پهٔ وزن دهٔ فعالِلُ به راځی خو پهٔ خماسی کښے به حرف خامس حذف کیږی حُکه چه تول حروف دهٔ خماسی په فَعَالِلُ وزن کښے نشی جمع کیدے۔ قوله چون جعفرٌ جعفر نوم دهٔ یو سرِی دے او جحمرشٌ معنیٰ هغه خځه بوڑی یا بد رنګه اول مثال دهٔ رباعی دے او دوٍیم مثال دهٔ خماسی دے قوله بحذف حرف خامس داد‌ٔه جحمرشٌ سره متعلق دے یعنی په حذف دهٔ حرف خامس سره پهٔ جحمرشٌ کښے خو دا حذف ده پنځم حرف مذهب مشهور دے او بعض هغه حرف حذف کوی چه کوم دهٔ حروف زوائد نه وی چه حروف ده اَلْیَوْمَ تَنْسَاهُ دی نو په جحمرشٌ کښے میم حذف کوی نو جَحَارِشٌ وائی په جمع تکسیر کښے،

وجمع تصحیح آنست که بنائی واحد درو بسلامت ماند، او جمع تصحیح هغه ده چه بناء دهٔ مفرد پکښے سلامت وی او دیته جمع تصحیح حُکه وائی چه پهٔ دیکښے بناء دهٔ مفرد صحیح باقی ده او دیته جمع سالم هم وائی، وآن بردو قسم است جمع مذکر وجمع مؤنث۔ او دغه جمع تصحیح پهٔ دوه قسمه ده جمع مذکر او جمع مؤنث حُکه چه دا جمع به خالی نه وی یا به پهٔ آخر ئے دیکښے واو ما قبل مضموم او یا (ی) ما قبل مکسور او نون مفتوح وی او یا به پهٔ آخر دهٔ دیکښے الف او ت وی که اول وی نو جمع مذکر او که ثانی وی نو جمع مؤنث

جمع مذکر آنست که واوی ما قبل مضموم یا یای ما قبل مکسور ونون مفتوح دل آخرش پیوند، جمع مذکر هغه ده چه واو ما قبل مضموم

یا (ی) ماقبل مکسور او نون مفتوح په آخر ده هغې پورې متصل شوې وی
واو به په حالت رفعی کښې وی او یا دیه په حالت نصبی او جری کښې وی او
ماقبل به ده واو نه مضموم وی ده وجې ده تقاضاء ده واو نه ضمې لره ځکه چې
مناسب حرکت ده واو ضمه ده او ده (ی) نه به ماقبل مکسور ځکه وی چې ری
په ماقبل چېل کښې حرکت ده کسرې غواړی ځکه چې مناسب حرکت ده (ی) کسره ده او نون
به مفتوح وی ده پاره ده حصول ده تخفیف کما مر چون مسلمون و مسلمین، نکه مسلمون
ومسلمین شو اول مثال ده واو دے او دوئم مثال ده یاء دے وجمع مؤنث آنست
که الفی یا تائی باخرش پیوند چون مسلمات او جمع مؤنث هغه ده چې الف سره ده
(ت) نه په آخر ده هغې پورې پیوسته شوې وی نکه مسلمات شو، مسلمات جمع ده مسلمة
ده نو په اصل کښې مسلمات مسلمة وو چې الف او ت پورې متصل شو نو ماقبل
ده الف نه مبنی شو په فتحې سره نو مسلمتات شو. بیا اجتماع ده علامتین ده
تانیث داغلئ نو اول (ت) حذف شوه نو مسلمات شو،
هرکله چې فارغ شو مصنف رح ده تقسیم ده جمع نه جمع صحیح او جمع مکسر ته
او ده تقسیم ده جمع تصحیح نه مذکر او مؤنث ته نو شروع ئې اوکړه په تقسیم ده
جمع کښې قلت او کثرت ته خود تقسیم په اعتبار ده معنی سره دے. پس جمع په اعتبار ده معنی
سره په دوه قسمه ده جمع قلت او جمع کثرت ځکه چې دا جمع به خالی نه وی یا به دلالت
کوی په لږو او زیات ده لږو باندې که اول وو نو جمع قلت او که ثانی وو نو جمع کثرت
او دیته اشاره ده په دے قول ده مصنف کښې، بدانکه جمع باعتبار معنی بر دو قسم ست
جمع قلت و جمع کثرت الخ جمع قلت آنست که برکم از ده اطلاق کنند، جمع
قلت هغه ده چې اطلاق ئې کیږی په کم ده لسو باندې او دیته جمع قلت ځکه وائی
چې دا دلالت کوی په قلیل تعداد باندې، فائده په جمع قلت او کثرة
کښې دوه مذهبه دی بعض وائی چې جمع قلت هغه ده چې دلالت کوی په کم
ده لسو باندې او جمع کثرت هغه ده چې دلالت کوی په لسو باندې
یا په زیات ده لسو باندې، او بعض وائی چې قلت هغه ده چې دلالت

کوی دہ دریونہ ترلسو پورے نو عشرہم داخل دے پہ جمع قلت کبنے وجمع
کثرت هغه ده چہ دلالت کوی پہ زیات دہ لسو پاندے لیکن مختار
پہ نزد دہ مصنف رہ مذہب اول دی دونو تعریفونو نہ ئے اوکرہ موافق دہ مذہب
اول وآن را چہار بناء است ، او دہ دے جمع قلت څلور صیغے دی اول اَفْعُلٌ
مثل اَکْلُبٌ ، اول پہ وزن دہ افعل نکہ اکلب جمع دہ کلب نہ (سپے) وافعالٌ چون اقوالٌ
او دویم افعال نکہ اقوال چہ جمع دہ قول دہ وافعِلَةٌ مثل اَعْوِنَةٌ او دریم افعلة نکہ اعونة چہ جمع
دہ عوان دہ رحمٰن مهربان بال واله وَفِعْلَةٌ چون غِلْمَةٌ او څلورم فعلة دے یکسے غلمة
چہ جمع دہ غلام دہ ودو جمع تصحیح بے الف ولام . او دوه جمع تصحیح دی بے دہ الف لام
نہ او قید دہ بے الف لام لے کیخودے دہ بارہ دہ احتراز دہ هغه جمع تصحیح نہ چہ
الف لام پہ کښې وی ځکه چہ هغه جمع کثرت دی نکہ المسلمونَ والمسلمات
یعنی مُسْلِمُونَ وَمُسْلِمَاتٌ ، یعنی مراد پہ دوو جمع تصحیح سرہ یوہ جمع تصحیح
مذکر دہ او بله مونث دہ . فائدہ مصنف رہ چہ کوم کښے ویلی دی چہ وآن
را چہار ابنیہ است ، نو مراد دہ دینہ جمع مکسر دہ پہ قرینے دہ ذکر دہ جمع تصحیح سرہ
پس دہ دینہ پہ تول وزنونو دہ جمع قلت شپږ شو۔ وجمع کثرت آنست کہ بردہ و
بیشتر ازدہ اطلاق کنند ، او جمع کثرت هغه دہ چہ پہ لسو او زیات دہ لسو باندے ئے
اطلاق کیږی وابنیہ آن هرچہ غیر ازین شش بناء است او وزنونو دہ جمع
کثرت هغه دی چہ غیر دہ دے شپږو بناء گانونہ دی ختم شد بیان انواع واقسام جمع

بتاریخ ۱۷ اکتوبر سنہ ۱۹۹۲ء بروز ہفتہ الموافق ۱۹ ربیع الثانی سنہ ۱۴۱۳ھ دی ځائے پورے اورسیدہ۔

خطاط
محمد طیب طاہری
مسلم آباد ایئرپورٹ روڈ کوئٹہ
بلوچستان۔

مرتب
فضل الربانی دیر وی
ضلع دیر
سرحد پاکستان

## فصل

بد انکه اعراب اسم سہ است — دا فصل دی پوهه شه چه اعراب دٔه اسم درے څیزونه دی رفع ونصب وجر رفع او نصب او جر دے

پس اذ ذکر کاره دا خبر و، چه یو مطلق اعراب دے اوبل اعراب دٔه اسم دے اوبل اعراب دٔه فعل دے مطلق اعراب څلور څیزونه دی رفع نصب جر او جزم او اعراب دٔه اسم درے څیزونه دی رفع نصب جر او اعراب دٔه فعل هم درے دی رفع نصب جزم نو رفع اونصب مشترک دی په مابین دٔه اسم او دٔه فعل کښے او جر اعراب مختص دٔه اسم دے په فعل کښے نه راځی او جزم اعراب مختص دٔه فعل دے په اسم کښے نه راځی ، وجه دٔه تخصیص دٔه جر په اسماء پوری تیره شویده په بیان دٔه خواص دٔه اسم کښے او وجه د تخصیص دٔه جزم په افعالو پورے داده چه جزم اثر ده حرف جزم دے او حرف جزم خاص دی په افعالو پورے نو اثر ئے هم خاص شو په افعالو پورے ځکه که مؤثر خاص شی په افعالو پورے او اثر ئے خاص نشی په افعالو پورے بلکه په اسماؤ کښے هم موجود شی نو لازم به شی وجود دٔه اثر بے دٔه مؤثر نه او دا نا روا دے او وجه دٔه تخصیص دحرف جزم تیره شویده په بیان دٔه خواص دٔه فعل کښے ، واسم متمکن باعتبار وجوهِ اعراب بر شانزده قسم ست، او اسم متمکن په اعتبار دٔه وجوه دٔه اعراب سره په شپاړس قسم دے ، هر کله چه فارغ شو مصنف رح دٔه بیان ده اعراب دٔه اسم متمکن نه نو شروع ئے او کړه په تقسیم دٔه اسم متمکن کښے په اعتبار دٔه وجوه دٔه اعراب سره نو اوؤ ئے ویل واسم متمکن الخ اول مفرد منصرف صحیح چون زیدٌ اول قسم ده شپاړس اقسامو دٔه اسم متمکن نه مفرد منصرف صحیح دے لکه زیدٌ شو . قوله مفرد ، یعنی مفرد به وی تثنیه او جمع به نه وی نو دلته مفرد مقابل دٔه تثنیه او جمع دے او مقابل دٔه جملے او دٔه مضاف شبه مضاف نه دے قوله منصرف یعنی منصرف به وی غیر منصرف به نه وی . وتعریف المنصرف وغیره یجیٔ فی الکتاب قوله صحیح یعنی غیر صحیح به نه وی خو مراد دٔه صحیح نه صحیح نحوی دی پس صحیح په دوه قسمه دے یو صحیح صرفی دی دویم صحیح نحوی دی صحیح صرفی دیته وائی چه په ځائی دٔه فاء عین

اولام یا ندے حروف علت او همزه نه وی او عین او لام کلمه ئے دَه یو جنس نه نه وی لکه ضَرَبَ
او صحیح نحوی هغه دی چه په ځائی دَه لام یا ندے حروف علت نه وی لکه زمیګ ښو
اګرکه په ځائی دَه فاء او عین یا ندے حروف علّة داغلے وی ـ دوم مفرد منصرف
جاری مجری صحیح چون دَلْوٌ ، دوئم قسم دَه اسم متمکن نه مفرد منصرف جاری مجری
دَه صحیح دے ، قوله جاری مجریٰ صحیح ، جاری صیغه اسم فاعل ده دَه جرا یجری جریًا نه
په معنیٰ دَه چلیدو نکی او مجریٰ صیغه دَه ظرف ده دَه جری یجری نو معنیٰ ځائے دَه جاری
کیدلو دَه صحیح او په اصطلاح کښے جاری مجریٰ دَه صحیح هغه اسم دے چه په آخر کښے ئے
واو او یاء وی او ماقبل ترینه ساکن وی لکه دَلْوٌ او ظَبْیٌ او دیته جاری
مجریٰ صحیح ځکه وائی چه دَه دے معنیٰ وه جاری کیدونکے په ځائی دَه جاری
کیدلو دَه صحیح او دا هم جاری کیدونکے دے په ځائے دَه جاری کیدلو دَه صحیح
ځکه لکه څرنګه چه په صحیح کښے اعلال نه کیږی نو دارنګه په دا سے اسم کښے چه
په آخر کښے ئے واو یا یاء وی او ما قبل ترینه ساکن وی نو په هغه کښے هم
اعلال نه کیږی او په دیکښے اعلال ځکه نه کیږی چه په دیکښے تخفیف حاصل شوید
په سکون دَه ما قبل سره ـ سوم جمع مکسر منصرف چون رِجَالٌ ـ دریم جمع
مکسر منصرف ده ، قوله جمع مکسر ، یعنی مکسر به وی صحیح به نه وی او منصرف
مطلب دا دے چه منصرف به وی غیر منصرف به نه وی ځکه چه دَه جمع صحیح
او دَه غیر منصرف اعراب دارنګه نه راځی بلکه دَه هغوی اعراب جدا دے
کما سیأتی ، رفع ایشان بضمه باشد ونصب بفتحه وجر بکسره دادَه دے دریو
وارو قسمو نو سره لګی یعنی دَه دوئی رفع به په ضمے سره وی او نصب به ئے په فتحے سره وی او
جر به ئے په کسرے سره وی ، یعنی اعراب دَه دوئی به لفظی وی تقدیری به نه وی بالحرکة
به وی بالحروف به نه وی او بعض احوال به تابع ده بعضو نه وی په دے شان سره چه په حالت
رفعی کښے به ضمه وی او په حالت نصبی کښی به فتحه وی او په حالت جری کښے به کسره وی
او دا قسم اعراب مو دے قسم اسم له ورکړو ځکه چه دا قسم اسم اصل دے او دا قسم اعراب
هم اصل دے نو ورکړو اصل اعراب اصل اسم ته دَه پاره منا سبت ، ۲

چوں جاءنی زیدٌ ودَلوٌ ورِجَالٌ و رئیت زیدًا ودلوًا ورجالًا ومررت بزیدٍ ودَلوٍ ورِجَالٍ نکہ جاءنی الخ شو زید مثال دہ مفرد منصرف صحیح دے اودَلوٌ مثال دہ مفرد منصرف جاری مجری صحیح دے اورجالٌ مثال دہ جمع مکسر منصرف دے بیابو مثال دہ رفع دے اوبیو مثال دہ نصب دے اوبیو مثال دہ جر دے۔

چهارم جمع مؤنث سالم، څلورم قسم دہ اسم متمکن نہ جمع مؤنث سالم دہ مؤنث سالم سئے وویلہ احتراز ئے اوکړو دہ جمع مذکر سالم نہ ځکہ چہ دہ هغے اعراب جدا دے، رفعش بضمہ باشد ونصب وجر بکسرہ، رفع دہ دے بہ پہ ضمے سرہ وی اونصب اوجر بہ ئے پہ کسرے سرہ وی یعنی اعراب بہ ئے بالحرکت وی اولفظی بہ وی اوبعض احوال بہ تابع دہ بعض وی پہ دے شان سرہ چہ نصب بہ تابع دہ جروی نو رفع بہ پہ ضمے سرہ وی اونصب جر بہ پہ کسرے سرہ وی اوپہ جمع مؤنث سالم کښے نصب تابع ئم وو دہ جر نو دلتہ بہ هم نصب تابع دہ جروی دہ پارہ دہ موافقت دہ فرع دہ اصل سرہ چون هُنَّ مُسْلِمَاتٌ، نکہ هُنَّ مسلمات شو هُنَّ مبتداء المسلمات ئے خبر دے مبتداء سرہ دہ خپل خبر نہ جملہ اسمیہ خبریہ ورأیتُ مسلماتٍ، نو دامسلمات منصوب دے ځکہ مفعول بہ دے دہ رئیت اومفعول بہ منصوب وی لیکن نصب تابع دہ جروو نوکسرہ پہ کښے راغلہ (ترکیب) رئیت فعل فاعل مسلماتٍ مفعول بہ فعل سرہ دہ فاعل اوسرہ دہ مفعول بہ خپل نہ جملہ فعلیہ خبریہ ومررت بمسلماتٍ، نومسلمات مجرور دے ځکہ چہ پہ دے باندے باء داخلہ شویدہ اوهغہ پہ مدخول خپل کښے عمل دہ جر کوی (ترکیب) مررتُ فعل فاعل با حرف جارہ مسلماتٍ مجرور جار سرہ دہ مجرور مفعول بہ دہ مررتُ فعل سرہ دہ فاعل او سرہ دہ مفعول بہ خپل نہ جملہ فعلیہ خبریہ یا جار سرہ دہ مجرور خپل نہ متعلق دہ مررتُ فعل سرہ دہ فاعل او سرہ دہ متعلق خپل نہ جملہ فعلیہ خبریہ، پنجم غیر منصرف پنځم قسم دہ هغہ شپاړسو قسمونو دہ اسم متمکن نہ غیر منصرف دے دہ دے مقابل منصرف دے هغہ اسم دے چہ پہ هغہ کښے دہ نهہ اسبابو دہ منع صرف نہ دوہ سببونہ وی اونہ پہ کښے یو سبب وی چہ قائم مقام وی دہ دوو سببونو

او منصرف ته منصرف ځکه وائي چه منصرف مشتق دے د صرف نه او صرف معنیٰ ده خالي والے او دا هم خالي دے د اسبابو د منع صرف نه او یا دیته منصرف ځکه وائي چه منصرف مشتق دے د صرف نه او صرف وائي بدلیدلو ته او په دیکښې هم حرکت په احوال ثلاثو کښې بدلیږي او یا دیته منصرف ځکه وائي چه منصرف مشتق دے د صریف نه او یو صریف یو قسم آواز دے چه ځائے د اداء د هغه خیشوم دے او په دے اسم منصرف کښې تنوین راځي او دا آواز هم د تنوین نه پیدا کیږي.، او غیر منصرف معنیٰ لغوي ده - نه بدلیدونکے

او په اصطلاح کښې غیر منصرف آن اسمیست که دو سبب از اسباب منع صرف در وے باشد غیر منصرف هغه اسم دے چه په هغه کښې دوه سببونه وي د اسبابو د منع صرف، او یا په کښې یو سبب وي چه قائم مقام د سببین وي لکه الف ممدوده او صیغه د منتهی الجموع شو.

قوله اسباب منع صرف د منع صرف لغوي معنیٰ ده د متغیر کیدلو نه منع کول او اصطلاحي معنیٰ د منع صرف ده اسم لره د منصرف کیدلو نه منع کول، او علامه د غیر منصرف دا ده چه کسره او تنوین به په کښې نه راځي لکه وائي ابن حاجب په کافیه کښې وحکمه ان لا کسرة ولا تنوین، واسباب منع صرف نه است عدل - او اسباب د منع صرف نهه دي اول عدل دے عدل په لغت کښې راځي په معنیٰ د انصاف سره او په معنیٰ د مخکے کیدلو سره لیکن دلته عدل مصدر مجهول دے نو د دے معنیٰ ده معدولیت یعنی معدول کیدل د اسم او په اصطلاح کښې معدولیت یعنی عدل - خروج د اسم دے د صیغې اصلي نه بغیر د قاعدے صرفي نه صیغې اُخرىٰ ته لکه وائي ابن حاجب په کافیه کښې فالعدل خروجه من صیغته الأصلیة الی صیغة اخریٰ، پس عدل په دوه قسمه دے یو عدل تحقیقي دے او بل عدل تقدیري دے عدل تحقیقي دیته وائي چه په خروج د اسم باندے د صیغې اصلي نه بغیر د غیر انصراف نه بل دلیل هم موجود وي - لکه ثُلٰث او مَثْلَث شو، دلته دلیل په عدل باندے ماسوا د غیر انصراف نه او هغه دلیل دا دے چه د دواړو په معنیٰ کښې تکرار دے او تکرار د معنیٰ دلالت کوي په تکرار د لفظ ځکه چه تکرار د معنیٰ بغیر د

تکرار دَ لفظ نه نشی راتلے نو معدومه شوه چه ثُلٰثَ هم ماخوذ دے دَ ثَلٰثَةٌ ثَلٰثَةٌ نه او مُثَلَّثَ
هم ماخوذ دے دَ ثَلٰثَةٌ ثَلٰثَةٌ نه ، پس ثُلٰثَ او مَثْلَثَ غیر منصرف دی یو سبب پکښې عدل تحقیقی
دے او دویم وصف دے ، او عدل تقدیری دیته وائی چه بغیر دَ غیر انصراف نه دلیل آخر
موجود نه وی په خروج دَ اسم دَ صیغے اصلے نه لکه عُمَرُ شو و په دیکښې دلیل په معدولیت
باندے صرف غیر انصراف دے ځکه هر کله چه راموندلے شوے وو په کلام دَ عربو
کښې غیر منصرف او په غیر منصرف کښې لابدی وه دَ وجود دَ سببین نه ده منع صرف او
په دیکښې صرف یو سبب وو چه علمیت دے نو ځکه نو معتبر کړه په دیکښې عدل په دے شان
چه وئے وئیل چه دا معدول دے دَ عامرٌ نه پس عُمَرُ غیر منصرف دے یو سبب پکښې
علمیت دے او دویم عدل تقدیری دے ، وفی العدل التحقیقی والتقدیری اختلاف ذکر فی
المطولات کتحریر ملا و تحریر سنبهلی وخادمة الکافیه ، ترکته خشیة التطویل ،
وَوَصْفٌ اودویم وصف دے تعریف دَ وصف دا دے چه اسم دال علی ذات مبهمة
ماخوذ مع بعض صفاتها ، یا وصف صفة اسم دے چه دلالت کوی په داسے ذات
باندے چه په هغه کښې دَ څه صفت وی لکه اَحْمَرُ شو و دا دلالت کوی په هغه ذات
چه په هغه کښې سور والے وی ، لیکن شرط دَ پاره دَ تاثیر دَ وصف په غیر انصراف
دَ کلے کښے کون دَ وصف دے ، وصف په اصل کښے ، یعنی چه وصفیت به اصلی وی ځکه چه
وصفیت عارضی دَ وجے دَ عروض نه تاثیر نشی کولے په منع دَ صرف کښے نو اربع په مررت
بنسوةٍ اربعٍ کښے منصرف دے اگرچه وزن فعل او وصفیت پکښے راغلے دے ځکه چه وصفیت په دیکښې
عارضی دے او اصلی نه دے ځکه چه اگر که په دے ترکیب کښې دا اربع صفت واقع شوے دے دَ پاره
دَ نسوةٍ لیکن په اصل کښے دا وضع شوے دے دَ پاره دَ عدد ، وتأنیث ، او دریم سبب ده
منع صرف تانیث دے یعنی کیدل دَ اسم دی مؤنث لیکن تانیث په دوه قسمه دے لفظی
او معنوی تانیث لفظی هغه دے چه په حقیقت کښے مونث نه وی خو په لفظ کښے حرف
علامه دَ تانیث راغلے وی ، نو کله تانیث لفظی وو نو شرط دَ پاره دَ کیدلو دَ دے
سبب دَ منع دَ صرف علمیت دے ده پاره دَ دے چه او گرځی دا تانیث لازم دَ کلمے
سره ځکه چه اعلام محفوظ وی دَ تغیر او تبدیل نه بقدر الامکان لکه طَلْحَةُ شو

په د یکښې یو سبب علمیت دے اوبل سبب تانیث لفظی دے او که تانیث معنوی
وی نو شرط دَ پاره دَ تاثیر دَ هغه په منع صرف کښې علمیت هم دے لیکن بغیر دَ علمیت نه دا هم
شرط دے چه یا به دَ دریو حروفو نه زائد وی لکه زَیْنَبُ شو یا به متحرک الأوسط
وی لکه سَقَرُ شو او یا به عجمی لفظ وی لکه ماه او جورَ شو خو دا هله که تانیث په تاء سره
وَو او که تانیث په الف ممدوده سره وُو لکه حمرآءُ شو او یا په الف مقصوره سره وُو لکه
حُبلیٰ شو نو دَ هغې دَ پاره هیڅ شرط نشته او دا تانیث بیا قائم مقام دَ سببین دے
نو یوائې تاثیر کوی په منع دَ صرف کښې

ومعرفـه ، او څلورم سبب معرفه ده یعنی کیدل دَ اسم دی معرفه نو شرط دَ
پاره دَ تاثیر دَ دے علمیت دے یعنی شرط دا دے چه دا معرفه موجود شی خاص په ضمن
دَ علم کښې نه په ضمن دَ باقی اقسامو دَ معرفې کښې لکه زَیْنَبُ شو دا غیر منصرف دے
یو سبب پکښې معرفه ده او بل سبب په کښې تانیث معنوی دے وعُجْمَةٌ او پنځم سبب
دَ منع دَ صرف عجمه ده یعنی کون دَ اسم دے عجمه او عجمه هغه لفظ دے چه واضع
دَ هغه غیر وی دَ عربی نه خو دَ دے دَ تاثیر دَ پاره شرط دا دے چه دا به
علم وی او دویم شرط دا دے چه یا به زائد وی دَ دریو حروفو نه او یا به
متحرک الأوسط وی یعنی درمیان والا حرف به متحرک وی مثال دَ عجمی
چه علم وی او زائد وی دَ ثلاثو نه لکه ابراهیم شو او مثال دَ هغې چه متحرک
الاوسط وی لکه شُتُرُ شو دا نوم ده یو قلعه دے وجمع او شپږم
سبب دَ نهه اسبابو دَ منع صرف نه جمع ده او دا قائم مقام دَ سببین ده لیکن ده دَ
دَ پاره شرط دا دے چه صیغه دَ منتهی الجموع به وی یعنی دا سے جمع به وی چه
انتهاء دَ جمع تکسیر و پرے بانددے داخلے وی او بل شرط دا دے چه په آخیر ده یکښې به دا سے
تاء نه وی چه گرځی هاء په حالت دَ وقف کښې ، پس صیغه دَ منتهی الجموع په دوه قسمه ده
یو قسم هغه ده چه په دریم ځائې کښې الف وی او روسته ده الف نه دوه ـــــ حروف وی چه
اول حرف پکښې مکسور وی لکه مَسَاجِدُ شو او دویم قسم هغه ده چه په دریم ځائې کښې الف
وی او روسته دَ الف نه دریے حروف وی او دَ مینځ والا حرف په هغه دریو حروفو کښې ساکن



وی لکه مصابیح شو و ترکیب اواوُم سبب دَه نهه اسبابو دَه منع صرف نه ترکیب دَے
یعنی چې ورت ده کلمتینو دے یا دَه اکثرو دَه کلمتینو دے کلمه واحده په دے شان
سره چې نهٔ وی یو جزء دَه اجزاء نه حرف او صوت لیکن شرط دَه پاره دَه بیتة
دَه ترکیب دادے چې عَلَم به وی اوبل شرط دادے چې ترکیب اضافی او اسنادی به نهٔ
وی و وزن فعل ، او اتم سبب دَه نهه اسبابو دَه منع صرف نه وزن فعل
دے یعنی کوم دَه اسم دے پهٔ داسے وزن چې معدود وی دَه اوزانو دَه فعل نه
لیکن دَه دے ده پاره شرط دادے چې داوزن فعل به خاص وی په فعل پورې
او موجود به نه وی اصَالَتًا په اسم کښے او یا به وی پهٔ اول دَه دیکښے زیادت
دَه حرف پهٔ شان دَه زیادت دَه حرف پهٔ فعل کښے خو دا اسم به قابل نه وی
تائی تانیثی متحرکے لره - والف ونون زائدتان ، او نهم سبب ده نهه
اسبابو ده منع صرف نه الف اونون دی چې کوم زائد وی خو دالف او نون مزیدتین
به خالی نهٔ وی یا به په اسم جامد کښے وی او یا به په اسم صفتی کښے وی که پهٔ اسم جامد
کښے وُو نو شرط دَه دے دَه پاره علمیت دے او که پهٔ اسم صفتی کښے وُو نو
شرط ده پاره ده دے انتفاء دَه فَعْلَانَة ده یعنی عدم قبول دَه تائی تانیثی دے
او بعض وائی چې وجود دَه فعلیٰ دے یعنی عدم قبول دَه تائی تانیثی دے سره
دَه وجود دَه دلیل لفظی نه په عدم قبول دَه تاء پاندے ، او صفه دلیل لفظی
وجود دَه فعلیٰ دے ، چون عُمَرُ و اَحْمَرُ و طَلْحَةُ الخ - عُمر مثال دَه عدل دے
او دوَیم سبب په دیکښے علمیت دے او اَحْمَرُ مثال دَه وصف دے او دوَیم سبب
پکښے وزن فعل دے او طَلْحَةُ مثال دَه تانیث لفظی دے او دوَیم سبب پکښے
علمیت دے او زَیْنَبُ مثال دَه تانیث معنوی دے او دوَیم سبب پکښے علمیت
دے او ابراهیم مثال دَه عجمه دے او دوَیم سبب پکښے علمیت دے
و مساجد مثال دَه جمع دے او دلته دوَیم سبب نه ضرورت نشته ځکه
چې دا یو سبب قائم دے پهٔ مقام دَه سببین ، ځکه چې پهٔ صیغه دَه منتهی
الجموع کښے تکرار ده جمعیت پهٔ منزله دَه بل سبب دے
لیکن دا تکرار دَه جمعیت به یا حقیقة وی او یا به حکمًا وی مثال دَه صیغے دَه

منتهى الجموع چه تكرار ده جمعيت يكښے راغلے وى حقيقةً لكه اَكالِبُ چه دا جمع دَه
اَكْلُبٌ ده او اكلبٌ جمع دَه كلبٌ ده، او مثال ده صيغے ده منتهى الجموع چه تكرار يكښے
حكماً راغلے وى دَ جمعيت لكه مساجد په ديكښے تكرار حكماً راغلے دے ځكه چه دا په وزن
دَ اكالِبُ ده او په اكالبُ كښے تكرار حقيقةً وُو نو دلته حكماً شو و معديكرب دا مثال
دَ تركيب دے او معديكرب نوم دَ يو سړي دے او اَحْمَدُ مثال دَ وزن فعل دے
او په ديكښے دويم سبب علميت دے او عِمْرَانُ مثال دَ الف او نون مزيدتين دے او
دويم سبب يكښے علميت دے رفعش به ضمه باشد ونصب وجر بفتحه، رفع ده
دے غير منصرف به په ضمے سره وى او نصب او جر به ئے په فتحے سره وى يعنى
اعراب به ئے لفظى وى تقديرى به نه وى او بالحركت به وى او بعض احوال
به تابع دَ بعض وى يعنى حالت جرى به تابع دَ حالت نصبى وى په دے شان
سره چه په حالت رفعى كښے به ضمه وى او په حالت نصبى او جرى دواړو كښے به فتحه وى
خو بغير دَ تنوين نه نو كسره او تنوين به په كښے نه راځى ځكه چه غير منصرف مشابه
دے دَ فعل سره په وجود دَ فرعيتونو كښے په دے شان سره چه فعل دوه ځله فرعه
دے يو ځل فاعل ته په صدور كښے او بل ځل مصدر ته په اشتقاق كښے او غير منصرف
هم دوه ځله فرعه دے ځكه چه په غير منصرف
كښے دوه سببونه وى دَ نهه اسبابو ده منع صرف نه برابره خبره ده چه دا دوه
سببونه حقيقةً وى او كه حكماً وى حكماً په معنى ځائے كښے وى چه يو سبب قائمٌ مقام
ده سببين وى نو هر كله چه په ديكښے دوه سببونه راغله نو دوه فرعيته په كښے
راغلل ځكه چه مدار دَ هر يو سبب په فرعيت باندے دے ځكه چه معدوليت فرعه
دے په نسبت سره غير معدوليت ته او وصف فرعه دے په نسبت سره ذات ته
او تانيث فرعه دے په نسبت سره تذكير ته او معرفه فرعه ده په نسبت سره نكره
ته وجوداً او عجمه فرعه ده په نسبت سره عربى لفظ ته او جمع فرعه ده په
نسبت سره مفرد ته ځكه چه دا مشتق ده او مفرد مشتق منه دے او مشتق فرعه
وى په نسبت سره مشتق منه ته او تركيب فرعه ده په نسبت سره غير تركيب ته

ځکه چه ترکیب هله کیږي چه مخکښې دغه الفاظ څا تله ظا نه موجود شي او وزن فعل فرع دے پهٔ نسبت سره غیر وزن فعل ته یعني دیته چه اسم په وزن دهٔ فعل نهٔ وی ځکه چه پهٔ مابین دهٔ اسم او فعل کښې منافات دے او الف او نون مزید تین فرعه دی په نسبت سره الف او نون ته چه اصلي وی چون جاءَ عُمَرُ وَرَأَیْتُ عُمَرَ وَمَرَرْتُ بِعُمَرَ دا مثال ده غیر منصرف دے اوّل مثال دهٔ رفع دے او دوّیم مثال دهٔ نصب دے او دریم مثال دهٔ جر دے ، (ترکیب) جاءَ فعل عُمَرُ فاعل فعل سره ده فاعل خپل نه جمله فعلیه خبریه ، (۲) رَأَیْتُ فعل فاعل عُمَرَ مفعول به فعل سره دهٔ فاعل او دهٔ مفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه (۳) مَرَرْتُ فعل فاعل باء جار عُمَرَ مجرور جار دهٔ مجرور خپل نه متعلق دهٔ مررتُ فعل سره دهٔ فاعل او د سره ده متعلق خپل نه جمله فعلیه خبریه ،

ششم اسمائے ستہ مکبرہ در وقتیکہ مضاف باشند بغیر یائے متکلم چون اَبٌ واَخٌ وَحَمٌ وَهَنٌ وَفَمٌ وذومالٍ شپږم قسم ده شپاړس قسمونو دهٔ اسم متمکن نه اسمائے ستہ مکبره دی پهٔ هغه وقت کښې چه دا مضاف وی بغیر دهٔ (ی) دهٔ متکلم ته - لکه اَبٌ اَخٌ الخ شو قوله ستة ، دا په اصل کښې سِدْسٌ وُو (س) بدل شو په (ت) سره او ت مدغم شو په (ت) کښې نو سِتَّةٌ شوُ قوله مکبره دا صیغه دهٔ اسم مفعول ده دهٔ باب تفعیل نه او مکبرّ ضد دهٔ مصغرّ دے یعني هغه اسمائے ستہ چه مستعمل نه وی په تصغیر کښې او پهٔ دے قید دهٔ مکبرّ سره ئے احتراز اوکړو دهٔ مصغر نه ځکه چه کله دا مصغر وی نو پهٔ هغه وقت کښې دهٔ دوئ دا اعراب نه وی کوم چه دلته ذکر د ے بلکه دهٔ دوئ اعراب به بیا بالحرکة وی او لفظي به وی لکه جاءني اُخَيُّكَ ورأیتُ اُخَيَّكَ ومررتُ باُخَيِّكَ

قوله وقتیکه مضاف باشد په مضاف سره ئے احتراز اوکړو دهٔ غیر مضاف نه ځکه چه دوئ غیر مضاف وی نو دهٔ دوئ اعراب دا رنګه نه وی بلکه دهٔ دوئ اعراب بالحرکة او لفظي وی په ۲ حوال ثلاثو کښې لکه جاءني اَخٌ رأیتُ اخًا ومررتُ بِاَخٍ ، او په قید دهٔ غیر یائے متکلم سره ئے احتراز اوکړو دهٔ هغو نه چه مضاف وی (ی) دهٔ متکلم ته ځکه چه پهٔ هغه وخت کښې هم دهٔ دوئ اعراب دا رنګه نه راځی بلکه اعراب ئے دلته

بالحرکة وی او تقدیری وی په احوالو ثلاثو کښې لکه جاءنی اخی رأیت
اخی ومررت باخی قوله حَمٌ حم والی خپلوان دٔ ښځې ته دٔ طرفه دٔ خاوند
نه یعنی لیوُر، هَنٌ دٔ ښځې او سړی شرمګاه فَمٌ خوله ذومال خاوند دٔ مال

رفع شان بواؤ باشد ونصب بالف وجر بیا، رفع دٔ دے اسمائے ستو په
چه واؤ سره وی او نصب به ئے په الف سره وی او جر به ئی په یاء سره وی یعنی اعراب دٔ دوئ
به بالحرف وی او لفظی به وی او بعض احوال به تابع دٔ بعض نه وی په دے شان سره چه
په حالت رفعی کښې به واو وی او په حالت نصبی کښې به الف وی او په حالت جری کښې
به (ی) وی او دا قسم اعراب ئے ورکړه دے اسماء له څکه چه دا مفردات وو نو دٔ
هغوی اعراب بالحرکة وو او چه چرته تثنیے او جمع وی نو دٔ هغوی اعراب بالحروف
وو نو ده ئے ګرځولو اعراب دٔ بعض مفرداتو چه اسمائے سته دی
بالحروف دٔ پاره دٔ دے چه لازم نشی وحشت او منافرت تامه په مابین
دٔ مفرداتو او دٔ تثنیو او دٔ جمعو کښې چون جاء ابوک. دا مثال
دٔ رفع دے (ترکیب) جاء فعل ابوک فاعل فعل سره دٔ فاعل خپل نه جمله
فعلیه خبریه ورأیت اَبَاکَ دا مثال دٔ حالت نصبی دے (ترکیب) رأیت
فعل فاعل اَبَاکَ مفعول به فعل سره دٔ فاعل او سره دٔ مفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه
ومررت بابیکَ دا مثال دٔ حالت جری دے (ترکیب) مَرَرْتُ فعل فاعل باء جار اَبِیکَ
مجرور جار سره دٔ خپل مجرور نه متعلق شو دٔ مررت سره فعل سره دٔ فاعل خپل او دٔ متعلق
خپل نه جمله فعلیه خبریه او مثال دٔ اَخٌ او حمٌ، لکه جاء اَخُوکَ ورأیتُ اَخاکَ ومررتُ
باخیکَ دا رنګه حَمُوکَ حماکَ وحمیکَ دے، او مثال دٔ هَنٌ لکه هذا هَنُوکَ رأیتُ
هَنَاکَ وغمضتُ من هَنِیکَ بصفیة المخاطب فی المتأین آلاخرین، او مثال
دٔ فَمٌ لکه هذا فُوکَ رأیتُ فَاکَ وعجبتُ من فیکَ او مثال دٔ ذو
لکه هذا ذومالٍ رأیت ذامالٍ ومررت بذی مالٍ او ترکیبونه دٔ دے مثالونو
معلومیږی دٔ استاذ ګذشتوه نه فتامل فیه۔
مرکیه دومره خوږی پریده × زه ده نحومیر تقریر او دٔ جانان غم سوزلے یمه

هفتم مثنیٰ حون رجلان . اوګم قسم دَه شپاړسو قسمونو نه مثنیٰ ده لکه رجلان شو
تحقیق دَه مثنیٰ تګئے تیر شوید ے لکه جاءنی رجلان الخ هشتم کلا وکلتا مضاف بمضمر
اتم قسم کلا وکلتا دی چه کله دا مضاف وی ضمیر ته په دے قید سره ئے احتراز اوکړو
دَه هغے نه چه مضاف وی اسم ظاهر ته ځکه چه کله دا دواړه مضاف وی اسم ظاهر ته
نو اعراب دَه دے دواړو باالحرکة راځی او تقدیری وی په احوالو ثلاثو کښے لکه جاءنی
کلا الرجلان ورأیت کلا الرجلین ومررت بکلا الرجلین ،

پس اذه کړه دا خبره چه کلا او کلتا لره دوَه حالته دی یو دا دے چه مضاف وی
اسم ظاهر ته او دوَیم دا چه مضاف وی ضمیر ته چه مضاف وی اسم ظاهر ته نو دا به
معرب وی په اعراب باالحرکة سره او چه مضاف وی ضمیر ته نو دا به معرب وی
په اعراب باالحروف سره ځکه چه کلا او کلتا لره دوَه اعتباره دی یو اعتبار دَه لفظ دے
دوَیم اعتبار دَه معنیٰ دے په اعتبار دَه لفظ سره مفردات دی نو تقاضاء دَه اعراب
باالحرکة کوی او په اعتبار دَه معنیٰ سره تثنیه دی نو تقاضاء دَه اعراب باالحروف
کوی نو مونږه دَه دواړو لحاظ اوکړو په دے شان سره چه مضاف وی اسم ظاهر
ته نو هغے له مو اعراب باالحرکة ورکړو او چه مضاف وی ضمیر ته نو هغے لره
مو اعراب باالحروف ورکړو او تقسیم مونږه په دے طریقه سره ځکه اوکړو چه دَه جهت
دَه معنیٰ مناسبت دے دَه اضافت سره مضمر ته ځکه چه په جهت دَه معنیٰ سره دا
تثنیه دی او تثنیه فرعه دَه مفرد ده او اضافت ضمیر ته فرعه ده دَه اضافت
اسم ظاهر ته او دَه جهت ده لفظ مناسبت دے دَه اضافت سره اسم ظاهر ته
ځکه چه په جهت دَه لفظ سره دا مفردات دی او مفردات اصل دی په نسبت سره
تثنیو او جمعو ته او اضافت اسم ظاهر ته اصل دے دَه اضافت نه ضمیر ته نو
مونږه ورکړو مناسب مناسب خپل ته دَه پاره دَه رعایت دَه مناسبت

نهم اثنان واثنتان ، نهم قسم دَه شپاړسو قسمونو دَه اسم متمکن نه اثنان
او اثنتان دی ـ (فائده) دَه کلا او کلتا معنیٰ ده دوه دواړه خو کلا دَه پاره
دَه مذکور دے او کلتا دَه پاره دَه مؤنث دے او دَه اثنان معنیٰ ده دوَه سړی او دَه

نهم تثنیه معنوی وده نحوی رفع شان بالف باشد ونصب وجر بیا ما قبل مفتوح . رفع به کښی وده ادوده تثنیه شنتان په الف سره وی ونصب وجر به په (ی) ما قبل مفتوح سره وی یعنی عرب ده دوی به باالحروف وی ونفظی به وی په تولو حالو کښی وبعض حالو به تابع وی ده بعضو یعنی نصب به تابع وی ده جر په دے شان سره چه حالت رفعی به په الف سره وی او حالت نصبی وجری به په (ی) ماقبل مفتوح سره وی وماقبل ده (ی) په تثنیه کښی مفتوح وی او مکسور به نه وی ده پاره ده فرق په ما بین ده تثنیے وجمع مذکر سالم کښے ، فان قیل ، چه فرق په عکس سره اوکړه په دی تثنیه سره چه ما قبل ده (ی) نه دی په تثنیه کښے مکسور شی او په جمع مذکر سالم کښے دے مفتوح شی قلنا چه فرق په عکس سره نه کوو ځکه چه تثنیه اسبق ده وجوداً وفتحه اخف وه نو تثنیے سابقه فتحه واخسته نو کسره پاتی شوه جمع ته ،

چون جاء رجلان وکلاهما واثنان دا مثال ده حالت رفعی دے بیلم رجلان مثال ده تثنیے دے اوکلاهما مثال ده کلا دے اوکلتا او اثنتان پرے قیاس دی ځکه چه هغه مؤنث ده کلا او اثنان دی ورأیت رجلین وکلیهما واثنین دا مثال ده حالت نصبی دے

ومررت برجلین وکلیهما واثنین دا مثال ده حالت جری دے ، دهم جمع مذکر سالم

چون مسلمون وتحقیقه قدمر یازدهم اولو ، یوازدهم اولو دے دوازدهم عشرون تا تسعون یعنی عقود ثمانیه دی یعنی عشرون ثلاثون اربعون خمسون ستون سبعون ثمانون تسعون وپے اولو او عقود ثمانیه نو ته ملحقات ده جمع مذکر سالم وائی ، او دا جمع حقیقی نه دی ځکه کچیری جمع حقیقی شی نو صحیح به نه شی اطلاق ده عشرون په ثلاثون او ده ثلاثون په ثلاثه باندے او دا اطلاق صحیح نه دے نو دا جمع حقیقی هم نه شوے تأمل فیه،

رفع شان بواو ماقبل مضموم باشد ونصب وجر بیا ما قبل مکسور ، رفع ده دے دریمو اړو به په واو ماقبل مضموم سره وی او نصب او جر به ئے په (ی) ماقبل مکسور سره وی یعنی اعراب به ئے باالحروف وی او لفظی به وی په احوال ثلاثو کښے او بعض احوال به تابع وی ده بعضو په دے شان سره چه حالت رفعی به په واو سره وی او نصبی جری به په (ی) سره وی

چون جاء مسلمون واولو مال وعشرون رجلاً ، ورأیت مسلمین واولی مال وعشرین رجلاً ومررت

بمسلمین واولی مالٍ وعشرین رجلاً ، حاصل داوے چه مثنیٰ او ملحقات دَ مثنیٰ چه اثنان ، ثنتان وی اعراب دَ دوئی په داوی . چه په حالت رفعی به په الف سره وی او نصبی او جری به په (یٔ) سره وی او جمع مذکر سالم او ملحقات دَ جمع مذکر سالم چه اُولُو او عشرون ثمانیه دی دَ دوئی اعراب به داوی چه حالت رفعی به په واو سره وی او حالت نصبی وجری به په (ی) ماقبل مکسور سره وی . پس دا قسم دَ اعراب خاص شو په مثنیٰ او په ملحقاتو دَ مثنیٰ پوری ، او چه حالت رفعی په واو سره وی او نصبی جری په (ی) وی خاص شو په جمع مذکر سالم پورے او په ملحقاتو دَ جمع مذکر سالم ځکه چه حروف دَ اعراب ثلاثه دی واو الف او یاء او هر واحد دَ تثنیے او جمع احوال ثلاثه دی نو شو مجموعه احوال دَ تثنیے او جمع شپږ نو که مونږ راهم ورکوؤ دوه دوه ولو په دے شان سره چه واو ورکړو حالت رفعی دَ تثنیے لره او الف ورکړو حالت نصبی دَ تثنیے او جمع لره او (ی) ورکړو حالت جر دَ تثنیے او جمع لره نو لازمیږی التباس او که ورکوؤ ئے احدهما لره نو بیا پاتے کیږی آخر بلا اعراب نو مونږ تقسیم اوکړو په دے شان سره چه الف مو ورکړو حالت رفعی دَ تثنیے لره سره دَ ملحقاتو ئے ځکه چه دا الف راغلے دے ضمیر دَ تثنیے په افعالو کښے لکه نصرا شو او واو مو ورکړو حالت رفعی د جمع مذکر سالم سره دَ ملحقاتو ئے ځکه چه دا راغلے دے ضمیر دَ جمع مذکر په افعالو کښے لکه نصروا شو او یاء مو مشترکه کړه په حالت نصبی او جری دَ تثنیے کښے سره دَ ملحقاتو او دَ جمع مذکر سالم کښے سره د ملحقاتو نه او فرق مو وکړو په تثنیه او جمع کښے په حرکت دَ ماقبل سره په دے شان سره چه ماقبل دَ (ی) نه مونږ په تثنیه کښے مفتوح کړو او په جمع کښے مو مکسور کړو ،

سیزدهم اسم مقصور ، دیارلسم قسم له شپاړس قسمونو ده اسم متمکن نه اسم مقصور دے او اسمیست که در آخرش الف مقصوره باشد ، او دا اسم مقصور هغه کسے چه په آخیر دَ ده کښے الف مقصوره وی چون موسیٰ ، لکه موسیٰ شو څوارلسم غیر جمع مذکر سالم مضاف بیائے متکلم ، څوارلسم قسم دَ اسم متمکن نه هغه اسم دے چه غیر وی له جمع مذکر

او مضاف وی (ی) دٔه متکلم نه چون غُلَامِی، نکه غُلَامِی شو رفع شان بتقدیر ضمه
باشد و نصب بتقدیر فتحه و جر بتقدیر کسره و در لفظ همیشه یکسان باشد
رفع دٔه دے (اسم مقصور او دٔه هغه اسم چه غیروی دٔه جمع مذکر سالم
نه او مضاف وی (ی) دٔه متکلم نه) په تقدیر دٔه ضمے سره به وی او نصب
به پهٔ تقدیر دٔه فتحے سره وی او جر به پهٔ تقدیر دٔه کسرے سره وی او په لفظ
بکښے به یو شان وی یعنی اعراب دٔه دے دواړو به بالحرکة وی او تقدیری
وی پهٔ احوالو ثلاثو کښے او بعض احوال به تکیبع ده بعضو نهٔ وی پهٔ دے شان چه پهٔ
حالت رفعی کښے به ضمه تقدیری وی او پهٔ حالت نصبی کښے به فتحه تقدیری وی او په حالت
جری کښے به کسره تقدیری وی، چونجاءَ مُوسیٰ ورائیتُ موسیٰ وغلامی ومررتُ بموسیٰ
وغلامی.، په اسم مقصور کښے به اعراب تقدیری حکه وی پهٔ احوالو ثلاثو کښے چه دٔه
دے په آخر کښے الف راغلے دے او الف ساکن وضعی دے قابل دٔه حرکت نه دے
او هغه اسم چه غیروی دٔه جمع مذکر سالم نه او مضاف وی (ی) دٔه متکلم ته نو په
هغه کښے به حکه وی چه دٔه دے په آخر کښے کسره بنائی راغلے دٔه دٔه وجے دٔه (ی) دٔه متکلم
نه نو هر کله چه پهٔ آخر دٔه دیکښے کسره بنائی راغله نو منع شو پهٔ دیکښے حرکت، آخر بل اعرابی
ده چه موافق وی دٔه دے کسرے بنائی سره نکه کسره اعرابی شوه او که مخالف وی نو
ضمه او فتحه مشوُو۔

یا نزدهم اسم منقوص وآن اسمی است که آخرش یائے ماقبل مکسور
باشد چون قاضِی، بخُلسم قسم دٔه ستیار سوقسمو نو دٔه اسم متمکن نه اسم
منقوص دے او دا اسم منقوص هغه اسم دے چه پهٔ آخر دٔه هغه کښے (ی)
او ماقبل دٔه (ی) نه مکسور وی نکه قَاضِیٌ او پهٔ لغت کښے دٔه منقوص معنیٰ ده
کم کړے شوے نو دیته اسم منقوص حکه وائی چه پهٔ دیکښے هم کے راځی حکه
چه کله ئے دٔه آخر نه (ی) حذف کیږی او کله نفس حرکت حذف کیږی نکه آتقاضِی

رفعش بتقدیر ضمه باشد و نصبش فتحه لفظی و جرش بتقدیر کسره، رفع ئے
دٔه ضمے سره وی او نصب به ئے په فتحے لفظی سره وی او جر به ئے په تقدیر دٔه

سره وی ، یعنی اعراب به ئې بالحرکة وی او تقدیري به وی په بعض احوالو کښې یعنی په حا
رفع او جر کښې به تقدیري وی او په حالت دَ نصب کښې به لفظي وی په دے مثـ
چه په حالت رفعي کښې به ضمه تقدیري وی او په حالت نصبي کښې به فتحه لفظي وی او
ی کښې به کسره تقدیري وی ، په حالت رفعي او جري کښې به اعراب تقدیري دَ
په په حالت رفعي او جري کښې ضمه وکسره راځي په (ی) باندے او ضمه او کسره په
حروف علت ضعیفه باندے ثقیل دی ، او په حالت نصبي کښې به فتحه لفظي وے و
چه په حالت نصبي کښې فتحه راځي په (ی) باندے او فتحه په (ی) باندے ثقیل
ځکه چه فتحه حرکت خفیفه دے ، چون جاء القاضِیْ ورائیت القاضِیَ ومررت
بکه جاء القاضی الی آخره شُو ، نو په رائیت القاضی کښې به (ی) مفتوح وی او په
دواړو کښې به ساکنه وی ..

شانزدهم جمع مذکر سالم مضاف بیائے متکلم چون مُسْلِمِیَّ ، شپاړسم قسم
سم متمکن نه جمع مذکر سالم ده چه مضاف وی (ی) دَ متکلم ته لکه مسلمیّ شو
رفعش بتقدیر واو باشد و نصب وجرش بیائے ماقبل مکسور ، رفع دَ دے به په ت
دَ واو سره وی او نصب او جر به ئې په (ی) ماقبل مکسور سره وی یعنی اعراب به
بالحروف وی او تقدیري به وی په بعض احوالو کښې یعنی په حالت رفعي کښې او بعـ
احوال به تابع وی دَ بعضو په دے شان سره چه حالت رفعي به په واو سره وی
حالت نصبي جري به په (ی) لفظي سره وی ، په حالت رفعي کښې به اعراب تقدیري
وی چه په حالت رفعي کښې اعلال شویدے ځکه چه واو بدل شویدے په (ی) د
او اعلال شيء لره خارجه وی دَ حقیقت خپل نه نو واو باقي پاتې نه دے او په حالت
او جري کښې به اعراب په (ی) لفظي سره ځکه وی چه په حالت نصبي او جري کښې اد
شویدے او ادغام شي لره نه خارجه وی دَ حقیقت خپل نه (نوری) باقي پاتې ده ،

چون هٰؤُلاءِ مُسْلِمِیَّ ، معنا دا مسلمانان زما دی ، که دراصل مُسْلِمُوْنَ بود نون با ضافه
ساقط شد ، چه په اصل کښې مسلمون وُو نون ساقط شو په اضافت سره ځکه چه
ضافت سره دَ آخر دَ مضاف نه تنوین او قائمقام دَ تنوین چه نون دَ تثنیے او

دُه جمع دے ساقطیږی ځکه چه پهٔ مابین دُه مضاف او مضاف الیه کښے شدت اتصال وی پهٔ لفظ کښے او دا علامے دُه انفصال دی او پهٔ مابین دُه اتصال او انفصال کښے منافات دے، او یا ځکه ساقطیږی چه اضافت علامه دُه عدم تمام دُه کلے ده یعنی چه دا کلمه تمامه نه ده او س به پهٔ مضاف الیه سره تمامیږی او دا علامے دُه تمام دُه کلے دی او پهٔ ما بین دُه تمام او نه تمام کښے منافات دے چه هرکله نون ساقط شو په اضافت سره ری) ده متکلم ته نو مسلموی شو،

واو ویا جمع شده بودند و سابق ساکن بود واو را بیا بدل کردند ویاء را در یا ادغام کردند مسلمیّ شد ضمه میم را بکسره بدل کردند، واو او یا جمع شول اول ساکن وُو واو بدل په یاء شو او یا پهٔ یاء کښے مدغم شوه او ضمه دُه میم پهٔ کسرے سره بدل کړی ده پاره دُه مناسبت دُه ری) لنو مُسْلِمِیُّ شو، ورائیت مُسْلِمِیَّ ومررت بِمُسْلِمِیَّ ،، حاصل دا دے چه اعراب پهٔ دوهٔ قسمه دے یو باالحرکة دویم باالحروف چه باالحرکة وی نو هغه پهٔ دریے قسمه دے یو قسم هغه دے چه لفظی وی پهٔ ټولو احوالو کښے او دویم قسم هغه دے چه پهٔ بعض احوالو کښے لفظی وی او په بعض احوالو کښے تقدیری وی او دریم قسم هغه دے چه تقدیری وی پهٔ کل احوالو کښے، او هم دارنګه پهٔ اعتبار آخر سره اعراب باالحرکة پهٔ دوهٔ قسمه دے یو قسم هغه دے چه بعض احوال یکښے تابع نهٔ وی دُه بعضو او دویم قسم هم دے چه بعض احوال تابع دُه بعضو وی، او اعراب باالحرف پهٔ دوهٔ قسمه دے یو قسم هغه دے چه لفظی وی په ټولو احوالو کښے او بل قسم هغه دے چه لفظی وی په بعض احوالو کښے او تقدیری وی پهٔ بعض احوال کښے او هم دارنګه په اعتبار آخر سره دا په دوهٔ قسمه دے یو قسم هغه دے چه بعض احوال یکښے تابع دُه بعضو نهٔ وی او دویم قسم هغه دے چه بعض احوال تابع دُه بعضو وی. ختم شد بعون الله بحث اعراب ده اسم نه والحمد لله۔

---

خطاط

محمد طیب طاهری بن مولوی عبد الغیاث القندهاری حالاً ساکن کوئٹه بلوچستان ایئر پورٹ روډ مسلم آباد، بتاریخ ۲۰/۱۰/۱۹۹۲ء موافق ۲۳/۵/۱۴۱۳ھ یوم الثلثاء،

**فصل** هرکله چه فارغه شو مصنف رح ده بیان ده اعراب ده اسم نه نو شروع ئې اوکړه په اعراب ده فعل کښې چه اعراب ده فعل مضارع دے نو وَه ئې ویل ، فصل بدانکه اعراب فعل مضارع سه است رفع ونصب وجزم، پوهه شه چه اعراب ده فعل مضارع درے دی رفع ده نصب دے او جزم دے رفع به په هغه وقت کښې وی چه خالی وی ده عوامل ناصبه او جازمه نه او نصب به په هغه وخت کښې وی چه عامل ده نصب په کښې داخل وی او جزم به په هغه وخت کښې وی چه عامل ده جزم پکښې داخل وی ۱۲ فعل مضارع باعتبار وجوه اعراب برچهار قسم ست ، فعل مضارع په اعتبار ده وجوه ده اعراب سره په څلور قسم ده اول صحیح مجرد از ضمیر بارز مرفوع برائے تثنیه وجمع مذکر وبرائے واحده مؤنثه مخاطبه، اول قسم ده هغه څلور و قسمونو نه مضارع صحیح ده چه مجرده وی ده ضمیر بارزه مرفوعه نه چه ده پاره ده تثنیے او جمع مذکر وی او ده پاره ده واحد مؤنث مخاطبه وی رفعش بضمه باشد ونصب بفتحه وجزم بسکون، رفع ده دے به په ضمه سره وی او نصب به ئے په فتحه سره وی او جزم به ئے په سکون سره وی یعنی اعراب به ئے لفظی وی په احوالو ثلاثو کښې او بعض احوال په تابع ده بعض نه وی په دی مثال سره چه حالت رفعی به ئے په ضمه سره وی او نصبی به ئے په فتحه سره وی او جزمی به ئې په سکون سره وی چون هو یَضْرِبُ ، لکه هو یضرب شو معنی دا ده چه هغه وهل کوی ، هو مبتداء یضرب فعل ضمیر په کښې مستتر دے هغه فاعل کیږی ده فعل فعل سره ده خپل فاعل نه جمله فعلیه خبر ده پاره ده مبتدا، او مبتداء سره ده خبر خپل نه جمله خبریه اسمیه، ولَنْ یَضْرِبَ ، دا مثال ده نصب دے او عمل ده نصب پکښې لن ناصبه کړے دے ولَمْ یَضْرِبْ ، دا مثال ده جزم دے په دیکښې لم داخل دے ده حروف جازمو نه دوئیم مفرد معتل واوی ، دوئیم قسم فعل مضارع ده چه مفرده وی او معتل واوی وی یعنی هغه فعل مضارع ده چه مفرده وی او په لام کلمه کښې ئې حرف علت واو داخل وی چون یَغْزُوْا ، لکه یغزوا شو ویائی ، او یائی ده یعنی چه په لام کلمه کښې حرف علت یاء داخل وی چون یَرْمِیْ ، لکه یرمی شو. رفعش بتقدیر ضمه باشد ونصب بفتحه لفظی وجزم بحذف لام ، رفع ده دے به په تقدیر ده

رفع دهٔ دے یه پهٔ تقدیر دهٔ ضمې سره وی او او نصب ئې په فتحې لفظي سره وی او جزم به ئې په
حذف دهٔ لام سره وی یعنی اعراب دهٔ دے یه پهٔ بعض اموالو کښې لفظي وی او په بعض
اموالو کښې یه تقدیري وی، حالت رفعي کښې به ضمه تقدیري ځکه وی چه په حالت رفعي
کښې ضمه راتلې په واو او (ی) باندے او ضمه په واو او (ی) باندے ثقیل ده
او په حالت نصبي کښې به فتحه لفظي ځکه وی چه په حالت نصبي کښې فتحه راتلې په واو او
ویاء باندے او فتحه په واو او (ی) باندے ثقیل نه ده او په حالت دهٔ جزم کښې به لام کلمه
ځکه حذف کیږي چه جازم غوړځوی حرکت چه بیا نه مومی حرکت نو غوړځوی مناسب
دهٔ حرکت او دلته واو مناسب دهٔ حرکت دے ځکه چه جوړ دے دهٔ دوؤ ضمو نه او یاء هم
مناسب دهٔ حرکت ده ځکه چه جوړه ده دوؤ کسرو نه، چون هو یَغزُو ویَرمِي دا مثال دهٔ
ده رفع دے بیا یَغزُو مثال ده واوی دے او یَرمِي مثال دهٔ یائی دے ولن یَغزُوَ ولن یَرمِيَ
دا مثال دهٔ نصب دے بیا اول مثال دهٔ واوی او دویم مثال ده یائی دے ولم یَغزُ ولم یَرمِ
دا مثال دهٔ جزم دے بیا اول مثال دهٔ واوی دے او ثانی مثال دهٔ یائی دے،

سوم مفرد معتل الفي، دریم قسم فعل مضارع مفرد معتل الفي ده یعنی چه په لام کلمه ئې الف داخلې
وی دهٔ حروفو علتو نه چون یَرضٰی، که یرضی شو یرضی صیغه دهٔ واحد مذکر غائب فعل مضارع
معلوم دهٔ ناقصو نه په اصل کښې یَرضَيُ وو (ی) بدل شوه په الف سره په شان دهٔ باع نو یرضی شو
رفعش بتقدیر ضمه باشد ونصب بتقدیر فتحه وجزم بحذف لام، رفع دهٔ دے په تقدیر
دهٔ ضمې سره وی او نصب به ئې پهٔ تقدیر دهٔ فتحې سره وی او جزم ئې په حذف دهٔ لام سره
وی یعنی په حذف ده الف چه واقع دے په لام کلمه کښې، په حالت رفعي او نصبي کښې به
حرکت تقدیري ولے وی ځکه چه الف ساکن وضعي دے حرکت نه قبلوی نو ضمه او فتحه
په دے نشي راتلے نو په حالت رفعي کښې به ضمه تقدیري وی او په حالت نصبي کښې به فتحه
تقدیري وی او جزم به په حذف ده لام یعنی الف سره ځکه وی چه جازم غوړځوی
حرکت چه بیا نه مومی حرکت نو غوړځوی مناسب دهٔ حرکت او مناسب دهٔ حرکت دلته
الف دے ځکه چه دا الف جوړ دے ده دوؤ فتحو نه چون هو یَرضٰی ولن یَرضٰی ولم یَرضَ
هو یرضی مثال دهٔ رفع دے او لن یرضی مثال دهٔ نصب دے او لم یرض مثال دهٔ جزم دے

چهارم صحیح یا معتل با ضمائر و نونهائے مذکوره، څلورم قسم فعل مضارع صحیح یا معتل ده چه سره ده ضمائرو او نونانو مذکورو نه وی چه نون ده تثنیے او جمع او واحد مؤنث مخاطبے دے رفع شان باثبات نون باشند رفع دَه دے به پُه اثبات دَه نون سره وی یعنی په حالت رفعی کښے به نون باقی وی ځکه چه دا قائمقام راغلے دے دَه هغه حرکت اعرابی نه چنانکه در تثنیه گوئی هما یَضرِبَانِ الی آخره لکه چه په تثنیه کښے به وائی هُمَا یَضرِبَانِ وَیَغزُوَانِ وَیَرمِیَانِ وَیَرضَیَانِ اول مثال دَه فعل مضارع صحیح دے او باقی در یواړه مثالونه دَه معتل دی ورد جمع مذکر گوئی هم یَضرِبُونَ الی آخره او په جمع مذکر کښے به وائی هم یَضرِبُونَ وَیَغزُونَ وَیَرمُونَ وَیَرضَونَ دلته هم اول مثال دَه فعل مضارع صحیح دے او باقی درې مثالونه دَه معتل دی ودر مفرد مونث حاضر گوئی انتِ تَضرِبِینَ الی آخره او په مفرد مؤنث حاضر کښے به وائی انتِ تَضرِبِینَ وَتَغزِینَ وَتَرمِینَ وَتَرضَینَ دا ټول دولس[۱۲] مثالونه دی دَه رفع څلور مثالونه دَه تثنیے او څلور دَه جمع مذکر او څلور دَه واحد مؤنث حاضر بیا په هر واحد کښے مثال اول دَه صحیح دے باقی دَه معتل دی،

ونصب وجزم بحذف نون، او نصب وجزم به په حذف دَه نون سره وی یعنی په حالت نصبی کښے بهم نون ساقطیږی او په حالت جزمی کښے بهم نون ساقطیږی هر چه دے په حالت جزمی کښے نو دا ځکه چه جازم غوړځوی حرکت چه بیا نه موجی حرکت نو غورځوی قائمقام دَه حرکت او دلته دا نون قائمقام دَه حرکت دے ځکه چه دا عوض راغلے دے دَه اعراب دَه مفرد نه، او هر چه دے په حالت نصبی کښے دَه وجے دَه حمل نه په حالت جزمی باندے یعنی حالت نصبی تابع دے دَه حالت جزمی لان الجزم فی الأفعال کالجر فی الأسماء لکه جر چه خاص دے په اسماء پورې نو دارنګه جزم خاص دے په افعالو پورې یعنی جزم مشابه دے دَه جر سره په اختصاص کښے او په اسماؤ کښے نصب تابع دَه جر راتلو نو په افعالو کښے تابع دَه جزم هم شوو

چنانکه در تثنیه گوئی لن یَضرِبَا الخ لکه په تثنیه کښے به وائی لن یَضرِبَا ترآخره پورې

څلور مثالونه دهٔ نصب دی او څلور دهٔ جزم دی. ودرجمع مذکر گوئی لن یضربوا الی آخره اوپهٔ جمع مذکر کښے به وائی لن یضربوا ترآخره پوری دلته هم څلور مثالونه دهٔ نصب دی او څلور ده جزم دی. ودرمفرد مؤنث حاضر گوئی لن تضربی الی آخره دلته هم څلور مثالونه دهٔ نصب دی او څلور دهٔ جزم دی،

هرکله چه فارغ شو مصنف رح دهٔ بیان دهٔ اعراب نه اودهٔ اقسامو دهٔ اسم او دهٔ فعل نه پهٔ اعتبار دهٔ اعراب سره نو شروع ئے اوکړه په بیان ده عواملو کښے،

پس اذکرلا کرلا داخبره، چه عوامل جمع دهٔ عامل ده عامل پهٔ لغت کښے مؤثر ته وائی او پهٔ اصطلاح کښے عامل پهٔ دوه قسمه دے یو مطلق عامل دے او بل عامل دهٔ اسم مطلق دے مطلق عامل دیته وائی ما اوجب کون آخر الکلم الثلث علی وجه مخصوص من حیث الاعراب والبناء، او عامل دهٔ اسم دیته وائی ما بتقوم المعنی المقتضی للاعراب، یعنی عامل دهٔ اسم هغه شئ دے چه پهٔ سبب دهٔ هغه سره حاصلیږی هغه معنی چه تقاضاء دهٔ اعراب کړی، چه هغه معنی دهٔ فاعلیت مفعولیت اضافت ده

پس دهٔ هغینه عوامل دهٔ اعراب پهٔ دوه قسمه دی لفظی او معنوی، دهٔ لفظی معنی لغوی ده منسوب لفظ ته او په اصطلاح کښے لفظی هغه عامل دے چه یعلم بالقلب ویتلفظ به، یعنی عامل لفظی هغه عامل دے چه پهٔ زړه سره معلومولے شی او تلفظ پرے هم کیدے شی لکه لم شوو پهٔ لم یضرب کښے، او ده معنوی لغوی معنی ده منسوب معنی ته او په اصطلاح کښے عامل معنوی هغه عامل دے چه یعلم بالقلب ولایتلفظ به یعنی عامل معنوی هغه دے چه په زړه سره معلومولے شی او تلفظ پرے نشی کولے لکه عامل معنوی شوو په زید او قائم کښے پهٔ ترکیب دهٔ زید قائم کښے،

عامل لفظی بیا پهٔ دوه قسمه دے سماعی او قیاسی، سماعی هغه دے چه، یسمع من العرب ولایقاس علیه او قیاسی ما یسمع من العرب ویقاس علیه، عوامل سماعی بیا په دری قسمه دی حروف عامله اسمائی عامله او افعال عامله حروف عامله

همغه عوامل دی چه ذات ئے حروف وی، او افعال عامله همغه عوامل دی چه
ذات ئے افعال وی او اسمائے عامله همغه عوامل دی چه ذات ئے اسماء وی
فاحفظ هذا التقریر فانه نافع واسئل الله الی العافیه وحسن الخاتمة،

(فصل)

بدانکه عوامل اعراب بر دو قسم ست لفظی و معنوی، . پوهه شه چه عوامل ده اعراب
په دوه قسمه دی لفظی او معنوی لفظی ته لفظی وائی حُکه چه دا منسوب دی لفظ ته حُکه چه
په لفظ کښے راځی او معنوی ته حُکه معنوی وائی چه منسوب دی معنیٰ ته، کما مرّ آنفا،
لفظی بر سه قسم ست حروف و افعال و اسماء، لفظی په درے قسمه دی حروف او
اسماء او افعال خو دا اقسام ده یو قسم ده عوامل لفظیه دی چه عوامل سماعی دی
واین را در سه باب یاد کنیم ان شاء الله تعالیٰ او دا به په درے بابونو کښے ذکر کړم ان شاء الله،

# باب اول

در حروف عامله و در دو فصل ست، باب اول په بیان ده حروفو عاملو کښے دے
او په دیکښے دوه فصلونه دی حروف عامله ئے مقدم کړی دی ده افعالو عاملو
او اسمائے عاملو نه حُکه چه حروف ډیر دی او العزة للکاثرین، بیا حروف
عامله په دوه قسمه دی یو قسم حروف عامله دی په اسم کښے او دویم قسم حروف
عامله دی په فعل کښے لو حروف عامله ده اسم ئے مقدم کړی په حروف
عاملو ده فعل بانde حُکه چه حروف عامله ده اسم اصل دی په اعتبار
ده مدخول سره حُکه چه اسم اصل دے ده فعل نه،

فصل اول در حروف عامله در اسم و آن پنج قسم ست فصل اول په بیان ده حروفو
عاملو ده اسم کښے دے او دا پنځه قسم دی قسم اول حروف جر، او قسم اول ده پنه حروفو
جنس دی او دیته حروف جر حُکه وائی چه دا په مدخول خپل کښے عمل ده جر کوی او دیته حروف

جاره هم وائی ځکه چه داخل مدخول ته جرورکوی یا ده جاروا معنی ده راسبکوئکی او دا حروف هم معنیٰ ده فعل شبه فعل را کاږی مدخول خپل ته او ده دوئ بل نوم حروف المعانی دے او حروف معانی ور ته ځکه وائی چه ده دوئ مختلف معنیٰ گانی دی ، کما فی شرح مأة عامل،

وآن هفت ده است ، او اصغحروف جر اولسّیٰ دی لیکن دا مذهب ده جمهورودے او ابن حاجب رح وائی چه اتلسّ دے یو ورسره واوده رُبَّ زیاتی کوی یعنی واو چه په معنیٰ ده رُبَّ سره دے او دلیل پرے دا قول ده شاعر دا دے ،

وَبَلْدَةٍ لَيسَ فِيهَا اَنِيسٌ + اِلَّا الْيَعَافِيرُ وَ اِلَّا الْعِيسُ

نو ابن حاجب صاحب وائی واو په وبلدةٍ کښے په معنیٰ ده رُبَّ سره دے او په بلدةٍ کښے ئے عمل ده جرکړے دے ، لیکن غوره مذهب ده جمهور دے او جواب ده جانبه ده جمهور نه ده دغه شعر مذکوره دا دے چه دلته عمل ده جر واو نه دے کړے بلکه روستو ده واؤ نه رُبَّ مقدر دے ده حروفو جار و نه نو په بلدةٍ کښے عمل ده جر هغه رب مقدره کړیدے ، بَاء ومِنْ والیٰ وحتّیٰ وفی ولام ورُبّ وواو قسم وتائے قسم وعن وعلیٰ وکاف تشبیه ومذ ومنذ وحاشا وخلا وعدا ، باء ده سره ده معطوفاتو نه ، قوله واو قسم واو قسم هغه واو دے چه راځی ده پاره ده قسم لکه واللّٰه لاضربنّ زیداً ، قسم دے وی زما په اللّٰه چه زه به وهمه زید لره او تائے قسم لکه تاللّٰه لاضربنّ زیداً قوله وکاف تشبیه کاف تشبیه هغه کاف دے چه راځی ده پاره ده تشبیه ورکولو ده یو شئ ده بل شی سره این حروف در اسم رانند و آخرش را بجر کنند چون المال لزیدٍ ، دا حروف داخلیږی په اسم باندے او آخیر ده اسم لره جرورکوی لکه المال لزیدٍ (ترکیب) المال مبتداء لام جار زید مجرور جار مجرور متعلق دے ده ثابتٌ مقدره سره متعلق سره ده متعلق خپل نه خبر ده پاره ده مبتداء مبتداء سره ده خبر خپل نه جمله اسمیه خبریه ،

پس از ده کره دراخبرت چه دا حروف مذکوره په اعتبار ده ذات خپل سره په دریٔ قسمه دی اول قسم هغه دی چه حروف دی فقط یعنی اسماء او افعال نه دی او دا شپږ دی مِن والیٰ وحتّیٰ وفی وباء ولام ورُبّ وواو قسم وتائے قسم ، او دوئم قسم هغه

دی چه کله اسماء وی او کله حروف وی داپنځه دی عَن وعَلیٰ وکاف ومُذ ومُنذ او دریم قسم هغه دی چه کله حروف وی او کله افعال وی او دا درې دی خلا وحاشا وعدا۔

پس دے قسم اول ذات حروف دی او مدخول ئې اسم دے او عمل ئې دۀ جر دے او شمار ئې اولس دے او مشهور نوم ئې حروف جاره دی او بیو نوم ئې حروف معانی دے، دوم حروف مشبه بالفعل دویم قسم دۀ حروفو عاملو دۀ اسم نه حروف مشبه بالفعل دی مشبهة صیغه دۀ اسم مفعول ده دۀ باب تفعیل مصدر ئې تشبیه راځی تشبیه معنیٰ یو شئ دۀ بل سره مشابه کول، نو معنیٰ دۀ حروفو مشبه بالفعل دا شوه هغه حروف چه مشابه کړے شوی دی دۀ فعل سره او دے حروفو ته حروف مشبه بالفعل ځکه وائی چه دا مشابه دی دۀ فعل سره لفظاً او معنیً هر چه دے مشابهت په لفظ کښے نو هغه دا دے چه لکه څرنګه فعل ثلاثی رباعی او خماسی راځی نو دا هم بعض ثلاثی بعض رباعی او بعض خماسی دی۔

او بل لکه په فعل پورے کاف دۀ خطاب پیوسته کیږی لکه ضَرَبَکَ نو په دوئی پورے هم پیوسته کیږی لکه اِنَّکَ اَنَّکَ شو، او لکه څرنګه چه په فعل پورے لحوق دۀ نون وقایه او یاء دۀ متکلم کیږی نو په دوئی پوری هم کیږی، او هر چه دے مشابهت په معنیٰ کښے نو هغه دا دے چه معنیٰ دۀ اِنَّ او دۀ اَنَّ حَقَّقْتُ ده او دا فعل ماضی ده، او معنیٰ دۀ کَاَنَّ شَبَّهْتُ ده او شَبَّهْتُ فعل ماضی ده او معنیٰ دۀ لٰکِنَّ استدرکت ده او استدرکتُ فعل ماضی ده او معنیٰ دۀ لَیْتَ تَمَنَّیْتُ ده فعل ماضی ده او معنیٰ دۀ لعلّ تَرَجَّیْتُ ده او فعل ماضی ده۔ واَن مشش است اِنَّ واَنَّ وکَاَنَّ ولٰکِنَّ ولیت ولعلّ او داشپږ دی الخ۔

این حروف را اسمی باید منصوب وخبرے مرفوع، دے حروفو لره اسم په کار دے منصوب او خبر مرفوع یعنی دا حروف عمل دۀ نصب کوی په اسم کښے او عمل دۀ رفع کوی په خبر کښے او دوئی لره دا قسم عمل ځکه ورکړے شو چه دا مشابه دی دۀ فعل سره لفظاً معنیً او دۀ فعل دوۀ عمله وُو یو عمل اصلی چه تقدیم دۀ معمول مرفوعه دے په معمول منصوبه باندے او دویم عمل فرعی چه تقدیم دۀ معمول منصوبه دے په معمول مرفوعه باندے

نو مونږ دے لره عمل فرعی دَ فعل ورکړو ځکه چه که عمل اصلی وله ورکوؤ نو لازمیږی مساوات دَ فرع دَ اصل سره او دا صحیح نهٔ دے، فان قیل، چه دَ دے حروفو مشابهت خو دَ فعل لازمی او متعدی دواړو سره دُو نو تا دے لره خاص عمل دَ فعل متعدی ولے ورکړو دَ فعل لازمی یه دے هم ورکړے وائے چه عمل دَ رفع دے فقط قلنا چه مونږ دے لره خاص عمل دَ فعل متعدی ځکه ورکړے دے چه دَ دے دَ فعل متعدی سره پوخاص قسم مشابهت دے چه هغه مشابهت ئے دَ فعل لازمی سره نشته او هغه مشابهت دا دے چه فعل متعد او دا حروف دواړه تقاضا کوی دَ دوو څیزونو فعل متعدی تقاضا کوی دَ فاعل او دَ مفعول به

او دا حروف تقاضا کوی دَ اسم او خبر،

چون انّ زیداً قائمٌ زیداً اسم انّ گویند وقائمٌ را خبر انّ گویند، زیدٌ ته اسم دَ انّ وائی او قائمٌ ته خبر دَ انّ وائی یعنی عمل دَ نصب کړے دے او قائمٌ خبر دَ انّ دے او انّ په کښے عمل دَ رفع کړے دے (ترکیب) انّ حرف دے دَ حروف مشبه بالفعل نه زیداً اسم دَ انّ او قائمٌ خبر دُه انّ انّ سره دَ اسم نه او سره د خبر خپل نه جمله اسمیه خبریه، بدانکه انّ وانّ حروف تحقیق است، پوهه شه چه انّ او انّ حروف تحقیق دی یعنی دواړه راځی دَ پاره ده تحقیق دَ مضمون دَ جملے خو فرق دا دے چه انّ تحقیق دَ مضمون دَ جملے کوی په حیثیت دَ جملے سره او انّ تحقیق دَ مضمون دَ جملے کوی خو په حیثیت دَ جملے سره ئے نهٔ کوی بلکه دَ جملے نه مفرد جوړه وی وکانّ حرف تشبیه او کانّ حرف تشبیه دے یعنی دا تشبیه دَ یو شئ دا ولے دَ بل شئ سره لکه کانّ زیداً اسدٌ نو دلته ئی تشبیه دَه زید دا ورکړے ده دَ اسد سره په شجاعت کښے ولکنّ حرف استدراک او لکن حرف استدراک دے یعنی دا راځی دَ پاره دَ رفع دَ هغه وهم چه پیدا شوے وی دَ کلام سابق نه لکه ذَهَبَ زَیْدٌ لکنّ عمراً لم یذهب، خو ده ذهب زیدٌ نه دا وهم پیدا کیږی چه عمرو به هم تلے وی ځکه چه دواړه خاص دوستان دی نو لکنّ سره دغه وهم دفع شو او

ولیت حرف تمنی، او لیت حرف تمنی دے یعنی په دے سره آرزو کولے شی دَ حصول دَ شی ولعلّ حرف ترجی، او لعل حرف ترجی دے یعنی په دے سره اظهار دَ امید کولے شی دَ حصول دَ شئ،

په مبتداء او خبر باندې نو مبتدا ته بیا اسم دَ لا وائي او خبر ته خبر دَ لا وائي ،

اسم این لا اکثر مضاف باشد منصوب و خبرش مرفوع ، اسم دَ دے لا اکثر مضاف او منصوب وي او خبر ئې دے مرفوع وي یعني یو حالت دَ دے لا دا دے چه اسم ئې مضاف وي یا شبه مضاف وي او یلې وي یعني بے فصله واقع وي لا ته او نکره وي نو په دے صورت کښې لا دَ نصب عمل کوي او په خبر کښې عمل دَ رفع کوي ، په اسم کښې عمل دَ نصب کوي یعني اسم به ئې (په دے اسم کښې) معرب وي په اعراب دَ نصب سره ، معرب به ځکه وي چه اضافت او شبه اضافت دَ خواصو معظمو او مکبرو دَ اسم نه دي او خاصه دَ شئ چه پیوسته شي په شئ پورې نو شئ راجع کوي اصل خپل ته او اصل په اسماء کښې اعراب دے او معرب به په اعراب دَ نصب سره ځکه وي چه دا لا مشابه دے دَ اَنَّ سره په فتحه دَ حرف اول کښې ځکه حرف اول په اَنَّ کښې همزه ده او هغه مفتوحه ده او حرف اول په لا کښې لام دے او دا هم مفتوح دے او اَنَّ حرف دے دَ حروفو مشبهه بالفعل نه عمل دَ نصب کوي په اسم کښې نو دے لا هم عمل دَ نصب اوکړو

خو دَ دے اسم دَ نصب دَ پاره درے شرطونه دي چه معلومیږي دَ بیان دَ دے صورت نه ، یو شرط دا دے چه اسم دَ لا به یلې وي لا ته دویم دا چه نکره به وي دریم دا چه مضاف یا شبه مضاف به وي یعني مفرد به نه وي ، هر چه دَ وَلِي یعني عدم فصل ځکه چه لا ضعیف العمل دے عمل نشي کولے سره دَ فصل نه او هر چه دے نکارت ځکه چه لا په معرفه کښې عمل نشي کولے او په نکره کښې ئې کوي ځکه چه لا لنفي الجنس تقاضاء کوي دَ کثرت او تنکیر هم تقاضاء کوي دَ کثرت نو په مابین دَ دواړو کښې مناسبت دے او تعریف تقاضاء کوي دَ قلت نو په مابین دَ لا او معرفه کښې منافات دے ، او هر چه دے اضافت شبه اضافت ځکه چه اضافت دَ خواصو معظمو دَ اسم نه دے قوي کیږي په دے سره جهت دَ اسمیت او ضعیف کیږي په دے سره جهت دَ مشابهت دَ حرف سره چه تضمن دے معنیٰ دَ حرف لره ځکه چه اسم دَ لا متضمن دے معنیٰ دَ حرف لره کما یأتي

چونکه لا غلامَ رَجُلٍ ظَرِیفٌ فِی السَّدَارِ ، نکه لا غلام (مرد) نشته دے غلام دَ جنس رجل عقلمند په کور کښې یعني نفيه غلام خوبه (ئې) هو عقلمند نشته (ترکیب) لا لنفي الجنس غلام مضاف

رجل مضاف الیه مضاف سره دَه خپل مضاف الیه نه اسم ده پاره دَه لا - ظرف خبر اول دَه پاره ده لا فی جار الدار مجرور جار سره دَه خپل مجرور نه متعلق دَه ثابتٌ مقدره سره متعلق سره دَه متعلق خپل نه خبر ثانی دَه پاره دَه لا ، لا سره دَه اسم او دَه خبرین خپلو نه جمله اسمیه خبریه ،

واگر نکره مفرده باشد مبنی باشد بر فتحه ، او که چیرے اسم دَه لا نکره مفرده وی نو مبنی به وی پهٔ فتحه سره یعنی دوئم صورت دا دے چه اسم دَه لا یلی نکره مفرد وی یعنی مضاف شبه مضاف نه وی نو په دے صورت کښے به مبنی وی پهٔ فتحه سره هر چه ده وجه دَه نفس بناء هغه دا ده چه دا اسم متضمن دے معنیٰ دَه حرف لره ځکه چه واقع دے په جواب دَه سوال دَه سائل کښے گویا که سائل سوال او کړو چه هل من رجل فی الدار تا و رته وویل په جواب کښے چه لا رجل فی الدار نو دا پهٔ تقدیر دَه دے کښے دے چه لا من رجل فی الدار ځکه چه جواب موافق وی دَه سوال سره او په سوال کښے مِن وُو نو په جواب کښے به هم مِن وی او مبنی به پهٔ فتحه سره ځکه وی چه موافقت راشی دَه حالت بنائی دَه حالت اعرابی سره ،

(فائده ، مصنف رحمه الله خو صرف ذکر دَه فتحه کړے دے لیکن تخصیص پهٔ فتحه پورے نشته بلکه مبنی به وی په علامتو دَه نصب سره بیا حرکت وی لکه فتحه شوه او که حروف وی لکه الف شوُو مثال دَه اسم دَه لا چه یلی نکره مفرد وی چون لا رجل فی الدار لکه لا رجل فی الدار شوُو معنیٰ نشته دے جنس سړے په کور کښے (ترکیب) لا لنفی الجنس رجل اسم دَه لا فی جار الدار مجرور جار سره دَه مجرور خپل نه متعلق دَه ثابتٌ مقدره سره - متعلق سره ده متعلق خپل نه خبر د پاره دَه لا . لا سره دَه اسم او خبر خپل نه جمله اسمیه خبریه

واگر بعد او معرفه باشد تکرار لا با معرفه دیگر لازم باشد و لا ملغی باشد یعنی عمل نکند و آن معرفه مرفوع باشد بابتداء ، او که چیرې پس دَه دے لا نه معرفه وی نو تکرار دَه لا به سره دَه معرفے بلے نه لازم وی او لا به ملغیٰ وی دَه عمل نه یعنی عمل به نهٔ کوی او هغه معرفه به مرفوع وی پهٔ ابتداء سره یعنی په عامل معنوی سره - یعنی دریم صورت دا دے چه اسم ده لا معرفه وی نو پهٔ دے صورت کښے دا اسم به مرفوع وی بناء بر ابتداء خو تکرار دَه لا به سره دَه معرفے بلے نه لازم وی، اسم دَه لا به مرفوع ځکه وی چه لا په دے

صورت کښې ملغیٰ دے دَه عمل نه ځکه چه لا په معرفه کښې عمل نه کوی نو هر کله چه لا عمل اونه کړو
نو مرفوع شو بنا بر ابتداء ، او هر چه دے تکرار دَه لا دَه معرفے پسے سره دَه پاره دَه
دے خبرے چه جبیره شی مافات له دَه کثرت نه یعنی هغه کثرت چه فوت شویدے
په سبب دَه معرفه کیدلو سره چون لا زیدٌ عندی ولا عمرٌو ، (ترکیب) لا ملغاة العمل
زیدٌ معطوف علیه واو حرف عاطف لا ملغات العمل عمرٌو معطوف معطوف سره دَه
معطوف علیه ځپل نه مبتداء عند مضاف (ی) ضمیر متکلم مضاف الیه مضاف سره
دَه مضاف الیه ځپل نه ظرف مستقر متعلق دَه ثابتٌ مقدره سره متعلق سره دَه متعلق
ځپل نه خبر ، مبتداء سره دَه خبر ځپل جمله اسمیه خبریه،

واگر بعد آن لا نکره مفرد باشد مکرر یا نکره ، او کچری پس دَه دے لا نه نکره مفرد وی
چه مکرر وی سره دَه نکرے بلے نه نو په دیکښے پنځه وجے جائزی ، اول بناء دَه دواړو په
فتح سره بناء په دے چه لا په دواړو کښے دَه پاره دَه نفی دَه جنس دے او اسم یلی نکره مفرد
دے او اسم دَه لا چه یلی نکره مفرد وی نو مبنی کیږی په فتح سره چون لا حولَ ولا قوةَ اِلّا
باالله ، ترکیب دَه دے په دوه طریقو سره دے یو داچه دَه هر یو اسم دَه پاره ځانله ځانله
خبر محذوف دے نو دوه جملے دی ، او دوّم داچه خبر د دے یو محذوف دے نو بناء په اول
تقدیر دَه عبارة به دارنګه دے لا حَوْلَ موجودٌ ولا قوّةَ موجودٌ الا باالله ، نو لا لنفی الجنس حَوْلَ
اسم دَه لا او موجودٌ ئے خبر ، لا سره دَه اسم او خبر ځپل نه جمله اسمیه خبریه ، ولا قوةَ موجودٌ
ځانله جمله خبریه ده ، او بناء په تقدیر ثانی عبارت به دارنګه وی لا حولَ ولا قوّةَ مَوْجُوْدَانِ
الّا باالله نو لا لنفی الجنس حولَ معطوف علیه واو حرف عاطف لا لنفی الجنس قوّةَ اسم
دَه لآ ، معطوف ، معطوف سره دَه معطوف علیه ځپل نه اسم دَه لآ اول شو او موجودان د دے
خبر شو ، لآ سره د ه اسم او سره دَه خبر ځپل نه جمله اسمیه خبریه

دوئیم دَه هغه وجوه خمسوه نه اعراب دَه دے دواړو دے په رفع سره یعنی دواړه اسمونه
به معرب وی په رفع سره دَه پاره دَه موافقت دَه سوال سره گویا که سائل سوال کړے وُو
اَحَوْلٌ وقُوَّةٌ موجودانِ بغیر الله نو تا اورته په جواب کښے اُوویل لا حولٌ ولا قوّةٌ الّا باالله -
دریم دَه هغه وجوه خمسو نه بناء دَه اول ده په فتح سره او کوندَه ثانی دے معرب په اعراب دَه رفع

سره، هرچه ده بناء ده اول په فتحې سره نو بناء په دے چه لا په موضع اول کښے ده پاره ده نفی ده جنس ده اواسم ئے یعنی نکره مفرده دے او اسم ده لا چه یعنی نکره مفرد وی نو مبنی کیږی په فتحې سره او هرچه دے کون ده ثانی معرب په اعراب ده رفع سره نو بناء دے په دے چه لا په موضع ثانی کښے زائد دے ده پاره ده تاکید ده نفی ده لا اول او اسم ده دے عطف دے په محل بعیده ده اسم ده لا اول چه رفع ده بناء بر ابتداء، تامل۔

چون لَاحولَ ولا قُوَّةٌ الا باللّٰہ، او څلورم ده هغه وجو خسونه رفع ده اول او فتح ده ثانی ده یعنی ده اول دے معرب په اعراب ده رفع سره او کون ده ثانی دے مبنی په فتحې سره هرچه ده رفع ده اول نو بناء په دے چه لا په موضع اول کښے لا مشبه بلیس دے او ما بعد ئے اسم دے او اسم ده لا مشبه بلیس مرفوع وی، او هرچه ده بناء ده ثانی په فتحې سره نو بناء په دے چه لا په موضع ثانی کښے ده پاره ده نفی ده جنس دے او اسم ئے یعنی نکره مفرد دے او اسم ده لا چه یعنی نکره مفرد وی نو مبنی کیږی په فتحې سره

چون لاحولٌ ولا قوّةَ الا باللّٰہ په رفع ده حول او په فتح ده قوّة سره،

او پنځم ده هغه وجوه خمسو نه بناء ده اول ده په فتحې سره او نصب ده ثانی دے یعنی کون ده ثانی دے معرب په اعراب ده نصب سره، هرچه ده بناء ده اول په فتحې سره نو بناء په ده دے چه لا په موضع اول کښے ده پاره ده نفی ده جنس دے او اسم ئے یعنی نکره مفرد دے او اسم ده لا چه یعنی نکره مفرد وی نو مبنی کیږی په فتحې سره، او هرچه ده کون ده ثانی معرب په اعراب ده نصب سره نو بناء په دے چه لا په موضع ثانی کښے زائد دے ده پاره ده تاکید ده نفی ده لا اول او اسم ئے معطوف دے په محل قریبه ده اسم ده لا اول چه نصب دے بناء بر اسمیت ده پاره ده لا چون لاحولَ ولا قوةً الا باللّٰہ، په فتحه ده لاحول سره او په نصب ده لا قوةً سره۔

اول دے مبنی په فتح سره او کون ده ...

پنځم حروف نداء۔ پنځم قسم ده حروفو عاملو ده اسم نه حروف نداء دی حرف مضاف دے نداء ته ده دے معنی ترکیبی ده حروف ده نداء او په اصطلاح کښے حروف نداء هغه حروف دی چه راځی ده پاره ده متوجه کولو ده منادی، پس نداء صیغه ده مصدر ده ده نادی ینادی نه ده دے معنی لغوی ده اواز او په اصطلاح کښے نداء متوجه

کول ده یو احد دی پهٔ حرف نداء سره اوده نداء نه اسم مفعول مُنَادیٰ راځي،
دهٔ منادیٰ معنیٰ لغوی ده اواز کړے شوے او پهٔ اصطلاح کښے منادیٰ هغه اسم دے
چه طلب شوے وی دهٔ توجه دهٔ هغهٔ پهٔ حرف نداء لفظی یا تقدیری سره،
قَال پنج است یا وأیا وَهَیا وأیْ وہمزهٔ مفتوحه، او هغه حروف نداء پنځه دی یا آیا الخ
واین حروف منادیٰ مضاف را بنصب کنند چون یاعبدَ اللّٰهِ او دا حروف منادیٰ
مضاف لره نصب ورکوی لکه یا عبدَ اللّٰهِ شو، (ترکیب) یا حرف نداء قائم مقام اَدْعُو الخ
پهٔ کښے مستتر دے چه معبر دے پهٔ اَنَا سره فاعل کیږی دهٔ فعل، عَبْدَ مضاف الله مضاف
الیه مضاف سره ده مضاف الیه خپل نه مفعول به دهٔ پاره دهٔ اَدْعُوْا فعل سره ده فاعل او
سره دهٔ مفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه، ومشابه
مضاف را، او نصب ورکوی منادیٰ لره چه شبه مضاف وی او شبه مضاف هغه اسم
دے چه بغیر دهٔ میلاوید وده بل شئ نه نه تامیږی لکه مضاف چه بغیر دهٔ مضاف الیه
نه نهٔ تمامیږی، چون یا طالعًا جبلاً، نو دا طالعًا منادی مشابه مضاف ده حکه چه دا بغیر
دهٔ جبلًا نه نهٔ تمامیږی، حاصل دا دے چه منادیٰ مضاف او شبه مضاف به معرب وی پهٔ
اعراب دهٔ نصب سره هر چه دے نفس اعراب حکم چه اضافت معنیه اضافت دهٔ خواص
معظمو مکبرو دهٔ اسم نه دی او خاصه دهٔ شئ چه متصل شی دهٔ شئ سره نو شی راجع کوی
اصل خپل ته او اصل پهٔ اسماؤ کښے اعراب دے او هر چه دے نصب حکم چه منادیٰ پهٔ اصل کښے
مفعول به ده او اعراب دهٔ مفعول به نصب دے ونکرهٔ غیر معین را (او نصب ورکوی)
دا حروف نکرے غیر معین لره یعنی منادیٰ چه کله نکرهٔ غیر معین وی نو معرب به وی پهٔ
اعراب دهٔ نصب سره، هر چه دے نفس اعراب [illegible] دهٔ وجے دهٔ عدم وجود دهٔ علة
دهٔ بناء نه پهٔ دیکښے چه وقوع ده پهٔ موقع دهٔ کاف خطابی کښے حکم چه هغه معرفه دهٔ
او نکرهٔ په موقع دهٔ معرفے کښے نشی واقع کیدے او هر چه دے نصب دهٔ وجے دهٔ
ماسَرّ، نه مثال دهٔ نکرهٔ غیر معین چنانکه اعمیٰ گوید یا رجلاً خذ بیدی، لکه چه روند
اووائی یا رجلاً خذ بیدی، دا رجلاً نکرهٔ غیر معین ده حکم چه دلته پهٔ حرف نداء سره
قصد دهٔ تعین نهٔ دے شوے بلکه مقصود دهٔ اعمیٰ پهٔ نداء سره رجل غیر معین دے،

پس ازیں ذکر دا خبره ، چه په دیکښې اتفاق دے چه دا درے قسمه منادی به معرب وی په اعراب دَ نصب سره او اعراب نصبی به یئے په لفظ کښے وی لیکن په دیکښې اختلاف دے چه آیا عامل دَ نصب پکښے څه دے نو په دیکښې دوه مذهبونه دی یو مذهب دَ مبرد دے او دویم مذهب دَ سیبویه او دَ جمهورو علماؤ دے ،

مذهب دَ مبرد دا دے چه عوامل دا حروف نداء دی او دَ مصنف رح دَ عبارت نه معلومیږی چه مختاره په نزد دَ مصنف رح مذهب دَ مبرد دے ، او سیبویه او جمهور نحات وائی چه عامل ناصبه فعل مقدره دے پس په دیکښې اتفاق دے ده سیبویه او دَ جمهورو او دَ مبرد چه حرف نداء قائمقام دَ ادعوا دے خو فرق دا دے چه مبرد عامل هغه فعل نه وائی بلکه دا حروف عوامل وائی او سیبویه او جمهور عمل هغه فعل مقدر دا وائی ،

فان قیل ، چه هرکله په مذهب دَ سیبویه او دَ جمهورو با ندے عمل فعل مقدره کوی نو بیا دے حروف ته حروف عمد ولے وائی ، قلنا ـ چه دوی ته حروف عامله ځکه وائی چه دا واسطه ده په مابین دَ عامل کښے چه فعل دے او دَ معمول کښے چه منادی ده یعنی عمل هغه فعل مقدره کوی خو په واسطے دَ دے حروفو سره یئے کوی نو عامل دا دے چه دوی ته عوامل مجازاً وائی ،

---

ومنادی مفرد معرفه مبنی باشد برعلامت رفع ، او منادی مفرده معرفه به مبنی وی په علاماتو دَ رفع سره ، هرچه ده نفس بناء ځکه چه دا واقع ده په ځائی دَ کاف اسمی کښے او کاف اسمی مشابه دے دَ کاف حرفی خطابی سره لفظاً معناً جمیعاً چه کاف دَ ذالک دے او هغه مبنی وو نو دا هم مبنی شوه او هرچه ده بناء په علاماتو دَ رفع سره نو ده پاره دَ موافقت دَ اصل حالت اعرابی سره چه حالت رفعی دے او اصل حالت اعرابی دَ رفع دے ځکه چه رفع عمده ده په اعراب کښے او ده دے وجه نه چه رفع عمده وه نو دا اوگرځولے شوه علامه دَ عمده چه فاعل دے ، او دا سوا فقت به دَ علت بنائی دَ حالت اعرابی سره ولے کوو ځکه چه دا بناء او اعراب مشابه دی په عروض کښے ځکه چه دا بناء هم عارضی راغلے دے او اعراب هم عارضی راځی ځکه چه اصل په اسماؤ کښے بناء ده مخکے دَ ترکیب نه او اعراب پکښے عارضی راځی پس دَ وقوع فی الترکیب ،

چون یازیدُ ، نکه یازیدُ شو داده مفرد معرفے مثال دے چه مبنی وی په ضمے لفظی سره ویازیدانِ ، او نکه یازیدانِ شو داهم مثال ده منادی مفرد معرفے دے چه مبنی وی په علامے ده رفع سره چه الف دے ، ویازیدُون ویامسلمونَ ، داهم منادیٰ مفرد معرفه ده او مبنی ده په علامے ده رفع سره چه واو دے ویاموسیٰ ویاقاضِیُ ، دا دواړه ده منادیٰ مفرد معرفے مثالونه دی چه مبنی وی په ضمے تقدیری سره خو موسیٰ اسم مقصور دے او معرفه ده مخکے ده دخول ده یاحرف نداء نه او قاضِیُ اسم منقوص دے او مخکے ده دخول ده حرف نداء نه نکره وه معرفه شویده پس ده دخول ده حرف ندائه

بد الکه ای و همزه برائے نزدیک است ، پوه شه چه اَیُ او همزه ده پاره ده قریب دی یعنی په دوئی سره اوازکولے شی منادیٰ قریب ته ، واَیَا وهَیَا برائے دور ، اَیَا وهَیَا ده پاره ده بعید دے ویاءعام است ، او یاءعامه ده یعنی ده پاره ده منادیٰ قریب او بعید دواړه راځی ،

پس اذره کړی داخبره چه اصلی تقسیم په دے طریقے سره دے چه همزه ده پاره ده قریب ده او اَیُ ده پاره ده وسط دے او اَیَا وهَیَا ده پاره ده بعید دی ، او یاء عامه ده پاره ده قریب متوسط بعید ټولو راځی ، همزه ده پاره ده قریب ځکه ده چه په دیکښے قلت ده حروفو دے ځکه چه یو حرف دے او قلت ده حروفو دلالت کوی په قلت ده مسافت باندے او اَیُ ده پاره ده وسط ځکه دے چه په دیکښے توسط ده حروفو دے او توسط ده حروفو دلالت کوی په توسط ده مسافت باندے او اَیَا وهَیَا ده پاره ده بعید ځکه دی چه په دوئی کښے کثرت ده حروفو دے او کثرت ده حروفو دلالت کوی په کثرت ده مسافت باندے ، او یَا ځکه عامه ده چه دا اصل ده په حروفو ده نداء کښے نو مناسبت ده دے سره تعمیم دے ،

الهمّ اغفر لکاتبه ولمؤلفه وللمسلمین والمسلمات ،

هرکله چه فارغه شو مصنف رح نه بیان دهٔ قسم اول دهٔ حروفو عاملو نه چه حروف
عامله دي په اسم کښې نو شروع ئے اوکړه په دویم قسم دهٔ حروفو عاملو کښې چه حروف
عامله دي په فعل مضارع کښې نو اوورهٔ یئے ویل،

فصل دوم در حروف عامله در فعل مضارع ، دویم فصل په بیان د حروفو عامله
دهٔ فعل مضارع کښې دے ، وآن بر دو قسم است او دا حروف عامله دهٔ فعل مضارع
په دوه قسمه دي - اول حروفیکه فعل مضارع را بنصب کنند اول هغه حروف دي چه فعل
مضارع لره نصب ورکوي وآن چهار است ، او هغه حروف څلور دي اول آن چون
ارید ان تقوم ، که ارید ان تقوم شو معنی غواړم زه چه اودریږې ته وآن با فعل بمعنی
مصدر باشد یعنی ارید قیامک ، او آن په سره دهٔ فعل نه په معنی دهٔ مصدر سره وي
یعنی ارید قیامک حاصل دا دے چه دا آن دهٔ مدخول خپل نه تاویل په مصدر سره
کوي نو تقدیر دهٔ ارید ان تقوم دا دے چه ارید قیامک (د ترکیب) ارید فعل ضمیر
پکښې مستتر دے فاعل کیږي دهٔ فعل ان تقوم ئے مفعول به فعل سره دهٔ فاعل او سره
دهٔ مفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه ، وبدین سبب اورا مصدریه گویند ، او
دهٔ دے وجے نه چه دا دهٔ مدخول خپل نه تاویل په مصدر سره کوي نو دیته مصدریه
وائی ځکه چه آن مصدریه معنی آن چه منسوب دے مصدر ته او دا هم منسوب دے
مصدر ته ځکه چه دهٔ مدخول خپل نه تاویل په مصدر سره کوي فائده
دا حروف عمل ځکه کوي چه آن مشابه دے دهٔ آنّ سره په فتحه دهٔ همزه کښې او لن
او کی او اذن حمل دي په آن باندے ۔

پس از دو کرده در اخبار چه دهٔ آن یو عمل لفظی دے او بل عمل معنوی دے عمل
لفظی دا دے چه فعل مضارع لره نصب ورکوي او عمل معنوی ئے دا دے چه دهٔ مدخول
خپل نه تاویل په مصدر سره کښې دوم لن چون لن یخرج زید ۔ پس دا لن هم
یو عمل لفظي دے او بل معنوي لفظی عمل ئے دا دے چه فعل مضارع لره نصب ورکوي
او معنوي عمل ئے دا دے چه فعل مضارع خاص کوي په مستقبل منفی پورے یعنی
په کله به فعل مضارع داخل شي نو دهٔ حالیت معنی دهٔ مضارع نه ختم کړي صرف مستقبل

باقي شي او دغه مضارع دَه مثبت نه نقل کړې منفي مؤکد ته ولن برائي تاکيد نفي است
اولن دالې دَه پاره دَه تاکيد دَه نفي ،

پس اذن که مکره داخل شي چه په دې کښې اختلاف دے په مابين دَه اهل السنت والجماعت او دَه معتزله کښې ، اهل سنت والجماعة وائي چه لَن دَه پاره دَه نفي مؤکد دے او تابيد پکښې نشته او دليل په دے باندے دا قول دَه الله تعالىٰ دے چه لَن ابرح الارض حتّى يأذن لي ابي ، ځکه چه حتّى دَه انتهاء دے نو که لن دَه پاره دَه نفي مؤبد شي نو لازم به شي تناقض په کلام دَه الله تعالىٰ کښې بالاراده کما هو ظاهر

او معتزله وائي چه لن دَه پاره دَه نفي مؤبد دے ، (و التفصيل في موضعه) زياة من الكاتب ، آربان

سوم کي چون اسلمت کي ادخل الجنة ، دريم دَه حروف عامله دَه فعل مضارع نه کي دے لکه اسلمت کي ادخل الجنة ، معنىٰ اسلام مي راوړے دے دَه پاره چه داخل شم جنت ته دَه لاره
(ترکيب) اسلمت فعل فاعل فعل سره دَه فاعل ځپل نه جمله فعليه خبريه ادخل فعل مضارع ضمير پکښې مستتر دے چه معبّر دے په آنا سره فاعل دَه پاره دَه فعل الجنة مفعول فيه فعل سره دَه فاعل او سره دَه مفعول فيه ځپل نه جمله فعليه معلله دَه پاره دَه جملے اولے او هغه وله علت يعني سبب دے ، پس دَه کي هم دوه قسمه عمل دے يو عمل لفظي دے يو عمل معنوي دے عمل لفظي دا دے چه آخر دَه فعل مضارع لره نصب ورکوي او معنوي عمل ئے دا دے چه ما قبل ځپل سبب کرځوي دَه پاره دَه مابعد ځپل ،

چهارم اذن چون اذن اکرمک درجواب کسیکه گويد انا اتيک غدا ، څلورم دَه حروف عاملو دَه فعل مضارع نه) اذن دے لکه اذن اکرمک شو لو په جواب دَه هغه چا کښې چه وائي انا اتيک غدا نو ته ورته په جواب کښې او وائي چه اذن اکرمک يعني کوم چه زمانه داغلے نو په دغه وخت کښې به په عزت او کرم ستا دَه اذن عمل دا دے چه فعل مضارع لره نصب ورکوي خو دا به داخليږي هله په فعل مستقبل ځکه چه دا داخلي دَه پاره دَه جزاء او جزاء نه داخلي مګر په مستقبل کښې فائده أن چه نصب ورکوي فعل مضارع لره په دوه قسمه دے يو لفظي او بل تقديري ، دَه لفظي مثال مخکښ مصنف رح ذکر کړے شو او تقديري راځي پس دَه شپږو حروفونه نو دَه بيان نه روسته مصنف رح تفصيل ذکر کوي دغه دے ،

بید انکه اَنْ بعد از شش حروف مقدر باشد و فعل مضارع را بنصب کنند، یوه شپږ
چه اَنْ پس دَ شپږو حروفو نه مقدر وی او فعل مضارع لره به نصب ورکوی حتیٰ یو مقدر
راځی روستو دَ حتیٰ جاره نه نحو مررت حتیٰ ادخل البلدَ، معنیٰ لاړم زهٔ تیریدم چه داخل شوم
کلی ته (ترکیب) مررت فعل فاعل حتیٰ جاره ادخل فعل البلدَ مفعول فیه فعل سره دَ فاعل او
سره دَ مفعول فیه خپل نه مجرور دَ پاره دَ جار جار سره دَ مجرور خپل نه متعلق دَ
مررتُ فعل سره دَ متعلق او سره دَ فاعل خپل نه جمله فعلیه خبریه ولام جحد
(۲) دویم مقدر راځی روستو دَ لام جحد نه جحد په لغت کښے انکار ته وائی نو لام جحد
معنیٰ لغوی داده چه لام دَ انکار او په اصطلاح کښے لام جحد هغه لام دے چه راځی دَ
پاره دَ تاکید دَ نفی پس دَ نفی دَ کان نه یعنی مخکښے نفی شوے وی دَ کان نو بیا روسته
داده هغه نفی تاکید کوی نحو ما کان الله لیعذبهم، معنیٰ نه دے الله قصد کونکے دَ
دے چه عذاب ورکړے دوئ لره نو لام په لیعذبهم کښے لام دَ جحد دے او روسته دَ
دے نه اَنْ مقدر دے او هغه اَنْ مقدر په یعذبهم کښے عمل دَ نصب کړے دے،
او ترکیب دَ دے بدر منیر والا دا رنګے کړے دے، ما نافیه کان فعل ناقص لفظ
دَ الله اسم د دَ کان لام حرف جار یعذب فعل مضارع منصوب په اَنْ مقدر سره
ضمیر پکښے مستتر دے چه راجع دے الله ته فاعل کیږی دَ فعل هم ئے مفعول به فعل سره هم
فاعل او سره دَ مفعول به خپل نه مجرور کیږی دَ جار جار سره دَ مجرور خپل نه متعلق
دَ قاصداً مقدر سره متعلق سره دَ متعلق خپل نه خبر دَ پاره دَ کان کان سره دَ اسم
او سره دَ خبر خپل نه جمله فعلیه خبریه (مصدره بما نافیه) بدر منیر بتغیر ما،

واوُ او دریم مقدر راځی روستو دَ اَوْ نه بمعنیٰ اِلیٰ اَنْ یا اِلّا اَنْ چه هغه او په معنیٰ دَ الیٰ آن
سره دے یا په معنیٰ دَ اِلّا اَنْ سره دے اول مذهب دَ جمهورو نحاتو دے او دویم
مذهب دَ سیبویه دے یعنی دَ کوم او نه چه روسته اَنْ مقدر راځی نو جمهور وائی
چه داَوْ په معنیٰ دَ الیٰ اَنْ سره دے او سیبویه وائی چه دا په معنیٰ دَ الّا ان سره دے
نحو لألزمنک او تعطینی حقی. (ترجمه) په مذهب دَ جمهورو دا رنګ ده خامخا
لازم به یم ستا سره ترد دے پورے چه راکړے ته ما ته حق زما، او په مذهب دَ

سیبویه دارنګه ده چه لازم به یم زهٔ ستا سره مګر چه راکړے ته ما ته حق زما (ترکیب) په مذهب دهٔ جمهورو دارنګه دے لالزمنّ فعل ضمیر پکښے مستتر دے چه معبر دے په انا سره فاعل کیږی دهٔ فعل (ک ث) ضمیر مفعول به دهٔ الزمنّ او په معنیٰ دهٔ الیٰ ان ۰ الیٰ حرف جار ان حرف ناصب تُعْطِیْ فعل ضمیر پکښے مستتر دے چه معبر دے په انت سره فاعل کیږی دهٔ فعل نون وقایه یاء ضمیر دهٔ متکلم مفعول به اول دهٔ پاره دهٔ تُعْطِیَ حَقِّ مضاف (ی) ضمیر دهٔ متکلم مضاف الیه مضاف سره دهٔ مضاف الیه خپل نه مفعول به ثانی دهٔ پاره دهٔ تعطی فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ دواړو مفعولین خپلو نه جمله فعلیه په تاویل دهٔ مصدر سره مجرور دهٔ پاره دهٔ جار جار سره دهٔ مجرور نه متعلق دهٔ لالزمنک ، سره فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ مفعول به او سره دهٔ متعلق خپل نه جمله فعلیه خبریه ،

او په مذهب دهٔ سیبویه باندے تقدیر دهٔ عبارت دارنګه دے لالزمنک فی کل وقتٍ الّا فی وقتٍ ان تعطینی حقی نو بیا ترکیب دارنګه دے فی کل وقتٍ مستثنیٰ منه الّا حرف استثناء فی جار وقت مضاف ان تعطینی حقی په تاویل دهٔ مفرد سره مضاف الیه دهٔ پاره دهٔ مضاف ، مضاف سره دهٔ مضاف الیه خپل نه مجرور دهٔ پاره دهٔ جار جار سره دهٔ مجرور خپل نه مستثنیٰ ، مستثنیٰ منه سره دهٔ مستثنیٰ خپلے نه متعلق دهٔ لا لزمنک فعل سره فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ مفعول به او سره دهٔ متعلق خپل نه جمله فعلیه خبریه ، وواو الصرف ، او څلورم مقدر راځی دوستو دهٔ واو صرف نه واو صرف هغه واو دے چه دهٔ دینه دوستو کوم معطوف وی نو په هغه کښے صلاحیت دهٔ ایراد دهٔ هغه شئ نه وی چه کوم په سر دهٔ معطوف علیه باندے راغلے وی یعنی دهٔ هغه شئ دخول په دے معطوف باندے نشی کیدے لکه په دے قول دهٔ شاعر کښے ، شعر

لَاتَنْهَ عَنْ خُلُقٍ وَتَأْتِ مِثْلَهُ × عَارٌ عَلَیْکَ اِذَا فَعَلْتَ عَظِیْمٌ ،

ولٰته تات معطوف دے او تنهٰ عن خلق معطوف علیه دے او په سر دهٔ معطوف علیه باندے لائی نفی راغلے دے نو هغه لا په سر دهٔ تاتِ نشی راتلے چه معطوف دے ولے لا راتشی نو لازم به شی فساد دهٔ معنیٰ مقصود ځکه مقصودی معنیٰ داده چه مه منع کوه (خلقو له) دهٔ بد واخلاقو نه او حال دا دے چه ته ترا تله کوے مثل دهٔ دغه بد واخلاقو ته دادهٔ شرم

خیره ده تا لره لویه، کله چه ته داکار کوے یعنې چه ته نورو ته بد واخلاقو نه منع کوے او بخپله
بد اخلاق کوے نو دا لویه دَه شرم خبره ده په تا باندے،
او چه لا ئي نهي په دے معطوف راشي نو معنی به داشي چه مه منع کوه خلقو لره دَه بدو
اخلاقو نه او دا تلحمع کوه ته مثل دَه دے بدو اخلاقو ته راتلو ئی عار دے په تا چه کله
ته داکوے نو مطلب به داشي چه نور خلق دَه بدو اخلاقو نه منع کوے او بخپله بد اخلاق
نه کوے نو دا لویه دَه شرم خبره ده تا لره لو دا معنی مقصود نه ده ځکه چه دا خلاف ده
دَه واقع نه ځکه چه دا خو شرم نه دے بلکه بنسکار دے - (تامل فیه)
ولام کئے او بل مقدر راځي روستو دَه لام کئ نه لام کئ هغه لام دے چه په معنی دَکه
سببیه سره وی یعنی ماقبل ځپل علت کرځوی دَه پاره دَه مابعد، لکه اسلمت لادخل
الجنة، نو دلته اسلام سبب دے دَه پاره دَه دخول الجنت،
پس اذرځ کوه داخبره - چه په مابین دَه لام کئ او لام جحد کښے فرق په دوؤ طریقو
سره دے یو فرق په اعتبار دَه لفظ سره دے او دوئیم په اعتبار دَه معنی سره دے په
اعتبار دَه لفظ سره فرق داوے چه لام جحد همیشه روستو دَه نفی دَه کان نه راځي په خلاف
دَه لام کئ نه او معنوی فرق دادے چه لام کئ راځي دَه پاره دَه تعلیل او کیچرے دَه
لفظ نه حذف شي نو په معنی کښے خلل واقع کیږی په خلاف دَه لام جحد نه ځکه چه
هغه صرف دَه تاکید دَه نفی دَ پاره راځي او که دَه لفظ نه حذف شي نو په معنی کښے خلل
نه واقع کیږی وفا که درجواب شش چیزے است او شپږم مقدر راځي پس دَه فاء نه
داسے فاء چه په جواب دَه شپږو څیزونو کښے وی. امر و نهی ونفی واستفهام وتمنی وعرض
چه امر دے نهی ده الخ، واشلتها مشهورة او مثالونه دَه دے مشهور دی مثال دَه امر
لکه زرنی فاکرمک او مثال دَه نهی لکه لاتشتمنی فاشتمک او مثال ده نفی لکه ماتأتینا
فتحدثنا او مثال دَه استفهام لکه هل عندکم زیدٌ فازورهٗ او مثال دَه تمنی لکه لیتَ
لِی مالاً فانفقهٗ او دَه عرض مثال لکه الا تنزل بنا فتصیب خیراً،
فائده: دَه تقدیر دَه اَنْ دَه پاره پس دَه فاء نه دوه شرطونه دی یو شرط دادے
چه ما قبل دَه فاء نه سبب وی دَه پاره دَه مابعد او دوئیم شرط دادے چه دا فاء واقع

دی په جواب د شپږو حیزونو مذکورو کښې خو مصنف رح دا یو شرط ذکر کړے دے
او شرط اول ئے نۀ دے ذکر کړے دلته ان ولے مقدر وی ځکه چه جواب د دے اخبار...
انشاء ناجائز دے نو موږ ان مقدر کړو چه اوګر څوک دا اخبار په تاویل د مصدر
سره نو چه هر کله دا جمله خبریه په تأویل د مصدر سره شوه نو د جملے انشائیه نه هم
موږ مصدر واغسته د پاره د صحت د عطف ځکه چه لازمیږی عطف د مفرد په جملے
او دا نا روا دے نو عطف د مصدر دا غے په مصدر باندے نو عطف صحیح شو لکه
زرنی فاکرمک دے نو تقدیر به دا رنګه شی لیکن منک الزیارة فاکرامٌ منیّ نو عطف
د اکرامٌ دا غے په زیارةٌ باندے او دا دواړه مفردین دی ځکه چه مصدرین دی،
هر کله چه فارغه شو مصنف رح د بیان د قسم اول د حروفو عاملو د فعل مضارع
نو چه حروف ناصبه د فعل مضارع وُو نو شروع ئے اوکړه په قسم ثانی د حروف عاملو
د فعل مضارع کښې چه حروف جازمه د فعل مضارع دی نو وئے ویل،

قسم دوم حروفیکه فعل مضارع را بجزم کنند، دوم قسم هغه (حروف دی) چه فعل مضارع لره
جزم ورکوی وآن پنج است لَمْ ولَمّا ولام امر ولای نهی واِنْ شرطیه، هغه پنځه دی ۱۲
چون لم ینصر ولما ینصر ولینصرُ ولا ینصر وان تنصُر انصُر، لکه لَم یَنصُر شو الی آخره فائده
لَمْ او لَمّا شریک دی د یو بل سره په پنځو طریقو سره اوّل په حرفیت کښې چه دا دواړه حروف
دی دوئم په دخول کښې په فعل مضارع باندے دریم په کون د دے دواړو کښې جازم
د پاره د فعل مضارع او څلورم په دیکښې چه دا دواړه فعل مضارع لره ماضی منفی ته نقل
کوی او پنځم په دیکښې چه په دواړو باندے دخول د همزه کیږی، او فرق ئے دا دے
چه لمّا راځی د پاره د استغراق یعنی استغراق د نفی راولی جمیع اجزاؤ د زمانے
ماضی لره او په لَمْ کښې استغراق نشته، او دوئم فرق ئے دا دے چه د لمّا نه
حذف د فعل کیږی غالبًا نه د لَمْ نه،

پرا زرد کرے دا خبره، لمّا چه داخل شی په فعل مضارع نو په فعل مضارع کښې عمل
د جزم کوی او چه داخل شی په فعل ماضی نو دا به ظرفیه وی او چه په وسط د کلام
کښې راشی نو په معنیٰ د الّا به وی مثال د اول لکه لمّا یَضرِبْ زَیْدٌ او مثال د ثانی لکه

داقول دَ الله تعالىٰ شو وَاَنَّهٗ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللّٰهِ يَدْعُوْهُ كَادُوْا يَكُوْنُوْنَ عَلَيْهِ لِبَدًا الخ،
او مثال دَ ثالث لکه داقول دَ الله تعالىٰ شو وَاِنْ كُلٌّ لَّمَّا جَمِيْعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُوْنَ،

قوله ولام امر لام امر به مکسوروی حُکه چه داشا یه دے دَ لام جاره سره په اختصاص افتراق کښے یعنی لکه څرنګه چه لام جاره خاص دے په اسمائو پورے نو دارنګه دا خاص دے په افعالو پورے او لام جاره مکسور وُو نو داهم مکسور شو او لام جاره مکسور حُکه دے چه لام جاره په مدخول خپل کښے عمل دَ جر کوی نو دا مؤثر شو او جرئے اثر شو نو دا متحرک شو په هغه حرکت سره چه اثر دَ دے وُو دَ پاره دَ دے چه مناسبت په مابین دَ دے دواړو وکښے راشی لکن چه کله په دے باندے دخول دَ واو فاء ثُمَّ اوشی نو بیا به ساکن کیږی لکه فَلْيَضْحَكُوْا قَلِيْلًا وَلْيَبْكُوْا كَثِيْرًا، او ثُمَّ لْيَقْضُوْا تَفَثَهُمْ،

بد انکه اِنْ در دو جمله رود چون اِنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ پوه شه چه اِنْ په دوو جملو داخلیږی لکه اِنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ اشو، نو تضرب یوه جمله ده او اضرب بله جمله ده (ترکیب) ان حرف شرط تضرب فعل ضمیر کښے مستتر دے چه معبر دے په انت فاعل کیږی دَ فعل فعل سره دَ فاعل خپل نه جمله فعلیه خبریه، اضرب فعل ضمیر کښے مستتر دے چه معبر دے په انا سره فاعل کیږی دَ فعل فعل سره دَ فاعل خپل نه جمله فعلیه خبریه،

جمله اول را شرط گویند و دوم را جزاء، اولے جملے ته شرط وائی دویمے جملے ته جزاء وائی - جملے اولے ته شرط حُکه وائی چه شرط په لغت کښے علامے ته وائی او دا جمله اوله هم علامه ده په وجود دَ جملے ثانی باندے حُکه چه جمله اوله موجود شی نو جمله ثانی جمله موجود یږی، او ثانی ته جزاء حُکه وائی چه څرنګه جزاء حقیقی یعنی بدله موقوفه ده په عمل باندے نو دارنګه داجزاء نحوی هم موقوفه ده په شرط باندے خو دا جمله اوله چه شرط دے دا به جمله فعلیه وی او اسمیه به نشی راتلے حُکه که اسمیه راشی نو دخول دَ اِنْ حرف شرط به راشی په جمله اسمیه باندے او دا صحیح نه دے حُکه چه دخول دَ ان حرف شرط په جملے اسمیے باندے په کلام دَ عربو کښے نه دے موندلے شوے او جمله ثانی چه جزاء دَ فعلیه هم راتلے شی او اسمیه هم راتلے شی،

پس دہ هغہ ان زرہ کرہ راخبرہ چہ دا شرط او جزاء بہ خالی نہ وی یا بہ دواړہ فعل مضارع وی یا بہ دواړہ فعل ماضی وی یا بہ شرط فعل مضارع وی او جزاء بہ فعل ماضی وی او یا بہ شرط فعل ماضی وی او جزاء بہ فعل مضارع وی،

کہ شرط او جزاء دواړہ مضارع وہ نو ان بہ پہ دواړو کښې عمل دہ جزم کوی وجوبًا دہ وجے دہ وجود دہ عامل او دہ صلاحیت دہ محل نہ دہ پارہ دہ عمل، معنی دہ صلاحیت دہ محل دہ پارہ دہ عمل دادہ چہ دا محل دے چہ عمل پکښې کیدلے شی دہ دے مثال لکہ پہ متن کښې تیر شویدے، او کہ شرط او جزاء دواړہ فعل ماضی وہ نو پہ دواړو کښې بہ عمل نشی کولے بلکہ جزم بہ پہ شرط او جزاء دواړو کښې محلی وی او پہ دے صورت کښې بہ عمل ولے نہ کوی حکہ چہ فعل ماضی مبنی دہ او کہ شرط فعل مضارع وہ او جزاء فعل ماضی وہ نو پہ شرط کښې بہ عمل کوی وجوبًا دہ وجے دہ وجود دہ عامل او دہ صلاحیت دہ محل نہ دہ پارہ دہ عمل او پہ جزاء کښې بہ عمل نہ کوی حکہ چہ فعل ماضی مبنی دہ نو پہ جزاء کښې بہ جزم محلی وی او کہ چرې شرط فعل ماضی وہ او جزاء فعل مضارع وہ نو پہ شرط کښې بہ عمل نشی کولے او پہ جزاء کښې دوہ وجے جائز دی جزم او ترک دہ جزم جزم جائز دے پہ نظر سرہ دیتہ چہ عامل موجود دے او محل صالح دے دہ پارہ دہ عمل او ترک دہ جزم جائز دے پہ نظر سرہ دیتہ چہ پہ مینځ کښې دہ عامل او دہ جزاء ماضی فاصلہ راغلے دہ نو دا مانع گرځیدلے دہ دہ عمل نہ،

پس دہ دی تفصیل نہ معلومہ شوہ چہ اِنْ حرف شرط پہ فعل ماضی هم داخلیږی او پہ فعل مضارع هم داخلیږی خو عمل صرف پہ مضارع کښې کوی او پہ ماضی کښې عمل نہ کوی حکہ چہ ماضی مبنی دہ، پس ان زرہ کرہ راخبرہ، چہ ان دہ پارہ دہ مستقبل دے نو چہ پہ فعل مضارع داخل شی نو دہ حالیت احتمال پکښې ختم شی او خاص شی پہ مستقبل پورې او چہ پہ فعل ماضی داخل شی نو دہ هغہ هم مستقبل جوړ کړی مثال دہ اول لکہ ان تَضْرِبْ اَضْرِبْ او مثال دہ ثانی لکہ ان ضَرَبْتَ ضَرَبْتُ، کلاهما فی الاستقبال

---

۱ او دیتہ اشارہ کړیدہ مصنف رح پہ دے قول خپل سرہ، وان برائے مستقبل است اگر چہ در ماضی رود چون ان ضربتَ ضربتُ وجزم اینجا تقدیری بود زیرا کہ ماضی معرب نسبت

اوان دهٔ پاره دهٔ مستقبل دے اګرچه داخل شي پهٔ ماضي باندے لکه ان ضربتَ ضربتُ شو او جزم به دلته تقديري وي ځکه چه ماضي معرب نه ده، تقديري نه مراد محلي

دے بدانکه چون جزائے شرط جمله اسميه باشد يا امر يا نهي يا دعا فا در جزاء آوردن لازم بود، پوه شه چه کله جزاء دهٔ شرط جمله اسميه وي يا امر وي يا نهي وي يا دعا وي نو

نو فاء راوړل لازم وي عه دا مصنف رح نه دے ذکر کړي پهٔ دے څلورو صورتونو فاء راوړل لازم ځکه دي چه دلته اِن حرف شرط تاثير نه دے کړے چه هغه نقل دے دهٔ ماضيت او حاليت نه استقبال ته نو فاء راوړل لازم شو چه ربط راولي پهٔ مابين دهٔ شرط او دهٔ جزاء کښے، يعني پهٔ مابين دهٔ شرط او دهٔ جزاء کښے ربط نشته ځکه چه پهٔ مستقبل کښے دے نو ربط بدهٔ شرط دهٔ جزاء سره هله راغلے وي چنانکه ګوئي ان تأتيني فانت مکرمٌ که واتے به ته کورے راغلے ته ماته نو ستا به عزت اوکړے شي (ترکيب) ان حرف شرط تأت فعل ضمير پکښے مستتر دے چه معبّر دے پهٔ انت سره فاعل کيږي دهٔ فعل (ن) وقايه (ی) ضمير دهٔ متکلم مفعول به فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ مفعول به خپل نه جمله فعليه شرط، فا جزائيه انت مبتداء مکرمٌ ولره خبر مبتدا او سره دهٔ خبر خپل نه جمله اسميه جزاء دهٔ پاره دهٔ شرط شرط سره دهٔ جزاء خپلے نه جمله فعليه شرطيه دا مثال دهٔ هغے دے چه جزاء جمله اسميه وي وان رأيت زيداً فاکرمهُ دا مثال دهٔ هغے دے چه جزاء امر وي (ترکيب) ان حرف شرط رأيت فعل ضمير پکښے مستتر دے فاعل کيږي دهٔ فعل زيداً شئے مفعول به فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ مفعول به خپلے نه جمله فعليه شرط فا جزائيه اکرمْ صيغه واحد مذکر فعل امر حاضر معلوم ضمير پکښے مستتر دے چه معبّر دے په انتَ سره فاعل کيږي دهٔ فعل (ه) ضمير چه راجع دے زيد ته مفعول به کيږي دهٔ پاره دهٔ فعل فعل سره دهٔ فاعل او سره ده مفعول به خپل نه جمله فعليه جزاء دهٔ پاره دهٔ شرط شرط سره دهٔ جزاء خپلے نه جمله فعليه شرطيه وان اتاک عمرٌو فلا تهِنهُ، دا مثال دهٔ هغه دے چه جزاء نهي وي (ترکيب) اِن حرف شرط اتا فعل (ک) ضمير مفعول به مقدم او عمرٌو فاعل مؤخر فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ مفعول به خپل نه جمله فعليه شرطيه فا جزائيه لا تُهِنْ فعل نهي ضمير پکښے

(دا رنګه محنې وه يا څه چې وي يا عوض وي نو بيا هم فاء راوړل لازم وي ص / پهٔ جزاء کښے ۱۲ ص)

مستتر دے چہ معبر دے پہ انت سرہ فاعل کیږی دۀ فعل (ہ) ضمیر چہ راجع دے زید تہ مفعول بہ دۀ پارہ دۀ فعل فعل سرہ دۀ فاعل او سرہ دۀ مفعول بہ خپل نہ جملہ فعلیہ خبریہ جزاء دۀ پارہ دۀ شرط شرط سرہ دۀ جزاء خپلے نہ جملہ فعلیہ شرطیہ ۔

وان اکرمتنی فجزاک اللہ خیراً او نکہ وائی بہ تہ ان اکرمتنی فجزاک اللہ خیراً دامثال دۀ

مع دے چہ جزاء دعاء وی، ترکیب ان حرف شرط اکرمت فعل ضمیر پکښے مستتر دے چہ معبر دے پۀ انت سرہ فاعل کیږی دۀ فعل (ن) وقایہ (ی) ضمیر دۀ متکلم مفعول بہ، فعل سرہ دۀ فاعل او سرہ دۀ مفعول بہ خپلے نہ جملہ فعلیہ شرط، فاء جزائیہ جزا فعل (ک) ضمیر ئے مفعول اول اللہ فاعل دۀ پارہ دۀ فعل او خیراً مفعول بہ ثانی فعل سرہ دۀ فاعل او سرہ دۀ مفعولین خپلو نہ جملہ فعلیہ جزاء دۀ پارہ دۀ شرط شرط سرہ دۀ جزاء خپلے نہ جملہ فعلیہ شرطیہ،

تمت باب اول ویلیہ الباب الثانی

وبلغ الی ھذا بتاریخ ۲۶ اکتوبر ۱۹۹۲ء الموافق ۲۹ ربیع الاول ۱۴۱۳ھ

یوم الاثنین وقت العشاء،

خطاط

محمد طیب طاہری بن امام المجاہدین حضرت مولانا عبد الغیاث (مرحوم) القند ھاری نور اللہ مرقدہ،

# باب دوم در عمل افعال

هر کله چه فارغ شو مصنف رحمه الله د باب اول نه چه باب د حروفو عاملو وو نو شروع ئے او کړه په باب ثانی کښے چه باب د افعال عاملو دے نو ده ئے وئیل باب دوم در عمل افعال، یعنی په دے باب کښے بیان د افعالو عاملو کیږی بدانکه هیچ فعل غیر عامل نیست، پوهه شه چه هیڅ یو فعل غیر عامل نشته دے متصرف وی او که غیر متصرف وی تام وی او که ناقص وی لازمی وی که متعدی وی معلوم وی که مجهول وی.

وافعال در اعمال بر دو گونه است، او افعال په عمل کښے په دوه قسمه دی قسم اول معروف اول قسم فعل معلوم دے فعل معلوم هغه دے چه د هغه نسبت شوے وی فاعل جلی یا خفی ته خفی معنیٰ داده چه ظاهر په لفظ کښے نه وی ذکر او دا معنیٰ نه ده چه مجهول وی معلوم نه وی او فعل معلوم ته فعل معلوم حکه وائی چه د دے فاعل معلوم دے مثال د فعل معلوم چه نسبت ئے شوے وی فاعل جلی ته لکه ضَرَبَ زَیْدٌ شو دلته فاعل د ضرب زید دے چه ظاهر په لفظ کښے ذکر دے او مثال د فاعل خفی لکه زَیْدٌ ضَرَبَ دلته فاعل د ضَرَبَ ضمیر مستتر دے چه راجع دے زید ته.

پس فعل معلوم بیا په دوه قسمه دے یو لازمی دے بل متعدی دے لازمی هغه دے چه پوره په فاعل تمامیږی او مفعول به ته ئے حاجت نه وی او دیته فعل لازمی حکه وائی چه دا لازم وی د فاعل سره تجاوز ده فاعل نه مفعول به ته نه کوی،

او فعل متعدی هغه دے چه پوره په فاعل سره نه تمامیږی بلکه مفعول به ته ئے حاجت وی لکه ضَرَبَ زَیْدٌ عَمْرًا شو او دیته فعل متعدی حکه وائی چه متعدی صیغه د اسم فاعل ده د دے معنیٰ لغوی "تجاوز کونکے" او دا فعل متعدی هم تجاوز کونکے دے د فاعل نه مفعول به ته، بدانکه فعل معروف خواه لازمی باشد خواه متعدی فاعل را برفع کنند، پوهه شه فعل معلوم برابره خبره ده چه متعدی وی که لازمی وی

دوهم لره رفع ورکوی چون قام زیدٌ لکه قام زیدٌ شو او دامثال دَ فعل لازمی دے
ضَرَبَ عمرٌو، او لکه ضرب عمرٌو شو دامثال دَ فعل متعدی دے وشش اسم رانصب کنند
وشپږو اسمونو لره نصب ورکوی، اول مفعول مطلق را چون قام زیدٌ قیاماً وضَرَبَ
عمروٌ ضرباً، اول مفعول مطلق لره لکه قام زیدٌ قیاماً او ضَرَبَ عمرٌو ضرباً شو اول مثال
دَ فعل لازمی دے مفعول مطلق دَ پاره دَ فعل قیاماً دے او دوهم مثال دَ فعل متعدی
دے او مفعول مطلق دَ پاره دَ فعل ضرباً دے (ترکیب) قام فعل زیدٌ فاعل قیاماً مفعول مطلق
فعل سره دَ فاعل او سره دَ مفعول مطلق خپل نه جمله فعلیه خبریه شوه او دَ مثال
ثانی ترکیب هم دغه شان دے دوم مفعول فیه را. دوهم نصب ورکوی مفعول فیه
لره چون صُمتُ یوم الجمعة، لکه صمت یوم الجمعة شو دامثال دَ فعل لازمی دے (ترکیب)
صمت فعل فاعل یوم مضاف الجمعة مضاف الیه مضاف سره دَ مضاف الیه خپل نه مفعول
فیه دَ پاره دَ صُمتُ فعل سره دَ فاعل او سره دَ مفعول فیه خپل نه جمله فعلیه خبریه،
وجلستُ فوقکَ، داهم مثال ده فعل لازمی دے خو اول مثال کښے مفعول فیه ظرف زمان وُو
و دامثال دَ هغه دے چه مفعول فیه پکښے ظرف مکان وی (ترکیب) جلست فعل فاعل فوق مضاف
کَ ضمیر یئے مضاف الیه مضاف سره ده مضاف الیه خپل نه مفعول فیه مکان دَ پاره دَ
جلستُ فعل سره ده فاعل او سره دَ مفعول فیه خپل نه جمله فعلیه خبریه او مثال
دَ فعل متعدی چه عمل دَ نصب یئے کړے وی په مفعول فیه زمان کښے لکه ضربتُ یوم الجمعة
او مثال دَ فعل متعدی چه عمل ده نصب یئے کړے وی په مفعول فیه مکان کښے لکه ضربتُ
امامکَ شو او مصنف رح دا مثالونه نه دی ذکر کړی ځکه چه دَ دوئی معلومول دَ فعل
لازمی نه آسان دی سره دَ دے خبرے چه مقصود په متولو کښے اختصار دے،

سوم مفعول معه را دریم نصب ورکوی مفعول معه لره چون جاء البرد والجبات
اتحع الجبات، ترجمه راغله یخنی سره دَ لولو لولو کوتو لو نه (ترکیب) جاء فعل البردُ
فاعل والجبات مفعول معه فعل سره دَ فاعل او سره دَ مفعول معه خپل نه جمله فعلیه
خبریه دامثال دَ فعل لازمی دے او مثال ده فعل متعدی لکه ضرب زیدٌ وعمراً شو په نصب
ده عمرا سره ای ضَرَبَ زیدٌ مع عمرٍو،

فائده په الجبات کښې کسره ده حکم چه دا مفعول معه دے لو منصوب ده خو جمع سالم
مؤنث ده او په جمع مؤنث کښې نصب تابع ده جروی نو په ځائے ده فتحے کسره راځی

څلورم مفعول له . څلورم نصب ورکوی مفعول له لره چون قمت اکراماً لزید
لکه قمت اکراماً لزید شو ، (ترجمه) پاسیدم زه ده پاره ده اکرام ده زید ، دا مثال
ده فعل لازمی دے ـ (ترکیب) قمت فعل فاعل اکراماً مصدر لام جاره زید مجرور
جار سره ده مجرور خپل نه متعلق ده اکراماً سره متعلق سره ده متعلق خپل نه مفعول
له ده پاره ده قمت فعل سره ده فاعل او سره ده مفعول له خپل نه جمله فعلیه خبریه
وضربته تادیباً دا مثال ده فعل متعدی دے (ترکیب) ضربت فعل فاعل (ه) مفعول به تادیباً
مفعول له فعل سره ده فاعل وسره ده مفعول به او سره ده مفعول له خپل نه جمله
فعلیه خبریه - پنځم حال را - پنځم نصب ورکوی حال لره چون جاء زیدٌ
راکباً ، لکه جاء زیدٌ راکباً شو ، (ترجمه) راغے زید په داسے حال کښے چه سور وو -
(ترکیب) جاء فعل زیدٌ ذوالحال راکباً حال ذوالحال سره ده حال خپل نه فاعل ده
پاره ده جاء فعل سره ده فاعل خپل نه جمله فعلیه خبریه ، او مثال ده فعل متعدی
لکه ضربت راکباً شو ،

شپږم تمیز را شپږم (نصب ورکوی) تمیز لره وقتیکه در نسبت فعل یا فاعل
ابهامی باشد ، په هغه وقت کښې چه په نسبت ده فعل کښې فاعل ته هم ابهام وی یعنی
به تمیز له نصب ورکوی چه په نسبت ده فعل کښے فاعل ته هم ابهام وی او که ابهام
نه وی نو بیا به تمیز له نصب نه ورکوی حکه چه ده تمیز ده نصب ده پاره وجود ده تمیز
ضروری دے او چه کله په نسبت ده فعل کښے فاعل ته ابهام نه وی نو هلته تمیز موجود نه دے
نو څرنګه به ورله فعل نصب ورکوی او په دے صورت کښے به تمیز ولے نشی راتلے حکه
چه تمیز راځی ده پاره ده رفع ده ابهام او ابهام موجود نه دے چون طاب زیدٌ نفساً
(ترجمه) ښه دے زید ده جهت ده نفس خپل نه په نسبت ده طاب کښے زید ته ابهام وو
حکه چه تاویل طاب زیدٌ نو معلومه نه وه چه زید ده کوم حیثیت نه ښه دے آیا ده جهت
ده پلار نه ښه دے که ده کور نه نو نفساً تمیز دے راوړو ده پاره ده رفع ده دغه ابهام هم

چه دَه نفس دَه جهت نه بنهٔ دے (ترکیب) طاب فعل زیدٌ فاعل مميّز نفساً تميز مميز سره دَه تميز خپل نه فاعل دَه پاره دَه طاب فعل سره دَه فاعل خپل نه جمله فعليه خبريه
اما فعل متعدی مفعول به را بنصب کنند، مرچه دے فعل متعدی (نو) مفعول به له هم نصب ورکوی، چون ضرب زيدٌ عمراً، لکه ضرب زيدٌ عمراً شو (ترکیب) ضَرَبَ فعل زیدٌ یئ فاعل او عمراً یئ مفعول به فعل سره دَه فاعل او سره دَه مفعول به خپل نه جمله فعليه خبريه، واين عمل فعل لازم (متعدی ۲ روا پس) را نباشد، داعل به فعل لازم له نه وی، پس حاصل داد ے چه فعل لازمی عمل (۱ او متعدی) دَه رفع ـــــ هم کوی او دَه نصب هم کوی خو فرق یئ داد ے چه فعل لازمی عمل دَه نصب په مفعول به کښې نهٔ کوی ځکه چه مفعول به ولره نشته او فعل متعدی عمل دَه نصب په مفعول به کښې کوی نو فعل لازمی عمل دَه نصب په شپږو ځیزونو کښې کوی مفعول مطلق مفعول فيه مفعول معه مفعول له حال تميز، او فعل متعدی عمل دَه نصب په اوؤ ځیزونو کښې کوی، شپږ دغه مذکور دی او اووم مفعول به دے

**فصل** بدانکه فاعل اسمیست که پیش از وی فعلی باشد مسند بدان اسم برطریق قيام فعل بدان اسم، پوهه شه چه فعل صفه اسم دے چه مخکښې دَه صفه نه یو فعل وی (یا شبه فعل وی) هسے فعل یا (شبه فعل) چه مسند وی دغه اسم ته په طریقے دَه قيام دَه فعل یا دَه شبه فعل) په دغه اسم پورے چون ضَرَبَ زیدٌ۔ لکه ضَرَبَ زیدٌ شو نو زیدٌ فاعل دے او مخکښې دَه دینه فعل دے ضَرَبَ چه مسند دے دے زید ته په طریقے دَه قيام سره قوله فاعل فاعل صیغه دَه اسم فاعل ده دَه دے معنی ده کوونکے او په اصطلاح کښې فاعل صفه اسم دے چه مخکښې ده صفه نه فعل یا شبه فعل وی چه مسند وی (دغه) اسم ته په طریقے دَه قيام سره کښې په دے قید دَه مصنف رح سره چه مسند بدان (اسم) دے باقی تول مفاعیل خارج شو ما سیوا دَه مفعول ما لم یسم فاعله نه یعنی دَه نائب فاعل نه او صفه خارج نه دے ځکه چه دَه صفه نه مخکښې هم فعل او شبه فعل وی چه مسند وی صفه ته هر کله چه مصنف رح دا قید کیخوده برطریق قيام بدان اسم نو مفعول ما لم یسم فاعله تر دینه هم خارج شو ځکه چه دَه مفعول ما لم یسم فاعله نه مخکښې اگر که فعل یا

یا شبه فعل وی چه مسند وی دغه اسم ته لیکن صفتهٔ طریقے دهٔ قیام سره نه وی بلکه پهٔ
طریقے دهٔ وقوع سره وی، ومفعول مطلق مصدریست که واقع شود بعد از فعل وآن
مصدر یعنی آن فعل باشد، او مفعول مطلق هغه مصدر دے چه واقع کیږی پس دهٔ
فعل نه او دغه مصدر پهٔ معنیٰ دهٔ هغه فعل سره وی یعنی چه هغه فعل مشتمل وی پهٔ معنیٰ دهٔ دے
مصدر ته قبیلے دهٔ اشتمال ده کل ته پهٔ جزء باندے پهٔ دے شان سره چه دغه مصدر
جزء وی دهٔ هغه فعل نه چون ضرباً در ضَرَبْتُ ضرباً ، نو ضرباً مفعول مطلق دے ځکه مصدر دے
او واقع دے روستو دهٔ فعل نه چه ضَرَبْتُ دے او هغه فعل مشتمل دے پهٔ دے باندے دهٔ
قبیلے دهٔ اشتمال دهٔ کل ته پهٔ جزء باندے ځکه چه ضرب حدث دے او پهٔ ضربتُ کښے درے
څیزونه دی حدث نسبت فاعل ته او زمان نو حدث پهٔ ضربتُ کښے راغے سره دهٔ زیادت
دهٔ نسبت او دهٔ زمان نه، وقیاماً در قمتُ قیاماً، او لکه قیاماً شوّ والخ
پس مصنف رح پهٔ تعریف دهٔ مفعول مطلق کښے دوهٔ قیدونه ذکر کړی دی یو دا چه واقع شود
او بل دا چه وآن مصدر یعنی آن فعل باشد، نو پهٔ قید اول سره ئے احتراز او کړو دهٔ هغه
مصدر نه چه واقع پس دهٔ فعل نه نهٔ وی ځکه چه هغه مفعول مطلق نهٔ دے لکه الضربُ واقعٌ
شوئ او پهٔ قید ثانی سره ئے احتراز او کړو دهٔ هغه مصدر نه چه واقع پس دهٔ فعل نه وی
خو پهٔ معنیٰ دهٔ هغه فعل سره نهٔ وی ځکه چه هغه هم مفعول مطلق نهٔ دے لکه ضربتُهٗ تادیباً
فائده پهٔ مابین دهٔ مفعول مطلق او دهٔ مصدر کښے عموم خصوص من وجه دے او عموم
خصوص من وجه درے ماده غواړی یو ماده اجتماعی او دوهٔ ماده افتراقی یوهٔ ماده
افتراقی دهٔ یو جانب نه او بل ماده افتراقی ده دهٔ بل جانب نه نو ماده اجتماعی چه
مصدر هم وی او مفعول مطلق هم وی لکه ضرباً شوئ پهٔ ضربتُ ضرباً کښے او ماده افتراقی
چه مصدر وی او مفعول مطلق نهٔ وی لکه الضربُ واقعٌ شوئ نو ضربٌ خو دلته مصدر
دے لیکن مفعول مطلق نهٔ دے ځکه چه واقع پس دهٔ فعل نه نهٔ دے او ماده افتراقی ده
جانب آخر نه چه مفعول مطلق وی او مصدر نهٔ وی لکه فَمَهِّلِ الْكَافِرِينَ أَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًا
نو رویداً مفعول مطلق دے ځکه چه واقع دے پس دهٔ فعل نه چه امهل دے او پهٔ معنیٰ
دهٔ دغه فعل سره هم دے ځکه چه معنیٰ دهٔ رُوَیْد هم مهلت دے خو مصدر نهٔ دے ځکه

چه رویند اسم فعل دے کما سیأتی فی بحث اسماء الأفعال، پس دَه دیے تفصیل نه معلوم شوه چه دَه مفعول مطلق دَه پاره دا ضروري نه ده چه مصدر به وي، نو دا قول دَه مصنف رح چه مفعول مطلق مصدر نیست بناء دے په غالب حکم چه غالب او اکثر مفعول مطلق مصدر وي او غیر مصدر کم دے،

بس از ذکر کرن را اخبره، چه مفعول مطلق په درے قسمه دے مفعول مطلق تاکیدي مفعول مطلق عددي او مفعول مطلق نوعي دَه تاکیدي لغوي معنی منسوب تاکید ته وي په اصطلاح کښے مفعول مطلق تاکیدي هغه دے چه راوړے شوے وي دَه پاره دَه تاکید دَه فعل متقدم لکه ضربت ضربتین شو، عدد مفعول مطلق م

ودَه نوعي معنی لغوي ده منسوب نوع ته او په اصطلاح کښے مفعول مطلق نوعي هغه دے چه راوړے شوے وي دَه پاره دَه بیان دَه نوع دَه فعل متقدم لکه جلست جلسة القاري، نو په جلسة سره بیان دَه نوع دَه فعل متقدم او شو چه جلست دے خو په دے درېو قسمونو کښے یو قسم چه مفعول مطلق تاکیدي دے دا نه جمع کیږي او باقي دوه قسمونه چه عددي او نوعي دے جمع کیږي. والتفصیل لایلیق بهذا المختصر،

ومفعول فیه اسمیست که فعل مذکور در وے واقع شود، او مفعول فیه هغه اسم دے چه فعل مذکور په هغه کښے واقع کیږي، فعل دلته په معنی لغوي سره دے چه حدث دے خو دا حدث که په مذکور صراحةً وي لکه اعجبني ضربک الیوم نو دلته ضرب حدث دے او صراحةً په لفظ کښے مذکور دے او یا به مذکور وي په ضمن دَه فعل کښے لکه ضربت یوم الجمعة شو نو دلته ضرب مذکور دے په ضمن دَه ضرب کښے چه فعل دے واو ظرف گویند او دے ته ظرف وائي وظرف بر دوگونه است ظرف زمان، او ظرف په دوه قسمه دے یو ظرف زمان دے، ظرف زمان په لغت کښے زمانے دَه وقوع دَه فعل ته وائي او په اصطلاح کښے هغه اسم دے چه دلالت کوي په زمانے دَه وقوع دَه فعل چون صمت یوم دربوم الجمعة لکه یوم شو په صمت یوم الجمعة کښے وتفصیل المثال مر- وظرف مکان او بل ظرف مکان دے ظرف مکان په لغت کښے ځائے دَه وقوع دَه فعل ته وائي او په اصطلاح کښے ظرف مکان هغه اسم دے چه دلالت کوي په ځائے دَه وقوع دَه فعل چون عندک در جلست عندک

لکه عندک شو په جلست عندک کښې یعنې کیناستم څنګ ستاسره او ترکیب ئې دے په شان د
جلست فوقک دے وقدمک، فائده، ظروف زمان په دوه قسمه دی مبهم
او محدود مبهم لکه حین او دهر شو او محدود لکه یوم لیل سنة او شهر، دا دواړه قسمونه به
منصوب وی په تقدیر د فی سره او په دوئی کښې به فی حکماً مقدره وی چه ظرف زمان
مبهم جزدے د مفهوم د فعل چل نه نو مشابه شو د مفعول مطلق سره او مفعول
مطلق ته ایصال د فعل بلا واسطه کیدلو بے د واسطے نه نو دوئی ته به هم ایصال
د فعل بلا واسطه کیږی بے د واسطے د فی نه او ظروف زمان محدود حمل دی په ظروف
زمان مبهم باندے د وجے د اشتراک نه په ذات کښې،

او ظروف مکان هم په دوه قسمه دی مبهم محدود مبهم لکه تحت او فوق شو او خلف او یمین
او شمال شو او محدود لکه مسجد او سوق شو، پس ظروف مکان مبهم به هم منصوب
وی په تقدیر د فی سره د وجے د حمل نه په ظروف زمانو مبهمو باندے د وجے د
اشتراک نه په وصف د ابهام کښې، او ظروف مکان محدود به په ذکر د فی سره وی او
منصوب به نه وی په تقدیر د فی سره حکه چه د دوئی اشتراک د ظروف زمان
مبهمو سره په ذات کښې هم نشته او په وصف کښې هم نشته هو چه دے په ذات کښې حکه چه
د هغو ذات زمان دے او د دوئی مکان دے او هو چه دے په وصف کښې حکه چه هغه
مبهم دی او دا محدود دی۔ فتامل۔ ومفعول معه اسمیست که مذکور باشد بعد از
واو بمعنی مع۔ او مفعول معه هغه اسم دے چه مذکور وی پس د واو نه چه په معنی
د مع سره وی واو بمعنی مع هغه واو دے چه راځی د پاره د مصاحبت د مابعد خپل
د ماقبل سره په صدور د فعل کښې که ماقبل فاعل وی لکه جاء البرد والجبات یا په وقوع
د فعل کښې که ماقبل مفعول به وی لکه کفاک وزیداً درهم۔ معنی کافی ده تا لره سره د
زید نه یو روپئ او دے واو ته واو د مصاحبت وائی پس په دے قید د مصنف رح
که مذکور باشد بعد از واو خارج شو هغه اسم چه مذکور پس د واو نه وی بلکه
د فاء وغیره نه روستو واقع وی لکه جاء زید فعمرو حکه چه هغه مفعول معه نه دے
او دا قید د مصنف رح چه بمعنی مع دے خارج شو په دے سره هغه اسم چه واقع بعد

الواو وی لیکن هغه واو په معنیٰ دَه مع سره نه وی ځکه چه هغه هم مفعول معه نه شو لکه جاء زیدٌ وبکرٌ لیکن شرط دَه پاره دَه مصاحبت دَه مابعد دَه ما قبل سره اتحاد زمانی دے لکه سِرتُ وزیداً ای مع زیدٍ نوکه زمان دَه سیر دَه دواړو یو نه وی نو سیر دَه متکلم سره دَه زید نه شی کیدے اوکله یٔ اتحاد دَه زمانے هم ضروری وی خو اتحاد دَه مکان به ضروری وی لکه لو تُرِکَتِ النَّاقَةُ وفَصِیْلُهَا لَرَضِعَهَا، (ترجمه) کچرے پریښودلے شی اوښه سره دَه بچی خپل نو اوښ به رَوِیٔ دا بچی اوښے لره نوکه زمانه دَه ترک دَه دواړو یوه نه وی بلکه یو په یو وقت کښے ازاد کرے شی او بل په بل وخت کښے نو بچی اوښه نشی رَوِدلے اوکه زمانه یوه وی لیکن مکان یو نه وی نو بیا هم بچی اوښه نشی رَوِدلے،

مثال دَه مفعول معهٗ چون والجبات دجاء البرد والجباتِ، لکه والجبات شوالخ مر تفصیله -

ومفعول له اسمیست که دلالت کند بر چیزے که سببِ فعل مذکور باشد، او مفعول له هغه اسم دے چه دلالت کوی په هغه شیٔ باندے چه سبب دَه فعل مذکور وی یعنی مفعول له هغه اسم دے چه دَه هغه دَه وجے نه فعل مذکور واقع شوے وی چون قمتُ اکراماً لزیدٍ لکه قمت اکراماً لزید معنیٰ نو دلته قیام چه فعل دے واقع شویدے دَه وجے دَه اکرام نه تامل خو دَه نصب دَه مفعول له دَه پاره شرط تقدیر دَه لام دے ځکه چه تلفظ په حرف جر وا جبوی جر په مدخول خپل کښے،

پس از ذکرش راخبره، چه مفعول له کله په مِن سره راځی لکه په دی قول دَه والیس تعالیٰ کښے لَوْ اَنْزَلْنَا هٰذَا الْقُرْآنَ عَلٰی جَبَلٍ لَرَأَیْتَهٗ خَاشِعًا مُتَصَدِّعًا مِنْ خَشْیَةِ اللّٰهِ نو من خشیة اللّٰه مفعول له دے اوکله راځی په (ب) سره لکه داقول دَه واحیه تعالیٰ شو فَبِظُلْمٍ مِنَ الَّذِیْنَ الخ اوکله راځی په (فی) سره لکه په دے قول دَه رسول اللّٰه صلّی اللّٰه علیه وسلّم کښے اِنَّ امْرَأَةً دَخَلَتِ النَّارَ فِیْ هِرَّةٍ حبستها، اوکله په لام سره راځی خو لام کله ملفوظ راځی لکه ضربتُ للتادیب اوکله مقدر راځی لکه په مثال دَه متن کښے،

پس حاصل دا دے چه مقدر په حروف دَه تعلیل کښے صرف لام راځی او دا نور مقدر نشی راتلے ځکه چه لام مشهور دے په حروفو دَه تعلیل کښے او ذهن تلهٔ کوی مشهور ته

نوکړ دانور حروف مقدر راشي نو ذهن به ذهاب اوکړي دے خيرے ته چه دل
لام مقدر شوی نو لازم به شي التباس او دا ناروا دے خو ده تقدير ده لام ده پا
درے شرطونه دی اول شرط دادے چه دا مفعول له به حدث وی یعني مصدر به و
اوکړي مصدر نه وی بلکه اسم جامد وی نو هلته مقدر نه راځي لکه جئتك للسمن
شو او دوهم شرط دادے چه فاعل ده فعل معلل او ده مفعول له به یو وی نو که فا
یو نه وو نو هلته به هم مقدر نه راځي لکه جئتك لمجيئك اياي دلته فاعل ده فعل مع
او مفعول له یو ندے ځکه چه فاعل ده فعل معلل متکلم دے او فاعل ده مفعول له مخ
دے او دریم شرط دادے چه دا مفعول له به مقارن وی ده فعل معلل سره په دے شا
سره چه زمانه ده وجود ده دواړو به یوه وی لکه ضربته تادیبا شو یا زمانه ده یو
بعض وی ده زمانے ده وجود ده آخر نه لکه قعدت عن الحرب جبنا، وشهدت الحرب
ايقاعا للصلح بين الفريقين، په مثال اول کښے زمانه ده فعل بعض ده ده زمانے ده وجو
ده مفعول له نه ځکه چه زمانه ده قعود عن الحرب بعض ده ده زمانے ده جبن نه،
هر کله چه مقارنت شرط دے نو که مفعول له مقارن نه وو ده فعل معلل سره نو هلته به هم مقد
نه راځي لکه اکرمتك اليوم لوعدي بذالك امس دلته مفعول له مقارن نه دے ده فعل سره
ځکه چه زمانه ده فعل ورځ موجوده او زمانه ده مفعول له ورځ ماضيه ده ستدبر،
آو چه کله په مفعول له کښے دا درے شرطونه موجود شي نو لام به ولے مقدر راځي ځکه چه مفعول
له په نزد ده وجود ده دے شروطو مشابه کرځي ده مفعول مطلق سره په کون ده دواړو کښے
جزء ده مفهوم ده فعل نه او مفعول مطلق ته وصول ده فعل کیده بغير ده واسطے نه نو
دلته به هم وصول ده فعل کیږي بغير ده واسطے ده حرف جر نه،
فائده ده تفصيل مذکوره نه راخبره ظاهره شوه چه مفعول له په څلور قسمه دے مفعول له
په من سره او په (ب) سره او په (في) سره او په لام سره، مفعول له په لام سره بيا په دوه
قسمه دے یو په لام لفظي سره او بل په لام تقديري سره په دواړو کښے صرف یو قسم مفعول
له منصوب دے چه مفعول له دے په لام مقدره سره او باقي ټول مجرور دی-

و حال اسمیست که دلالت کند بر هیئات فاعل- او حال هغه اسم دے چه دلالت کوی

په هیئات د فاعل چون راکبا در جاء زید راکباً، نکه راکباً شو په جاء زید راکباً کښې (ترکیب) جاء فعل زیدٌ فاعل ذوالحال راکباً حال ذوالحال سره دو حال خپل نه فاعل د پاره د جاء فعل سره د فاعل خپل نه جمله فعلیه خبریه یا بر هیئات مفعول، یا په هیئة د مفعول باندې چون مشدودا در ضربت زیداً مشدوداً نکه مشدوداً شو الخ (ترجمه) او وهلو ما زید لره په حال کون د زید کښې چه تړلے شوے وُو (ترکیب) ضربتُ فعل فاعل زیداً مفعول به ذوالحال مشدوداً حال ذوالحال سره د حال خپل نه جمله فعلیه خبریه - یا بر هیئات هردو یا دلالت کوی په هیئات د (فاعل او د مفعول) دواړو باندې چون راکبین در لقیتُ زیداً راکبین، نکه راکبین شو الخ (ترجمه) ملاقات او کړو ما د زید سره په حال کون زما کښې او د زید کښې چه دواړه سواره وُو (ترکیب) لقیتُ فعل فاعل او (ت) فاعل ذوالحال دے زیداً مفعول به ذوی الحال راکبین حال دے د فاعل او مفعول به دواړو نو (تُ) فاعل ذوالحال سره د حال خپل نه فاعل د پاره د فعل او زیداً مفعول به ذوالحال سره د حال خپل نه مفعول به د پاره د فعل فعل سره د فاعل او سره د مفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه -

حاصل دا دے - چه حال هغه اسم دے چه بیا نوی هیئة د فاعل او د مفعول به دواړو خو په اولو دو صورتو نو کښې به حال مفرد وی کچرې فاعل او مفعول به مفرد وُو او په دریم صورت کښې به تثنیه وی که فاعل یو وُو او مفعول به هم یو وه نکه په مثال سابق کښې او کچرې فاعل تثنیه وه یا جمع وه یا فاعل متعدد وُو یا مفعول به تثنیه وه یا جمع وه یا متعدد وه یا فاعل او مفعول به دواړه تثنیه وُو یا جمع وُو یا متعدد وُو نو بیا به حال جمع وی مثلاً چه فاعل تثنیه وی نکه لقیتما زیداً راکبین، تامل فی باقی الامثلة ولولا خوف التطویل لاتیت بها - وفاعل ومفعول را ذوالحال گویند، او فاعل او مفعول ته ذوالحال وائی ځکه چه د ذوالحال معنی لغوی ده حال والا او د فاعل او مفعول به بیان د حال کیږی نو دا هم حال والا شو تامل -

بیر از دو کرده را خبر آ، چه اصل په حال کښې اشتقاق دے یعنی اصل دا دے چه حال به مشتق وی او کچرې حال اسم جامد وُو نو هغه به مؤول وی په تاویل د ه

یہ چہ پالوی هیئت د فاعل فقط یا د مفعول به فقط یا د

مشتق سره لکه فانفروا ثُبَاتاً نو ثباتاً حال دا او جامد دے نو دا مئول دے په تأویل د متفرقین
سره اول شرط په حال کښے نکارت دے یعنی دا حال به نکره وی ځکه چه غرض د حال نه
بیان د ذوالحال دے او دا حاصلیږی په نکره سره نو کیږی ورسره قید د تعریف
ضائع بلا فائده وآن غالباً معرفه باشد، او دا ذوالحال به غالباً معرفه وی ځکه چه ذو
الحال په اصل کښے مبتدا ء وه او اصل په مبتداء کښے تعریف دے نو په ذوالحال کښے به هم وی

وا گر نکره باشد حال را مقدم دارند چون جاء نی راکباً رجلٌ ، او که چرے (ذوالحال) نکره وی
نو حال به مقدم کوی لکه جاء نی راکباً رجلٌ نو دلته رجلٌ ذوالحال نکره ده نو حال
چه راکباً دے مقدم شوی په دے بانـدے حاصل دا دے چه کله ذوالحال
نکره وه نو تقدیم د حال به واجب وی په ذوالحال بانـدے او دا تقدیم واجب دے
د دوه وجونه اوله وجه داده چه لازم نشی التباس د حال د صفت سره په حالت
نصبی کښے لکه رئیت راکباً رجلاً نو که دلته حال مقدم نشی بلکه داسے او ویلے شی چه
جاء نی رجلاً راکباً نو لازم به شی التباس د حال د صفت سره خلق به داهم او کړی
چه راکباً به صفت وی او رجلاً به موصوف وی آو چه حال مقدم شی نو بیا التباس
نه راځی ځکه چه تقدیم د صفت په موصوف ناروا دے او حالت رفعی او جری کښے اگر
چه التباس نشته خو هلته به هم مقدم کیږی د و جے د حمل نه په حالت نصبی بانـدے
طرداً للباب ، او دوئیمه وجه داده چه حال او ذوالحال په اصل کښے مبتداء او خبر دی
او مبتداء چه کله نکره وه نو خبر به مقدم کیدلو نو دلته به هم حال مقدم کیږی په ذوالحال
بانـدے لیکن تقدیم د حال واجب هله دے چه ذوالحال نکره محضه وی
او که نکره محض نه وه بلکه نکره مخصصه وه نو تقدیم د حال واجب نه دے لکه
جاء نی رجلٌ مِنْ بَنِیْ تمیمٍ فارساً او دا رنګه دا تقدیم واجب هله دے چه حال مشترک
نه وی په مابین د معرفه او نکره کښے او که مشترک وی نو هلته تقدیم بیا واجب
نه دے لکه جاء نی رجلٌ وزیدٌ راکبین،

وحال جمله نیز باشد ، او حال به جمله هم وی یعنی حال لکه څرنګه چه مفرد راځی نو
دا رنګه جمله راتلے شی ځکه چه غرض د حال نه بیان د حال د ذوالحال دے

اودا لکه حاصلیږي په مفرد سره نو دارنګه حاصلیږي په جملې سره مثال ده حال چه
جمله وي چون رئيت الأمير وهو راكبٌ ، لکه رلیت الأمير وهو راكب شو لو دلته
هو راكب جمله ده او حال واقع شویدے ده الأمير نه (ترکیب) رئيتُ فعل فاعل
الأمير مفعول بهٖ ذوالحال واو حالیه هُوَ مبتداء راکب خبر مبتداء سره ده خبر
خپل نه جمله اسمیه حال ذوالحال سره ده حال خپل نه مفعول به ده پاره ده فعل
فعل سره ده فاعل اوسره ده مفعول خپل نه جمله فعلیه خبریه
فائده ، حال جمله راځي خو جمله به جمله خبریه وي او جمله انشائیه به نه وي ځکه چه
جمله انشائیه کښې موجود نه ده نو بیان ده حال ده غیر به څرنګه اوکړي ، جمله خبریه
بیا عامه ده چه اسمیه وي که فعلیه وي لیکن چه حال جمله وي په دیکښې به لابدي وي ده
یو رابط نه ځکه چه حال مربوط وي ده ذوالحال سره او جمله مستقله بنفسه
ده تقاضا ده عدم ده ربط کوي نو لابدي شوه په کښې ده رابط نه چه ربط راولی
ده حال ده ذوالحال سره ، وتمیز اسمی است که رفع ابهام کند از عدد ، او تمیز
هغه اسم دے چه رفع ده ابهام کوي ده عدد نه چون عندی احد عشر درهماً ، لکه عندی
احد عشر درهماً شو ، (ترکیب) عندی ظرف مستقر خبر مقدم احد عشر عدد ممیز درهماً
تمیز ، ممیز سره ده تمیز خپل نه مبتداء مؤخر مبتداء سره ده خبر مقدم خپل نه جمله
اسمیه خبریه ، یا از وزن چون عندی رِطلٌ زیتاً یا رفع ده ابهام کوي ده وزن نه
لکه عندی رطلٌ زیتاً شو ، (ترجمه) په نزد زما باندے یو رطل دے ده جهت ده تیلو نه
(ترکیب) ده دے په شان ده مثال سابق ذے یا از کیل چون عندی قفیزان بُرّاً ، یا رفع
ده ابهام کوي ده کیل نه لکه عندی قفیزان بُرّاً شو (ترجمه) زما سره دي دوه قفیزه
ده جهت ده غنمو نه ، قفیزان تثنیه ده قفیز ده او قفیز یو پیمانه ده عندی ظرف مستقر
خبر مقدم قفیزان بُرّاً تمیز ، ممیز سره ده تمیز خپل نه مبتداء مؤخر ، مبتداء سره
ده خبر خپل نه جمله اسمیه خبریه ، یا از مساحت ، یا رفع ده ابهام کوي ده مساحت
نه یعني ده ناپ نه چون ما فی السماء قدر راحةٍ سحاباً ، (ترجمه) نشته په آسمان کښې په
اندازه ده ورغوي ده وریځ نه ، (ترکیب) ما مشبه بلیس فی السماء جار مجرور متعلق ده

[Margin note: له ممیز ۱۲]

دۀ ثابت مقدره سره متعلق سره دۀ متعلق خپل نه خبر مقدم قدر مضاف راحۃ
مضاف الیه مضاف سره دۀ مضاف الیه خپل نه مرکب اضافی ممیز سمایًا تمیز ممیز
سره ده تمیز خپل نه مبتداء مؤخر مبتداء سره دۀ خبر مقدم خپل نه جمله اسمیه خبر یه
اذره کره داخبره - چه تمیز هغه اسم دے چه دفع دۀ ابهام کوی دۀ ذات مذکوره نه
یا دۀ ذات مقدره نه برابره خبره ده چه مقدار وی اوکه غیر مقدار وی بیا چه مقدار وی
نو عدد وی اوکه وزن وی اوکه کیل وی اوکه مساحت وی لیکن مصنف ره صرف دۀ مقدار
مثالونه ذکر کړی دی او پوره تفصیل ئیے نه دے کړے ،

فائدة ، دغه اسم چه رفع دۀ ابهام کوی نو عام دے چه محوّل عن الفاعل وی
یعنی په اصل کښے فاعل وی بیا ترینه تمیز جوړ شوے وی لکه رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ
عِلْمًا - نو علمًا چه تمیز دے په اصل کښے فاعل وُو نو تقدیر دا رنگه وُو ربنا وَسِعَ عِلْمُكَ
كُلَّ شَيْءٍ ، اوکه محوّل عن المفعول وی یعنی په اصل کښے مفعول وی لکه وَفَجَّرْنَا الْأَرْضَ
عُيُونًا تقدیرا صل کښے دارنگه دے وفجرنا عیون الارض ، اوکه محول وی دۀ مبتدا
نه لکه أَنَا أَكْثَرُ مِنْكَ مَالًا وَوَلَدًا ، نو مالًا تمیز دے په اصل کښے مبتداء وه نو تقدیر
دارنگه دے ومالی اکثر منک ، اوکه محوّل دۀ یو نه هم نه وی لکه لِلّٰهِ دَرُّهُ فَارِسًا شو.
فان قیل ، چه څۀ وجه دۀ نصب دۀ تمیز - قلنا ځکه چه دا مشابه دے دۀ
مفعول سره په وقوع کښے په مرتبه ثالثه کښے مفعول هم په مرتبه ثالثه کښے دے
په دے شان سره چه فعل په مرتبه اولی کښے دے او فاعل په مرتبه ثانیه کښے دے
او مفعول په مرتبه ثالثه کښے دے او دا تمیز هم په مرتبه ثالثه کښے دے په دے
شان سره چه مُمَيَّز په مرتبه اولی کښے دے او متمم دۀ هغه اسم مُمَيَّزه په مرتبه
ثانی کښے دے او تمیز په مرتبه ثالث کښے دے ، متمم دۀ ممیز حلور څیزونه دی
نونٌ دۀ تثنیه نونٌ دۀ جمع تنوین او مضاف الیه

---

ومفعول به اسمیست که فعل فاعل برو واقع شود ، او مفعول به هغه اسم دے
چه فعل دۀ فاعل په هغه باندے واقع کیږی چون ضرب زیدٌ عمرًا ، لکه ضرب زیدٌ
عمرًا شو نو دلته عمرًا مفعول به دۀ ځکه چه دۀ فاعل په دے واقع شوید چه ضرب دے
رضی ۱۲

قوله فعل فاعل بر وواقع شود مراد دۀ وقوع دۀ فعل د تعلق دے برابره خبره ده
چه په طريقے دۀ وقوع سره وى لکه په مثال دۀ متن کښے او که په طريقے دۀ وقوع سره
نه وى لکه اياک نعبدُ شو فان قيل چه تعريف دۀ مفعول به دے مانع نه شو
دۀ دخول دۀ غير نه داخل شو په کښے جار مجرور لکه مررتُ بزيدٍ ځکه چه دلته
دۀ زيد سره هم تعلق دۀ فعل راغلے دے او حال دا دے چه دا مفعول به نه ده
قلنا چه مراد دۀ تعلق نه تعلق بالذات دے او دلته تعلق بالذات نه
دے راغلے بلکه په واسطے دۀ حرف جر سره راغلے دے فان قيل. چه تعريف
دۀ مفعول به دے مانع نشو دۀ دخول دۀ غير نه داخل شو پکښے مفعول ما لم يسم
فاعله لکه ضُرِبَ زيدٌ شو ځکه چه دۀ دے زيد سره هم تعلق دۀ فعل راغلے دے
او حال دا دے چه دا خو ل مفعول به نه ده قلنا چه مراد دۀ فعل نه دا سے فعل دے
چه مسند وى فاعل ته او دلته اسناد فعل فاعل ته نه دے شوے بلکه نائب فاعل
ته شوے دے،
پس دۀ دينه دغه فاعل عام دے چه حقيقةً وى لکه زيدٌ شو په ضَرَبَ زيدٌ عمراً
کښے او که حکماً وى لکه يُعطىٰ زيدٌ درهماً شو نو زيد که فاعل حقيقى نه دے ليکن
فاعل حکماً دے ځکه چه دا آخذ دے په حقيقت کښے او آخذ فاعل وى.

بدانکه اين همه منصوبات بعد از تمامى جمله باشند، پوهه شه چه دا ټول
منصوبات راځى پس دۀ تمام دۀ جملے نه و جمله بفعل وفاعل تمام شود او جمله
په فعل او فاعل سره تماميږى يعنى دے منصوباتو ته په تمام دۀ جمله کښے څه حاجت
نشته بلکه دۀ تمام دۀ جملے دۀ پاره فعل او فاعل کافى دى ځکه چه په جمله کښے دوه
څيزونه ضرورى دى مسند او مسند اليه او دا دواړه په فعل او فاعل کښے موجود دى
ځکه چه فعل او فاعل موجود شو نو فعل به مسند شى او فاعل به مسند اليه شى -

وبدين سبب گويند که المنصوبات فضلة او په دے سبب سره وائى چه منصوبات
فضله دى، يعنى دۀ دے وجے نه چه منصوباتو له دخل نشته په تمام دۀ جمله کښے نو
ويلے کيږى چه منصوبات فضله دى يعنى زياتى شئے دى،

**فصل** هر کله چه فارغ شو په بیان د معمولاتو د فعل نه ذکر د فاعل شوے دے او تعریف د هغه معلوم شوے دے او بیان د اقسامو د هغه شوے نو مصنف رحمه الله شروع او کړه په بیان د اقسامو کښے نو اووئیل دا رنګه سبد انکه فاعل بر دو ضرب است یو وشه چه فاعل په دوه قسمه دے مظهر یو مظهر دے مظهر صیغه ته وائی چه اسم ظاهر وی یو ضمیر نه وی چون ضَرَبَ زیدٌ . یعنی لکه زیدٌ شو لو په ضرب زیدٌ کښے نو دلته زید فاعل دے او مظهر دے ومضمر بارز او دویم مضمر بارز دے چون ضربتُ ، لکه ضربتُ شو نو دلته (تُ) ضمیر بارز دے ۔ ومستتر چون زیدٌ ضرب او مضمر مستتر دے لکه زیدٌ ضرب شو ، که فاعل ضَرَبَ هُوَ است در ضرب مستتر است چه فاعل د ضَرَبَ هو دے چه په ضَرَبَ کښے مستتر دے . حاصل دا دے چه فاعل په دوه قسمه دے مظهر ومضمر او مضمر بیا په دوه قسمه دے بارز او مستتر په صیغه د اسم فاعل سره بارز نه بارز ځکه وائی چه بارز معنی د ظاهر او دا هم ظاهر وی لکه په ضربتُ کښے (تُ) ظاهر دے او مستتر نه مستتر ځکه وائی چه مستتر معنی پټ او دا هم پټ وی ځکه چه ظاهر په لفظ کښے نه وی لکه په زیدٌ ضَرَبَ کښے فاعل د ضَرَبَ هُوَ ضمیر دے چه راجع دے زید ته نو په لفظ کښے نشته ،

سبد انکه چون فاعل فعل مؤنث حقیقی یا ضمیر مؤنث باشد ، ، پوهه شه چه کله فاعل د فعل مؤنث حقیقی وی یا ضمیر د مؤنث وی ۔ ، یعنی چه کله فاعل د فعل اسم ظاهر مؤنث حقیقی وی یا ضمیر د مؤنث غیر حقیقی وی یا د غیر حقیقی وی ، علامت تانیث در فعل لازم باشد علامه د تانیث راوړل به په فعل کښے لازم وی لیکن چه فاعل د فعل مؤنث حقیقی وی نو د لزوم د علامے د تانیث د پاره شرط دا دے چه په مابین د دغه فعل او فاعل کښے فصل نه وی نو حاصل دا دے چه کله فاعل د فعل اسم ظاهر د مؤنث حقیقی وی بلا فصل یا ضمیر د مؤنث حقیقی وی یا غیر حقیقی وی نو تانیث د فعل به لازم وی چه فاعل د فعل اسم ظاهر مؤنث حقیقی بلا فصل وی نو تانیث د فعل به لازم وی ځکه چه د دوی مرجع مؤنث ده او د ضمیر د خپلے مرجع سره موافقت ضروری وی په تانیث کښے . نو هر کله چه [illegible] مؤنث راوړلے شو لو نو فعل مؤنث شو

[illegible] نث . . . [illegible] مؤنث حقیقی وی او د غیر حقیقی وی نو تانیث د فعل به واجب وے

چون قامت هندٌ - دا مثال دهٔ صفے دے چه فاعل دهٔ فعل اسم ظاهر دهٔ مؤنث حقیقی بلا فصله وی
وهندٌ قامت د، مثال دهٔ صفے دے چه فاعل دهٔ فعل ضمیر دهٔ مؤنث حقیقی وی او مثال دهٔ غیر حقیقی
مصنف رح نهٔ دے ذکر کړے نو مثال دهٔ فاعل چه ضمیر دهٔ مؤنث غیر حقیقی وی لکه
الشمس طلعت نو طلعت کښے ضمیر دهٔ مؤنث غیر حقیقی دے ځکه چه د، ضمیر راجع دے شمس ته
او شمس مؤنث غیر حقیقی دے ځکه چه مؤنث سماعی دے - و در مظهر مؤنث غیر حقیقی و در مظهر
جمع تکسیر دو وجه روا است ، یعنی چه فاعل دهٔ فعل اسم ظاهر دهٔ مؤنث غیر حقیقی وی یا جمع تکسیر وی،
نو په دے کښے دوهٔ وجے جائز دی الحاق دهٔ علامے دهٔ تانیث، و ترک دهٔ علامے دهٔ تانیث
چه فاعل اسم ظاهر مؤنث غیر حقیقی وی نو جواز دهٔ وجهین په ځکه وی چه تانیث دهٔ دے په اعتبار
دهٔ لفظ سره دے او په اعتبار دهٔ معنی سره مذکر دے نو مونږ دهٔ دوارو لحاظ وکړو نو جواز دهٔ
وجهین شو پکښے ، او یا به جواز دهٔ وجهین ځکه وی چه تانیث دهٔ فاعل ضعیف دے دهٔ وجے
دهٔ عدم حقیقی والی نه نو مراعات ئے او نکړو تانیث دهٔ فعل ته په طریقے دهٔ وجوب سره ،
او چه فاعل جمع تکسیر وی نو جواز دهٔ وجهین په ځکه وی چه که تاویل دهٔ جماعة وشی نو
مؤنث به وی او که تاویل دهٔ جماعة او نشی نو مذکر به وی، تامّل،

چون طلع الشمس، دا مثال دهٔ صفے دے چه فاعل اسم ظاهر مؤنث غیر حقیقی وی او فعل مذکر
شوے وی و طلعت الشمس، دا مثال دهٔ صفے دے چه فاعل مؤنث غیر حقیقی وی او فعل مؤنث
شوے وی و قال الرجال، دا مثال دهٔ صفے دے چه فاعل اسم ظاهر جمع تکسیر وی او فعل مذکر
شوے وی - و قالت الرجال، دا مثال دهٔ صفے دے چه فاعل اسم ظاهر جمع تکسیر وی او فعل
مؤنث شوے وی ۱۲ و یو صورة مصنف رح نهٔ دے ذکر کړے د یو (جواز دهٔ) وجهین او صفه دا دے
چه فاعل دهٔ فعل اسم ظاهر دهٔ مؤنث حقیقی وی لیکن په مینځ دهٔ دغه فعل او فاعل کښے فصل
راغلے وی لکه حَضَرَ الْقَاضِیَ اِمْرَأَةٌ نو دلته امرأة فاعل دهٔ حضرت دے او مؤنث حقیقی
دے لیکن په مینځ کښے مفعول به فاصل راغلے دے چه قاضی دے نو په دے کښے جواز دهٔ وجهین
دے او په دے صورة کښے جواز (دهٔ وجهین) وله دے ځکه چه تانیث دهٔ فاعل ضعیف دے دهٔ وجے دهٔ
فصل نه نو -

سرایت ئې او نه کړې تانیث دَه فعل ته په طریقے دَه وجوب سره نو دواړه وجوه جائز دي.
شو، حمد که چه فارغ شو مصنف رح دَه بیان دَه فعل معلوم او دَه تفصیل دَه
معمولاتو دَه فعل معلوم نه نو اراده دَه شروع ئې او کړه په فعل مجهول کښے نو وَئے

ویل قسم دوم فعل مجهول، دویم قسم فعل مجهول دے فعل مجهول دیته وائی چه
نسبت ئې کړے شوے وی مفعول ته او دیته مجهول ځکه وائی چه فاعل دَه دے

معلوم نه دے بعد انکه فعل مجهول بجائے فاعل مفعول به را برفع کند وباقی را بنصب
پوهه شه چه فعل مجهول په ځائے دَه فاعل باندے مفعول به لره رفع ورکوی او باقی
لره نصب ورکوی یعنی مفعول مطلق مفعول فیه او مفعول معه او مفعول له لره نصب

ورکوی چون ضُرِبَ زیدٌ یومَ الجمعة اَمامَ الاُمیر ضرباً شدیداً فی دارہ تادیباً والخشبة
که ضرب زیدٌ الخ (ترجمه) وهلے شوے دے زید په ورځ دَه جمعے په مخ دَه امیر کښے
په وهلو سختو سره په کور دَه هغه کښے دَه پاره دَه ادب سره دَه لرگی نه یعنی په لرگی سره
(ترکیب) ضُرِبَ فعل زید مفعول مالم یسم فاعله یوم مضاف الجمعة مضاف الیه
مضاف سره دَه مضاف الیه خپل نه ظرف زمان امام الامیر ظرف مکان ضرباً موصوف
شدیداً ورله صفت موصوف سره دَه صفت خپل نه مفعول مطلق فی جار دار مضاف
(ه) ضمیر مضاف الیه مضاف سره دَه مضاف الیه خپل نه مجرور شو دَه جار جار سره
دَه مجرور خپل نه متعلق دَه ضرب سره تادیباً مفعول له والخشبة مفعول معه فعل سره
دَه نائب فاعل او سره دَه متعلق او سره دَه باقی مفاعیلو خپلو نه جمله فعلیه خبریه
(تشریح) په دے مثال مذکوره کښے زیدٌ مفعول به دے چه قائمقام دَه فاعل گرځید لے
ده او فعل ضُرِبَ پکښے عمل دَه رفع کړے دے او یوم الجمعة ظرف زمان دے عمله
پکښے او نورو کښے عمل دَه نصب کړے دے لیکن دا فعل مجهول چه عمل ده رفع
کوی په مفعول به کښے او دَه نصب په باقی کښے نو دا به هله وی چه په ترکیب کښے
مفعول به هم موجود وی او دا نور مفاعیل یا بعض هم موجود وی او که چه مفعول به
په ترکیب کښے نه وی نو بیا په دوئی کښے عمل دَه رفع کوی غیر دَه مفعول له او معه نه ځکه چه
دا قائمقام دَه فاعل نشی گرځیدلے - کما سیاتی -

بس پهٔ دیکښې مختلف صورتونه دي لیکن مصنف رح صرف یو صورت ذکر کړے دے
ئې نهٔ دي ذکر کړي تفصیل دَه دے صورتونو دا دے چه کچرے پهٔ ترکیب کښې مفا
بهم موجود وو او باقي مفاعیل ټول یا بعض هم موجود وُو نو پهٔ دے صورت
مفعول به له رفع ورکوی او باقي چه څهٔ مفاعیل دي نو که پهٔ ترکیب کښې ورسره یو وی
زیات وی نو هغوی له به نصب ورکوی او دویم صورت دا دے چه مفعول به موجود نه
صرف دا مفاعیل ټول موجود وی یا دوه یا درے یا زیات دَه دغه نو پهٔ دے صورت
به فعل مجهول یو مفعول له دَه دے مفاعیلو نه رفع ورکوی للعلی التعین فیرد
له او معه نه او باقي له به نصب ورکوی لکه ضُرِبَ یومُ الجمعةِ الخ . نشو نو رفع
ورکړی ظرف زمان له او باقي له پهٔ نصب ورکړي،
او دریم صورت دا دے چه پهٔ ترکیب کښې مفعول به موجود نهٔ وی صرف یو مفعو
موجود وی دَه دے باقي مفاعیل نه نو پهٔ دے صورت کښې به فعل مجهول صرف
رفع کوی پهٔ دغه مفعول کښې هر یو چه وی غیر دَه مفعول له او معه نه ځکه چه
دواړو کښې عمل دَه رفع نشي کولے نو پهٔ دے صورت کښې بهم فعل مجهول صرف عمل د
څلورم صورت دا دے چه صرف مفعول به موجود وي
کوی پهٔ دغه مفعول به کښې، حاصل دا دے چه فعل مجهول عمل دَه رفع او نصب د
کوی خو کله صرف دَه رفع عمل کوی او کله دَه رفع او نصب دواړو کوی، تمام شو
و فعل مجهول را فعل ما لم یسم فاعله گویند ، او فعل مجهول ته فعل ما لم یسم فا
ځکه چه دَه دے معنیٰ لغوی دَه هغه فعل چه نهٔ وی ذکر شوے فاعل دَه هغے او دَه د
فعل مجهول فاعل هم نه دے ذکر شوے و مرفوعش را مفعول ما لم یسم فا
او مرفوع ته یې مفعول ما لم یسم فاعله وائی یعنی پهٔ کوم اسم کښې چه فعل مجهول
دَه رفع کوی نو هغه ته مفعول ما لم یسم فاعله وائی ځکه چه دَه دے لغوی معنیٰ
مفعول چه فاعل یې نهٔ وی ذکر شوے او دَه دے مفعول فاعل هم نه دے ذکر
فصل، بدانکه فعل متعدی بر چهار قسم است پوه شه چه فعل متعد
څلور قسمه دے اوّل متعدی بیک مفعول، اول متعدی دے یو مفعول ته یعنی
شه دے چه متعدی وی یو مفعول ته چون ضَرَبَ زیدٌ عمرًا ، لکه ضرب زیدٌ عمـ

لو ضرب فعل دے او متعدی دے یو مفعول ته چه عمراً دے دوم متعدی بدو مفعول
که اقتصار بریک مفعول روا باشد ، دویم قسم فعل متعدی دے دوؤ مفعولونو ته
چه اقتصار په یو مفعول باندے رواوی یعنی حذف دَ یو مفعول او بقاء دَ مفعول
آخر جائز وی چون اعطی وآنچه درمعنی او باشد ، لکه اعطی شو او هغه فعل چه په معنی
دَ اعطی کښے وی یعنی هغه فعل چه دَ اعطی په شان دوؤ مفعولونه غواړی لیکن دَ
افعالو قلوبو نه نه وی لکه کسوتُ زیداً جُبَّةً شو او سلبتُ زیداً ثوباً شو- چون
اعطیتُ زیداً لکه اعطیت زیداً درهماً شوُ نو اعطیتُ فعل دے او متعدی دے
دوؤ مفعولونو ته مفعول اول زیداً دے او مفعول ثانی درهماً دے و اینجا اعطیتُ زیداً
نیز جائز است ، او دلته اعطیت زیداً هم جائز دے یعنی اقتصار جائز دے په دے شان
سره چه یو مفعول حذف کړے چه درهماً دے او بل باقی پریګدے چه زیداً دے او
دارنګه عکس هم جائز دے اګرچه مصنف رح نه دے ذکر کړے ، سوم متعدی بدو مفعول
دریم قسم هغه دے چه متعدی وی دوؤ مفعولو نوته که اقتصار بریک مفعول روانه باشد
چه اقتصار په یو مفعول باندے روانه وی ، واین در قلوب است ، او دارا هی
په افعال قلوبو کښے یعنی افعال قلوب متعدی کیږی دوؤ مفعولونو ته او اقتصار په
یو مفعول جائز نه وی یعنی دا روا نه ده چه یو مفعول دَ افعالو قلوبو حذف کړے
او بل باقی پریګدے بلکه یا به دواړه مفعولونه حذف کوی یا به دواړه ذکر کوی -
چون علمتُ وظننتُ وحسبتُ وخلتُ وزعمتُ ورئیتُ ووجدتُ ، لکه علمتُ الخ شو نو دا اول
افعال قلوب دی او دا متعدی کیږی دوؤ مفعولونو ته او اقتصار په یو مفعول جائز نه دے
په دوی کښے چون علمت زیداً فاضلاً وظننتُ زیداً عالماً - لکه علمتُ زیداً الی آخره
او مثالونه دَ باقی افعالو قلوبو دَ دے نه معلومیږی ، پس په افعال قلوبو کښے
اقتصار په یو مفعول جائز نه دے ځکه چه په ظاهر کښے خو دا دوؤ مفعولونه دی ځاند
ځاند لیکن په حقیقت کښے مفعول دَ افعالو قلوبو مضمون دَ دے دواړو مفعولونو
نه او مضمون دَ دے دواړو دا دے چه مصدر دَ مفعول ثانی مضاف کړے مفعول
اول ته لکه علمتُ زیداً فاضلاً دے نو مصدر دَ فاضلاً چه فضل دے هغه مضاف

کړي زيد ته نو علمتُ فضل زيدٍ اووا يئ ، نو هر کله چه مفعول په حقيقت کښے مضمون ذه دے دوا پورے نو که يو مفعول حذف شي اوبل باقي پاتي شي نو دا داسي کيږي لکه بعض اجزاء ذه کلمے حذف کړے اوبعض باقي پريګدے او دا جائز نه ده

چهارم متعدي بسه مفعول چون اعلم وارَىٰ وَاَنبَأَ وَاَخبَرَ وخبّرَ ونبّأ وحدّثَ

څلورم هغه دے چه متعدي دے درے مفعولونو ته لکه اعلم - الىٰ آخره شو - چون اعلم الله زيداً عمراً فاضلاً - لکه اعلم الله الخ شو (ترجمه) او خودلو الله زيد ته عمرو فاضل يعني فضيلت ذه زيد يئ ورته او خودلو ،

بدانکه اين همه مفعولات مفعول به اند ، پوهه شه چه داټول مفعولات مفعول به ده يعني داټول مفعولونه چه فعل ورته متعدي کيږي کما مرّ ذکر نو دا هريو مفعول به ده

ومفعول دوم در باب علمتُ ومفعول سوم در باب اعلمتُ ومفعول له ومفعول معه را بجائے فاعل نتوانند نهاد وديگر را شايد ،، او مفعول دوم ذه باب ذه علمتُ او مفعول سوم ذه باب ذه اعلمتُ او مفعول له او مفعول معه په ځائے ذه فاعل بانـدے نشي قائم کولے او نور قائم کولے شي ، يعني په مفاعيل کښے مفعول به ثاني ذه باب ذه علمتُ او مفعول به ثالث ذه باب ذه اعلمتُ او مفعول معه او له قائمقام ذه فاعل نشي ګرځيدلے او باقي ګرځيدلے شي دهر چه دے مفعول ثاني ذه باب ذه علمت نو دا نائب فاعل نشي ګرځيدلے ځکه چه دا مخکے ذه راتلو ذه فعل نه مسند دے مفعول اول ته ځکه چه دا په اصل کښے خبر دے او مفعول اول مبتداء ده او خبر مسند وي مبتداء ته او چه اوس دا نائب فاعل شي نو فعل به مسند شي ديته نو لازم به شي کون ذه مفعول مسند او مسند اليه په يو وخت کښے او دا نا روا ده - او هر چه دے مفعول ثالث ذه باب ذه اعلمتُ نو دا نائب فاعل نشي ګرځيدلے ځکه چه دا مسند دے مفعول ثاني ته نو که نائب فاعل شي نو مسند اليه به شي نو لازم به شي کون ذه شئ واحد مسند او مسند اليه په آن واحده کښے او هر چه مفعول له دے نو دا نائب فاعل نشي ګرځيدلے ځکه چه نصب ذه مفعول دلالة کوي په سببيت باندے او چه نائب فاعل شي نو مرفوع به شي نو دلالت به په معنىٰ د سببيت باندے فوت شي ليکن چه کله په مفعول له کښے لام ذکر وي نو بيا نائب فاعل

گرځیدلے شي ځکه چه لام دلالت کوي په سببیت باندے نوکه قائمقام ده فاعل شي نو دلالت په سببیت باندے به فوت کیږي لکه ضُرِبَ للتادیب شوځو په دے صورت کښے به مفعول له مرفوع نه وي بلکه مجرور به وي د ده وجے ده لام نه ، او هر چه دے مفعول معه نو د نائب فعل نشي کیدلے ځکه چه که ته دا نائب فاعل کرځوي نو واو به یا حذف کوي او یا به یئے ذکر کوي که نائب فاعل ئے کرځوي سره ده واو نه نو دا نشي کیدے ځکه چه واو په اصل کښے ده پاره ده عطف دے نو تقاضاء ده انفصال کوي او په مابین ده فاعل او ده نائب فاعل کښے شدت اتصال دے ده وجے ده کون ده نائب فاعل نه کالجزء ده فعل نه نو لازمیږي اجتماع ده اتصال او انفصال او اجتماع ده اتصال او انفصال جائز نه ده ځکه چه لازمیږي اجتماع ده ضدین او که واو حذف کوے نو بیا خو دا مفعول معه نه شو او که مفعول معه شي نو بیا ده دے مفعول معه والے نه معلومیږي ځکه چه مفعول معه والے معلومیږي په وقوع ده دے سره بعد الواو تامل فیه۔

پس ده دے تفصیل نه معلومه شوه دا خبره چه فعل مجهول عمل ده رفع په مفعول به ثاني کښے ده باب علمتُ او مفعول به ثالث ده باب اعلمتُ کښے او په مفعول له او معه کښے نشي کولے او په باقي کښے عمل ده رفع کولے شي

فائده ، ده دے مفعول به ثاني ده علمت او ثالث ده اعلمتُ او مفعول له او معه نه سوي نور مفاعیل نائب فاعل کرځیدلے شي لیکن په باب ده اعطیت کښے دوه مفعولونه دي نو مفعول اول او ثاني دواړه نائب فاعل کیدلے شي لیکن غوره دا ده چه اول نائب فاعل اوکرځوے ځکه چه په دے کښے معنیٰ ده فاعلیت ده نو مناسب شو ده فاعل سره او په دے کښے معنیٰ ده فاعلیت ځکه چه دا په حقیقت کښے آخذ دے او آخذ فاعل وي لکه اعطیتُ زید آ درهمًا نو زید آخذ دے ده پاره ده درهم نو په دے کښے اُعطِیَ زیدٌ درهمٌ

هر سله چه افعالِ ناقصه او افعالِ مقاربه او افعالِ مدح او ذم ححه او فعل تعجب ده افعالِ عامله نه دي او مصنف چه کوم عمل ده فعل ذکر شو نو ده دوي عمل ده فعل نه جدا دي او مصنف (۱ ۱ ۱ ده ۲) ده شروع او کړه په تفصیل ده دوي کښے په فصول علیحده علیحده کښے)

نو مصنف رح اراده دَ شروع اوکړو پۀ تفصیل دَ دوئی کښے پۀ جدا جدا فصول کښے لوړمنے

وبل۔ **فصل** : بدانکه افعال ناقصه بفده اند ، پوه شه چه افعال ناقصه اولس

دی رد امصنف رح خبره بنا اکړیده پۀ شهرت باندے ورنه پۀ دوئی کښے حصر نشته ،

پس اذن کړن دا خبره ، چه افعال پۀ دوه قسمه دی تامه او ناقصه وجه دَ حصر دا ده

چه داافعال به خالی نه وی یا به تمامیږی پۀ مجرد فاعل سره یا نه۔ بلکه خبرته به محتاجه

وی کۀ اول وُو نو افعال تامه اوکه ثانی وُو نو افعال ناقصه او افعال ناقصه ته ناقصه

ځکه وائی چه ناقصه معنیٰ نقصان والا او دا هم نقصان والا دی ځکه چه دغه فعل پۀ نسبت

سره فاعل خپل ته تام کرځی او دا پۀ نسبت سره فاعل خپل ته تام نه کرځی بلکه محتاجه

وی خبر ته خو افعال ناقصه پۀ دوه قسمه دی یو افعال ناقصه معنوی دوم لفظی افعال

ناقصه معنوی دیته وائی چه پۀ اسم خپل باندے تام نه کرځی بلکه محتاجه وی ذکر د

خبر ته او لفظی هغه دی چه پۀ لام کلمه کښے یئے حرف علت وی لیکن دلته مقصود

افعال ناقصه معنوی دی نه لفظی **کان** ، یو کان دے لکه کان زیدٌ قائماً

زید ولاړ وُو **وصار** ، او بل صار دے لکه صار زیدٌ غنیاً ، اوګرځیده زید مالدار ده

وظل ۔ او بل ظل دے لکه ظلّ زیدٌ صائماً یوه ورځ زید روژه دار وُو او پۀ معنیٰ دَ

صار سره هم راځی لکه ظلّ زیدٌ غنیاً ای صار زیدٌ غنیاً **وبات** ۔ او بل بات دے

لکه بات زیدٌ نائماً پوره شپه زید اوده وُو **واَصبَحَ** ۔ او بل اصبح دے لکه اصبح زیدٌ

قائماً صباح کښے زید ولاړ او دا پۀ معنیٰ دَ صار سره هم راځی لکه صار زیدٌ غنیاً :

واضحیٰ لکه اضحیٰ زیدٌ امیراً ، پۀ وخت دَ څاښت کښے زید امیر شو او پۀ معنیٰ ده

صار هم راځی لکه اضحیٰ زیدٌ غنیاً ، **وامسیٰ** او بل دَ افعال ناقصو نه امسیٰ دے

لکه امسیٰ زیدٌ شاعراً زید شاعر شو پۀ وخت دَ ماښام **وعاد** ۔ او بل عاد دے

لکه عاد زیدٌ غنیاً زید مالدار شو او دا کله تامه هم راځی نو بیا پۀ معنیٰ دَ واپس کیدلو

سره وی لکه عاد زیدٌ واپس شو زید) من باب نصر ۔ **وآض** او بل آض دے دا

هم پۀ معنیٰ ده (شو) سره لکه آض زیدٌ فقیراً زید غریب شو او تامه هم راځی نو کله چه تامه

وی نو بیا پۀ معنیٰ دَ رجوع سره وی لکه آض بکرٌ عن السوق واپس شو زید دَ بازار نه

وغدا - اوبل غدا دے دہٗ دے معنیٰ هم (شو) ده لکه غدا زیدٌ کاتباً زید کاتب شو او دا تامه هم راځیٔ دهٔ غُدُوٌّ نه پهٔ معنیٰ دهٔ تللو سره پهٔ وخت دهٔ صباح کښې لکه غدا زیدٌ شو سحر لاړه زید، وراح - اوبل راحَ دے داهم پهٔ معنیٰ دهٔ (شو) سره دے لکه راح زیدٌ شاعراً زید شاعر شوٗ او کله تامه هم راځیٔ دهٔ رواحٌ نه پهٔ معنیٰ دهٔ تللو سره پهٔ وخت دهٔ ماښام کښې لکه راح عمرٌ راغلے عمرو په پهٔ وخت دهٔ ماښام کښې ومازال لکه مازال زیدٌ راکباً همیشه وُو زید سور فائده - پهٔ زال او انفک برح او فتئ کښې نفی ده نو چه حرف نفی وربانده داخل شو نو معنیٰ نفی نفی کړی نو پهٔ محاوره کښې بهٔ دهٔ دوئ ترجمه داسے وی چه همیشه وُو - ومَا انفک - لکه ما انفک عمرٌو راکباً همیشه وُو زید سور وما فتئ اوبل ما فتئ دے لکه ما فتئ خالدٌ جالساً همیشه وُو خالد ناست ومادام ، اوبل مادام دے پهٔ دے کښې داما مصدریه دے او هغه دهٔ مدخول ځان نه تاویل پهٔ مصدر سره کوی نو تقدیر دهٔ مادام زیدٌ به داوی چه مدة جلوس زید لکه داسے وُوائ اجلس مادام زیدٌ جالساً (ترجمه) کینه ته چه ترڅو زید ناست وی یعنی تر وخت دهٔ جلوس دهٔ زید پورے - ولیس - اوبل لیسَ دے لکه لیس زیدٌ قائماً نه دے زید ولاړ او لیس پهٔ اصل کښې لیِسَ وُو پهٔ کسرهٔ دهٔ لام سره بیا (ی) ساکنه شوه دهٔ پاره دهٔ تخفیف نو لیسَ شوٗ - این افعال بفاعل تنها تمام نشود و محتاج باشند بخبرے (دا افعال ناقصه) پهٔ فاعل سره یوا ځے نه تمامیږی او محتاجه به وی خبر ته بدین سبب این را ناقصه گویند، ده دے وجے نه دوئ ته ناقصه وائی ودرجمله اسمیه روند، او دا داخلیږی پهٔ جمله اسمیه باندے ومسند الیه را برفع کنند، او مسند الیه لره رفع ورکوی ومسند را بنصب ، او مسند لره نصب ورکوی چون کان زیدٌ قائماً لکه کان زیدٌ قائماً شو مرفوع را اسم کان گویند، مرفوع ته اسم دهٔ کان وائی چه زیدٌ دے ومنصوب را خبر کان او منصوب ته خبر دهٔ کان وائی (چه قائماً دے) وباقی را بدین قیاس کن - او باقی افعال ناقصه پهٔ دوئ باندے قیاس کړه، حاصل دا دے چه افعال ناقصه داخیږی جمله اسمیه باندے نو مسند الیه لره چه مبتداء ده رفع ورکوی او مسند الیه لره چه صب ورکوی - او دغه مبتداء ته بیا اسم دهٔ افعال ناقصه وائی او خبر ته خبر

دَ افعال ناقصه والیٔ ، بدانکه بعضے احوال کان بفاعل تنها تمام شوند، پوهشه چې
په بعض احوالوکښے کان یوازې په فاعل باندے تمامیږی چون کان مَطَرٌ نکه کان
مطر شو (معنیٰ) - شد باران ، او شد باران بمعنی حصل په معنیٰ دَ حصل سره
ای حَصَلَ مطرٌ ، واورا کان تامه گویند ، اودیته کان تامه وائی وکان زائده
نیز باشد ، او کان زائده هم راځی نکه کَیْفَ نُکَلِّمُ مَنْ کَانَ فِي الْمَهْدِ صَبِیًّا ای کیف
نکلّم من هو فی المهد صبیًّا - (ترجمه) څرنګه خبرے اوکړو موږ دَ هغه چا سره
چه ده په ځانګوکښے وړوکے ،

پس از ذکرِ داخبرِ ، چه دَ دے افعالو دَ خبر تقدیم په اسم دَ دوئی باندے
جائز دے ځکه چه دا نه دے مګر تقدیم دَ معمولِ منصوب دَ فعل په معمول مرفوع دَ فعل
باندے او دا جائز دے ځکه چه فعل قوی العمل دے عمل کوی سره دَ ترتیب نه او بغیر دَ ترتیب
او هر چه دے تقدیم دَ خبر په ذات دَ دوئی نو په دے اعتبار سره دا افعال په درے
قسمه دی یو قسم هغه دے چه تقدیم دَ خبر په ذات دَ هغو جائز دے او دویم قسم هغه
دی چه تقدیم دَ خبر په ذات دَ هغوئی جائز نه دے او دریم قسم هغه دے چه په هغه کښے
اختلاف دے په مابین دَ بصریانو او دَ کوفیانو کښے چه تقدیم دَ خبر په ذات
دَ هغوئی باندے جائز وی نو دا هغه افعال ناقصه دی چه ما سیوا دی دَ لیس نه
او دَ هغه افعال ناقصوء نه چه په اول دَ هغوئی کښے ما وی او په دوئی باندے
تقدیم دَ خبر جائز ځکه دے چه دا نه دے مګر تقدیم دَ معمولِ منصوب دَ فعل په فعل
باندے او تقدیم دَ معمول منصوبه په عامل ناصبه باندے چه عامل فعل وی نو دا جائز
دے ځکه چه فعل قوی العمل دے عمل کوی په معمول مخ خوا او مقدم کښے هم دا تقدیم
به هله جائز وی که مانع موجود نه وُو او که مانع موجود وُو نو بیا به تقدیم جائز
نه وی نکه صار عدوّی صدیقی نو دلته تقدیم ناجائز دے دَ وجے دَ وجود دَ
مانع نه چه التباس دَ خبر دَ افعالو ناقصو دے دَ مبتدا سره او دا التباس
بوله راځی ځکه چه اعراب تقدیری دے او چه تقدیم دَ خبر و باندے نه
جائز وی نو دا هغه افعال ناقصه دی چه په اول کښے ئے ما وی او دلته تقدیم ناجائز

ځکه دے چه دا ما به یا ما نافیه وی لکه په ما زال ما برح ما انفک او ما فتی کښے شو
او یا به ما مصدریه وی لکه په ما دام کښے شو که ما نافیه وی نو هغه تقاضا د صدارت
د کلام کوی او چه تقدیم د خبر اوشی نو صدارت به فوت شی او دا جائز نه دے
او که مصدریه وی او خبر مقدم شی نو لازم به شی تقدیم د معمول د مصدر په مصدر باندے
او دا ناجائز دے ځکه چه مصدر ضعیف العمل دے عمل کوی په معمول مؤخر کښے نه په
مقدم کښے او چه اختلاف دے په کښے په مابین د بصریانو او کوفیانو نو بیا نو هغه
تیس دے بصریان وائی چه تقدیم د خبر د دے په ذات د دے باندے جائز دے
ځکه چه دا مشابه دے د هغه افعال ناقصه سره چه په اول کښے ئے ما نه وی په اعتبار
د لفظ سره او هغلته تقدیم جائز وو نو دلته هم جائز شو،
او کوفیان وائی ناجائز دے ځکه چه دا مشابه دے د هغه افعال ناقصو سره چه
په اول کښے ئے ما نافیه وی په اعتبار د معنیٰ سره او هغلته خو تقدیم ناجائز وو
نو دلته هم ناجائز شو. او هر چه دے تقدیم د اسم د افعال ناقصو په ذات
د دوئ نو دا جائز نه دے ځکه چه تقدیم د معمول مرفوعه په عامل رافع باندے جائز
نه دے تامل واحفظ هذا التفصیل فان فیه نفع کثیر ان کنت بصیراً۔
مصنف رحمه الله چه فارغ شو مصنف رح د بیان د افعال ناقصو نه نو شروع ئے اوکړه
په بیان د افعال مقاربه کښے ۔ فان قیل ، چه د اتحاد د نوع د عواملو نه پاره
درے شرطونه دی اتحاد عملی اتحاد ذاتی او اتحاد مدخولی او دا ټول شرطونه په افعال
ناقصه او افعال مقاربه کښے موجود دی نو افعال مقاربه ئے مستقل ولے ذکر کړه
قلنا ، چه دا ئے مستقل ځکه ذکر کړی دی چه د دوئ په مینځ کښے او د افعال ناقصو
په مینځ کښے نور فرق دے نو که دا مستقل ذکر نه شی نو هغه فرق به پټ پاتی شی او
هغه فرق دا دے چه افعال ناقصه عام دی داخلیږی په مفرد هم او په جمله باندے
هم او که په جمله کښے بیا په جمله اسمیه هم داخلیږی او په جمله فعلیه هم او په جمله فعلیه
کښے بیا په هغه جمله هم داخلیږی چه فعل ماضی وی او په هغه هم (داخلیږی) چه فعل مضارع وی او افعال
مقاربه خاص دی په جمله داخلیږی په مفرد نه داخلیږی او په جمله کښے بیا په اسمیه باندے

داخلیږی په فعلیه باندے نه دا خلیږی او په جمله اسمیه کښې خاص په همه جمله داخلیږ د چه خبر په کښې فعل مضارع وی - بیس افعال په دوه قسمه دی افعال مقاربه او غیر مقاربه، مقاربه هغه دی چه دلالت کوی په قرب باندے او غیر مقاربه هغه دے چه دلالت نه کوی په قرب باندے -

فصل ، بدانکه افعال مقاربه چهار است ، پوهه شه چه افعال مقاربه څلور دی ، قوله افعال مقاربه مقاربت وایئ نزدیکت ته او افعال مقاربه په اصطلاح کښې هغه افعال دی چه دلالت کوی په قرب د حصول د خبر خپل باندے اسم خپل له خو دا قرب په دریو طریقو سره دے رجائی حصولی اخذی رجائی هغه دے چه د متکلم امید وی په حصول د خبر باندے اسم له او ده دے د پاره عسیٰ راځی او حصولی هغه دے چه د متکلم یقین وی په حصول د خبر باندے اسم له یعنی متکلم خبر ورکوی ده دے خبری چه حصول د خبر اسم له یقینی دے خو شروع په حصول د اسبابو د هغے کښې نه وی شوے او ده دے د پاره کاد راځی واخذی هغه دے چه په هغه کښې یقین وی په حصول د خبر باندے اسم له خو سره د شروع د فاعل نه په اسبابو د حصول د دغه څیز کښې او ده دے د پاره طَفِقَ کَرَبَ جَعَلَ اَخَذَ آیسیٰ راځی - قوله چهار است دا بناء دے په مشهور باندے او غیر مشهور نور هم شته ، عسیٰ وکادَ وکَرَبَ واَوشَکَ ، یو عسیٰ دے الخ او غیر مشهور دریٰ دی طَفِقَ اَخَذَ جَعَلَ - واین افعال در جمله اسمیه روند چون کان او دا افعال په جمله اسمیه داخلیږی په شان د کان اسم را برفع کنند وخبر را بنصب اسم له رفع ورکوی او خبر له نصب ورکوی الاّ انکه خبر ایشان فعل مضارع باشد بان مگر دا چه خبر د دوئ به فعل مضارع وی سره د ان نه چون عسیٰ زیدٌ ان یخرج مکه عسیٰ زیدٌ اَنْ یَخرجَ شو (ترکیب) عسیٰ فعل د افعال مقاربو نه زیدٌ اسم د عسیٰ او ان یخرج په تاویل د مصدر سره خبر د عسیٰ فعل سره د اسم او سره د خبر خپل نه جمله فعلیه خبریه، یا بے آنْ - یا بغیر د آنْ نه وی یعنی خبر د دوئ به فعل مضارع بغیر د آنْ وی چون عسیٰ زیدٌ یخرج - قریب ده چه زید اوزی (ترکیب) عسیٰ

فعل زید اسم دَ عسیٰ یخرج فعل ضمیر مستتر فاعل فعل سره دَ فاعل خپل نه جمله
فعلیه خبریه خبر دَ پاره دَ عسیٰ فعل سره دَ اسم او سره دَ خبر خپل نه جمله فعلیه خبریه
وشاید که فعل مضارع با أن فاعلِ عسیٰ باشد ، او کیدے شی چه فعل مضارع سره
دَ ان فاعل دَ عسیٰ شی و احتیاج بخبرے نیفتد او احتیاج خبر ته را نشی نو بناء پهٔ
دے باندے به دا عسیٰ تامه وی چون عَسَیٰ ان یخرج زیدٌ در محل رفع بمعنی مصدر
مکه عسیٰ الخ په محل دَ رفع کښے پهٔ معنیٰ دَ مصدر سره ، یعنی چه ان یخرج پهٔ تأویل دَ
مفرد سره فاعل شی دَ عسیٰ او مرفوع شی محلاً نو بناء پهٔ دے به ترکیب دا رنګے شی عسیٰ
فعل تام ان یخرج فعل زیدٌ فاعل ، فعل سره ته فاعل خپل نه جمله پهٔ تأویل دَ مفرد شو
فاعلِ دَ عسیٰ فعل سره دَ فاعل خپل نه جمله فعلیه خبریه ۔

فائده ۔ دَ عسیٰ دَ پاره دوه استعماله پهٔ کلام دَ عربو کښے یو استعمال دادے چه
رومستو دَ دینه اسم مرفوع وی او رومسته دَ اسم مرفوع نه فعل مضارع وی لکه عسیٰ
زیدٌ ان یخرج نو پهٔ دے صورت کښے دوه ترکیبو نه جائز دی یو دا چه مابعد اسم مرفوع
اسم دَ عسیٰ شی او هغه فعل مضارع یئے خبر شی نو دا به ناقصه وی بناء پهٔ دے
دویم ترکیب دادے چه مابعد اسم مرفوع فاعل دَ عسیٰ شی او فعل مضارع بدل شی
دَ دغه اسم نه نو پهٔ دے صورت کښے به دا تامه وی ،
او دویم استعمال دادے چه رومستو دَ عسیٰ نه فعل مضارع وی او رومستو دَ فعل مضارع
نه اسم مرفوع وی لکه عسیٰ ان یخرج زیدٌ ، نو پهٔ دے صورت کښے هم پهٔ دیکښے دوه
ترکیبونه جائز دی یو دا چه مابعد اسم مرفوع اسم مؤخر دَ عسیٰ شی او فعل
مضارع خبر مقدم شی نو پهٔ دے صورت کښے به دا ناقصه وی ۔ دویم ترکیب دادے
چه مابعد اسم مرفوع فاعل دَ دے فعل مضارع شی او فعل مضارع پهٔ تاویل دَ
مصدر سره فاعل دَ عسیٰ شی نو پهٔ دے صورت کښے به دا تامه وی لیکن دا ترکیب
به پهٔ دے استعمال کښے هله صحیح وی چه فعل مضارع مصدری پهٔ ان سره او که فعل
مضارع مصدر په ان سره نه وی نو بیا پهٔ کښے صرف یو ترکیب اول جائز دے ځکه چه پهٔ ترکیب
ثانی کښے فعل مضارع فاعل دَ عسیٰ ګرځی چه ان نه وی نو جمله به فاعل شی دَ عسیٰ او جمله فاعل شی کیدلے
فقط ۔

فصل بدانکه افعال مدح وذم چهار است، هرکله چه فارغ شو مصنف رح
دَه بیان دَه افعال مقاربۀ نه نو شروع ئے اوکړو په بیان دَه افعال مدح اوذم کښے
نو وه ئے ویل بدانکه افعال مدح وذم چهار است پوهه شه چه افعال مدح اوذم څلور
دی قوله افعال مدح وذم دَه دے ترکیبي معنیٰ ده افعال دَه مدح اودَه ذم ـ مدح
صیغه دَه مصدر دَه په معنیٰ ده مدح او صفت کولو سره اوذم صیغه دَه مصدر دَه په
معنیٰ دَه بدی بیا نولو سره او په اصطلاح کښے افعال مدح اوذم هغه افعال دی
چه وضع شوی دی دَه پاره دَه انشاء دَه مدح اوذم ـ فان قیل ـ چه حصر
دَه افعال مدح اوذم په څلورو کښے صحیح نه دے دَه وجے دَه وجود دَه آخرُنه لکه
مدحتُ المُؤلّفَ علیٰ صفاتها وذممت الشیطانَ علیٰ رجاتها ـ قلنا حصر په
څلور کښے صحیح دے ځکه چه مراد دَه افعال مدح اوذم نه دلته هغه افعال دی
چه راځی دَه پاره دَه انشاء دَه مدح اوذم او مدحتُ اوذممتُ دَه پاره دَه انشاء
دَه مدح اوذم نه دے بلکه په دوئی کښے اخبار دے دَه مدح اوذم نه کما هو ظاهر
نعم وحبذا برائے مدح، یو دَه هغه څلورو افعالو دَه مدح اوذم نه نعم دے اوبل
حبذا دے په حال کون دَه دے دواړو کښے چه موضوع دی دَه پاره دَه انشاء دَه
مدح وبئس وساءَ ـ اوبل بئس وساءَ دے برائے ذم، په حال کون دَه دے
دواړو کښے چه دا موضوع دی دَه پاره دَه انشاء دَه ذم ـ وهرچه مابعد فاعل باشد
آن را مخصوص بالمدح یا مخصوص بالذم گویند، او هغه اسم چه روستو دَه فاعل نه وی
نقیه ته مخصوص بالمدح یا مخصوص بالذم وائی مخصوص بالمدح ورته په هغه
وخت کښے وائی چه بعد کښے فعل مدح وی لکه نعم الرجل اوحبذا الرجل، او مخصوص بالذم
ورته وائی په هغه وخت کښے چه مخکے فعل ذم وی لکه بئس الرجل اوساء الرجل، او دیته
مخصوص بالمدح اوبالذم ځکه وائی چه مخصوص بالمدح معنیٰ خاص کړے شوے
په مدح سره او مخصوص بالذم معنیٰ خاص کړے شوے په ذم پورے اودا هم خاص
کړے شوے دے په مدح اوذم پورے ـ وشرط آنست که فاعل معرف باللام باشد
اوشرط په افعال مدح کښے (غیر دَه حبذا) نه دادے چه فاعل به معرف باللام وی چون نعم الرجل زیدٌ ـ

لکه نعم الرجل زیدٌ شو ژبړنه دے سړے چه زید دے پهٔ دیکښے دوهٔ ترکیبونه دی
یو ترکیب دا دے چه نعم فعل مدح الرجلُ فاعل فعل سره دهٔ فاعل خپل نه جمله فعلیه
خبریه خبر مقدم، او زیدٌ مخصوص بالمدح مبتداء مؤخر۔ مبتداء سره دهٔ خبر
مقدم خپل نه جمله فعلیه خبریه، او دوئم ترکیب دا دے چه نعم فعل مدح الرجل فاعل
فعل سره دهٔ فاعل خپل نه جمله فعلیه خبریه او زیدٌ خبر دے دهٔ پاره دهٔ مبتداء
محذوف چه هُوَ دے مبتداء سره دهٔ خبر خپل نه جمله اسمیه خبریه نو بناء په ترکیب
اول دا یوه جمله ده او بناء پهٔ ترکیب ثانی دا دوه جملے دی یا مضاف بسوے معرف باللام
یا به فاعل مضاف وی طرف دهٔ معرف باللام ته چون نعم صاحب القوم زیدٌ۔
لکه نعم الخ ترجمه ژبړنه دے صاحب دهٔ قوم چه زید دے نو دلته فاعل دهٔ نعم صاحب
دے چه مضاف دے معرف باللام ته چه القوم دے لیکن دا اضافت معرف باللام
ته عام دے چه بالذات وی لکه پهٔ مثال مذکور کښے او که بالواسطه وی لکه نعم
صاحب لجام الفرس زیدٌ نو دلته فاعل چه صاحبُ دے مضاف دے اسم معرف
باللام ته چه الفرس دے خو بالواسطه ځکه چه دا بالذات مضاف دے لجام ته
او لجام بیا مضاف دے الفرس اسم معرف باللام ته حاصل دا دے چه شرط پهٔ افعال
مدح او ذم کښے دا دے چه فاعل دهٔ دوئی به معرف باللام وی یا به مضاف وی
معرف باللام ته بالذات یا بالواسطه او دا شرط ولے دے دهٔ پاره دهٔ دے
خبرے چه موافق شی دا فاعل دهٔ مخصوص سره پهٔ تخصیص کښے،
یا ضمیر مستتر ممیزه بنکرة منصوبة، یا به ضمیر مستتر وی چه ممیز وی پهٔ نکرے منصوبے
سره یعنی چه فاعل ضمیر وی نو ورسره به ولے نکره منصوبه تمیز راځی تمیز به ولے
ضروری وی دهٔ پاره دهٔ دے خبرے چه دفع دهٔ ابهام او کړے دهٔ ضمیر مبهم نه او تمیز
به نکره ولے وی ځکه چه دا اصل پهٔ تمیز کښے نکارت دے ځکه چه غرض ده تمیز نه
رفع دهٔ ابهام ده او هغه حاصلیږی په نکره سره نو کیږی ورسره قید دهٔ تعریف
بلا فائده، او تمیز به منصوب ځکه وی چه تمیز دهٔ منصوباتو نه دے مثال دهٔ دے
چون نعم رجلاً زیدٌ۔ لکه نعم الخ فاعل نعم هو است مستتر در نعم، فاعل دهٔ نعم

هو دے چه په نعم کښے مستتر دے و رجلاً منصوب است بر تمیز زیراکه هو مبهم است .
او رجلاً منصوب دے بناء بر تمیز ځکه چه هو مبهم دے یعنی رفع دَه ابهام دَه پاره رجلاً
تمیز ذکر شو نو دا رجلاً منصوب شو بنا بر تمیز او مثال دَه حبذا چه روستو دَه فاعل
دَه صفه نه مخصوص بالمدح راغلے وی چون حبذا زیدٌ که حبذا فعل مدح است
و ذا فاعل و زیدٌ مخصوص بالمدح ، حب فعل مدح دے او ذا فاعل دے او زید مخصوص
بالمدح دے (ترکیب) حبَّ فعل مدح ذا فاعل فعل سره دَه فاعل ځنی نه جمله فعلیه خبر
مقدم زیدٌ مخصوص بالمدح مبتداء مؤخر مبتدا او سره دَه خبر مقدم ځنی نه جمله
اسمیه خبریه و همچنین بئس الرجل زیدٌ وساء الرجل عمروٌ ، او هم دارنګه بئس
الرجل زیدٌ او ساء الرجل عمروٌ دی دَه دوئ ترکیب وغیره په شان دَه نعم دے
فرق دا دے چه هغه راځی دَه پاره دَه مدح او دا دواړه راځی دَه پاره دَه ذم تامل
حاصل دَه افعال مدح او ذم دا دے چه افعال مدح او ذم څلور دی نعم بئس
ساء حبذا نعم او حبذا راځی دَه پاره دَه انشاء دَه مدح او بئس او ساء راځی دَه پاره دَه
انشاء دَه ذم خو دَه دوئ نه روستو دوه څیزونه راځی یو فاعل او یو
مخصوص بالمدح یا مخصوص بالذم نو فاعل دَه حبذا خود غه ذا دے او
فعل مدح صرف حَبَّ دے لیکن دَه دے ذا دَه حبَّ سره شدے اتصال دے
نو دا او سره یو ځائے ذکر کیږی او فاعل دَه نعم او بئس او ساء به یا اسم معرف
باللام وی یا به مضاف وی معرف باللام ته بالذات یا بالواسطه یا به ضمیر
مستتره وی چه ممیز وی په نکرے منصوب سره ، هر کله چه فارغ شو
مصنف رح دَه افعال مدح او ذم نه نو اراده دَه شروع ئے او کړه په افعال تعجب
کښے نو وَه ئے ویل ؛ .

فصل بدانکه افعال تعجب دو صیغے از هر مصدر ثلاثی مجرد بکشند ، پوهه شه چه
افعال تعجب به دوه صیغے وی دَه هر مصدر دَه ثلاثی مجرد و نه ، قوله افعال تعجب
افعال مضاف دے او تعجب مضاف الیه دے معنی افعال دَه تعجب او په اصطلاح
دَه نحاتو کښے افعال تعجب هغه افعال دی چه وضع شوی وی دَه پاره دَه انشاء دَه

تعجب او تعجب یو کیفیت دے چه وړاندے کیږی زړه ته په سبب دَ لیدلو دَ یو امر
نا اشنا سره فان قیل چه دَ فعل تعجب خو صرف دوه صیغے دی نو مصنف رح
افعال ولے جمع ذکر کړو، قلنا چه مصنف رح افعال جمع ذکر کړے ده په اعتبار
دَ کثرت دَ افرادو سره ځکه نوعے خو دوه دی لیکن افراد یے ډیر دی لکه
ما احسن ما اسمع ما اکرم، احسن به اسمع به وغیره ـ تامل ـ قوله دو صیغه از هر
ثلاثی مجرد باشد، یعنی دَ فعل تعجب دوه صیغے دی خود ابه جوړیږی دَ مصدر
دَ ثلاثی مجرد ونه ـ اول ما افعله او دا صیغه دَ فعل تعجب ما افعله ده یعنی اوله
صیغه صفه ده چه راځی په وزن دَ ماضی معلوم دَ باب افعال لیکن ما قبل به ترینه
مخکے وی چون ما احسن زیداً، که ما احسن زیداً شو (ترجمه) څه شی دے چه خائسته
کړے زید لره (ترکیب) ما په معنی دَ ای شئ ای شئ مضاف شئ مضاف الیه مضاف
سره دَ مضاف الیه خپل نه مبتداء احسن فعل ضمیر پکښے مستتر دے چه معبر دے پکښے هو
سره فاعل کیږی دَ فعل زیداً یے مفعول به فعل سره دَ فاعل او سره دَ مفعول به
خپل نه جمله فعلیه خبر دَ پاره دَ مبتداء، مبتداء سره دَ خبر خپل جمله انشائیه،
چه نیکو است زید، څه بنائسته دے زید دامے ورے والا ترجمه ده او لفظی ترجمه
صفه وه چه مخکے تیره شوه ـ تقدیرش ای شئ احسن زیداً، تقدیر دَ عبارة دا دے
چه ای شئ احسن زیداً ـ ما بمعنی ای شئ است، ما په معنی دَ ای شئ دے در محل رفع
با بتداء، په محل دَ رفع کښے په ابتداء سره یعنی مرفوع دے محلاً بناء برابتداء،
واحسن در محل رفع خبر مبتداء، او احسن په محل دَ رفع کښے خبر دَ مبتداء دے یعنی
مرفوع دے محلاً بناء بر خبریته نو عامل په دواړو کښے معنوی شو وفاعل احسن
هو است در و مستتر، او فاعل دَ احسن هو دے چه په دیکښے مستتر دے وزیداً
مفعول به، او زیداً مفعول به ده، لیکن ترکیب مصنف رح کړیدے په مذهب دَ
فراء باندے او په دیکښے دوه ترکیبونه نور هم دی یو په مذهب دَ سیبویه باندے
او بل په مذهب دَ اخفش باندے مذهب دَ سیبویه دا دے چه ما په معنی
دَ شئ منکر سره مبتداء ده او احسن زیداً وله خبر دے او شئ نکره ده، تخصیص یے

رافع دے پۂ صفت مقدرہ سرہ نو تقدیر دۂ عبارت دارنگے دے چہ شئٌ عظیمٌ احسَنَ زیداً
او مذہب دۂ اخفش دا دے چہ مَا موصولہ دے پۂ معنیٰ دۂ الذی سرہ او مَا بعد ئے
صلہ دہ موصول سرہ دۂ صلے خپلے نہ مبتدا او دہ او خبر ئے محذوف دے نو تقدیر
دۂ عبارت دارنگہ دے چہ الّذی شیءٍ احسَنَ زیداً شئٌ عظیمٌ حُکم چہ پۂ مذہب دہ دۂ
باندے مَا استفہامیہ دے پۂ معنیٰ دۂ ایُّ شیءٍ سرہ نو جواب دۂ استفہام محذوف دے

ج: شئٌ عظیمٌ دے ۱۲

دوم اَفعِل بِہٖ ، دوئم صیغہ پۂ وزن دۂ افعل بہ دہ یعنی پۂ وزن دۂ امر حاضر معلوم دۂ
باب افعال دہ لیکن چہ دوستو ترینہ جار مجرور واقع وی ۔ چون اَحسِن بزیدٍ ،
کہ احسن بزیدٍ مثلو احسِن صیغہ امر است بمعنیٰ خبر احسن صیغہ دۂ امر دہ پۂ معنیٰ دۂ خبر
سرہ یعنی اَحسِن پۂ معنیٰ دۂ اَحسَنَ سرہ دے تقدیرش اَحسَنَ زیدٌ ، تقدیر دۂ دا دے
چہ اَحسَنَ زیدٌ ، ای صار ذا حسن ، یعنی گرځیدلے دے خاوند دۂ حسن
و بازائدہ است او با پۂ دیکښے زائدہ دہ نو ترکیب بہ داسے وی احسِن صیغہ امر
حاضر بمعنی اَحسَنَ با زائدہ زیدٌ فاعل دۂ احسن فعل سرہ دۂ فاعل خپل نہ جملہ
انشائیہ لفظاً او خبریہ معنیً ،

تمت بحث افعال العوامل بعون الملک الوھاب

مرتب
فضل ربانی دیروی

تاریخ ۹ جمادی الاولیٰ ۱۴۱۳ھ الموافق ۵ نومبر ۱۹۹۲ء یوم الخمیس

خطاط محمد طیب طاہری
مسلم آباد ایئرپورٹ روڈ کوئٹہ ..

# باب سوم در عمل اسمائے عامله

هرکله چه فارغ شو مصنف رح د ده بیان د افعال عامله نه نو شروع ئې اوکړو په بیان
د اسمائے عامله کښې نو وه ئې ویل باب سوم در عمل اسمائے عامله دریم باب د
دریو بابونو نه په بیان د عمل د اسمائے عاملو کښې دے وآن یازده قسم است او
دا اسمائے عامله یوولس قسمه دی اول اسماء شرطیه بمعنی اِنْ اول قسم اسمائے شرطیه دی
په معنی د اِنْ ( حرف شرط ) سره یعنی دغه اسماء دی چه په هغو کښې معنی د اِن حرف شرط
دی او دوی ته اسمائے شرط حکه وائی چه دوی مشتمل دی په معنی د اِن حرف شرط
باندے او دوی ته کلم المجازات هم وائی حکه چه دا تقاضا د جزاء کوی وآن نه است
او دا اسمائے شرط نهه دے مَنْ وما واینَ ومتیٰ و ایٌ و انّی و اذما وحیثما ومهما، من
دے سره د معطوفاتو نه چون من تضرب اضرب - وما تفعل افعل

- (ترکیب) د مثال اول مَنْ اسم متضمن معنی د
حرف شرط لره دا مفعول به مقدم تضرب فعل ضمیر پکښې مستتر دے چه معبر دے
په انت سره فاعل کیږی د فعل فعل سره د فاعل خپل نه او سره د مفعول به مقدم
خپل نه جمله فعلیه شرطیه اِضْرِبْ فعل ضمیر مستتره وله فاعل فعل سره د فاعل
خپل نه جمله فعلیه جزاء د پاره د شرط شرط سره د جزاء خپلے نه جمله فعلیه
او ترکیبونه د باقی دینه معلومیږی - واین تجلس اجلس - چرته چه ته کینے نو زه به هم
کینم ومتیٰ تقم اقم، چه کله ته پاڅے نو زه به هم پاڅم وای شئ تا کل اکل، چه کوم
شی ته خوری نو زه به ئے هم خورم وانّیٰ تکتب اکتب چه چرته ته لیکل کوے نو زه
به هم کوم وستی تسافر اسافر، چه کله ته سفر کوی نو زه به هم سفر کوم وحیثما
تقصد اقصد، چه چرته قصد کوے ته نو زه به هم قصد کوم ومهما
تقعد اقعد، چه کله ته کینے نو زه به هم کینم فائده د دے عواملو ذات اسماء
دی او عمل ئے د جزم دے یعنی جزم ورکوی فعل مضارع لره او نوم ئے اسمائے

شرط دی او بل نوم یې کلم المجازات دی او شمار یې لس دی او مدخول یې دوه جملې
دی یوی ته جزاء وائی او بلې ته شرط وائی ۔

دوم اسمائے افعال بمعنیٰ فعل ماضی دوم قسم د ډیولس اقسامو د اسماء یې عاملو
نه اسمائے افعال دی په معنیٰ د فعل ماضی سره یعنی هغه اسمائے افعال دی چه په معنیٰ د
ماضی سره وی تعریف تیر شویدے فی بحث اسم الغیر المتمکن ، چون هیهات وشتان، اول په معنیٰ د
بُعُد سره دے دوئم په معنیٰ د افتراق سره دے اسم را بنابر فاعلیت رفع کنند، اسم لره بنا
بر فاعلیت رفع ورکوی یعنی روستو د دینه چه کوم اسم وی نو هغه لره رفع ورکوی ځکه
چه دا په معنیٰ د فعل لازمی (ماضی) دی او ما بعد اسم یې فاعل دے او فاعل مرفوع وی
چون هیهات یوم العید ای بَعُدَ لکه هیهات الخ (متن) [illegible] ترجمه لری ده ورځ د اختر، سوم
اسمائے افعال بمعنیٰ امر حاضر دریم قسم د اسمائے عاملو نه اسمائے افعال دی
چه په معنیٰ د امر حاضر سره دی چون رُوَیدَ لکه روید شو په معنیٰ د امهل سره
وبله او لکه بله شو په معنیٰ د دَعْ سره وحیهل او لکه حیهل شو په معنیٰ د اِیتِ سره
وعلیك او لکه علیک شو په معنیٰ د الزم سره ودونك او لکه دونک شو په معنیٰ
د خذ سره اسم را بنصب کنند بنابر مفعولیت اسم لره به نصب ورکوی بناء بر
مفعولیت یعنی د دے اسمائے افعالو نه چه روستو کوم اسم وی نو هغه به منصوب
وی ځکه چه دا په معنیٰ د امر حاضر (متعدی) سره دی نو دا ما بعد اسم مفعول به ده د پاره
دوئ او مفعول به منصوب وی چون روید زیداً ای امهله یعنی مهلت ور
کړه زید لره رویدَ اسم فعل دے په معنیٰ د امهل سره او زیداً ورله مفعول به ده
او په دغه زید کښې دے عمل کړے دے د نصب، فان قیل چه فعل متعدی
خو فاعل هم غواړی نو هر کله ما بعد اسم واقع مفعول به شوه نو فاعل د دوئ څه شی
دے قلنا چه فاعل د دوئ ضمیر مستتره دے په دوئ کښې او دا فاعل به د دوئ
همیشه ضمیر مستتره وی او اسم ظاهر نشی راتلے ځکه چه دا په معنیٰ د امر حاضر سره
دے او اسمائے ظاهر د قبیلے د غائبو نو نه دی نو که فاعل د دوئ اسم ظاهر راشی
نو دوئ به مسند نشی اسم ظاهر ته نو دوئ به غائب او ګرځی - فتدبر۔

چهارم اسم فاعل بمعنی حال یا استقبال ، څلورم قسم اسم فاعل دے چه په معنیٰ د
حال یا استقبال سره وی قوله اسم فاعل اذره کړی دا خبره چه یو فاعل دے او بل اسم فاعل
دے فاعل کار کونکی ته وائی او اسم فاعل په لغت کښے نوم د کار کونکی ته وائی او په اصطلاح
کښے اسم فاعل هغه صیغه ده چه مشتق کیږی د فعل مضارع معلوم نه د پاره د دلالت
کولو په فاعل باندے نو په معنی د اسم فاعل او فاعل کښے فرق په دالیت او مدلولیت کښے
دے په دیشان سره چه فاعل معنیٰ مدلول دے او اسم فاعل لفظ دال دے قوله بمعنی حال یا
استقبال دا قید یئے حکه لګولے دے چه اسم فاعل وی لیکن په معنیٰ د حال او استقبال سره
نه وی بلکه په معنیٰ د ماضی سره وی نو هغه عمل نه کوی لکه زیدٌ ضاربٌ امس۔

عمل فعل معروف کنند بشرط آنکه اعتماد کرده باشد بر لفظیکه پیش از و باشد دا اسم فاعل
به عمل کوی د فعل معروف په شرط د دے سره چه اعتماد ئے کړے وی په هغه لفظ چه
مخکے د دینه وی وآن لفظ مبتدا باشد در لازم ۔ او هغه لفظ به مبتداء وی په فعل
لازم کښے چون زیدٌ قائمٌ ابوه ، لکه زید قائمٌ ابوه شو نو قائمٌ اسم فاعل دے او اعتماد
ئے کړے دے په مبتداء باندے چه زیدٌ دے (ترکیب) زیدٌ مبتدا قائمٌ صیغه اسم
فاعل ابو مضاف (ه) ضمیر مضاف الیه مضاف سره د مضاف الیه خپل نه فاعل
د پاره د پاره د اسم فاعل اسم فاعل سره د فاعل خپل نه شبه جمله خبر د پاره
د مبتدا مبتداء سره د خبر خپل نه جمله اسمیه خبریه و ودر فعل متعدی ، او دارنګه
هغه لفظ به مبتدا وی په فعل متعدی کښے چون زیدٌ ضاربٌ ابوه عمراً ۔ لکه زیدٌ
ضاربٌ ابوه عمراً شو (ترکیب) زید مبتداء ضاربٌ اسم فاعل ابوه فاعل عمراً مفعول
به اسم فاعل سره د فاعل او سره د مفعول به خپل نه شبه جمله خبر د پاره د زید
مبتداء سره د خبر خپل نه جمله اسمیه خبریه ، یا موصوف ، یا به هغه لفظ
موصوف وی چون مررت برجلٍ ضاربٍ ابوه بکراً ۔ لکه مررت شو (ترجمه) تیر
شوم زه په یو سړی باندے دایسے سړے چه وهونکے دے پلار د هغه بکر لره (ترکیب)
مررت فعل فاعل با جار رجلٍ موصوف ضارب اسم فاعل ابوه فاعل بکراً مفعول به
اسم فاعل سره د فاعل او سره د مفعول به خپل نه شبه جمله صفت د پاره د رجل

موصوف سره دَ صفت خپل نه مجرور دَ پاره دَ جار جار سره دَ مجرور خپل نه
متعلق دَ مررت سره فعل سره دَ فاعل او سره دَ متعلّق خپل نه جمله فعلیه
خبریه پس په دے مثال مذکور کښے ضاربٌ اسم فاعل دے او اعتماد ئې کړیدے په
موصوف باندے چه رجلٍ دے یا موصول یا به هغه لفظ موصول وی

چون جاءنی القائمُ ابوه ، تکه جاءنی القائمُ ابوه شو نو قائمُ اسم فاعل دے او
اعتماد ئے په موصول کړے دے چه الف لام موصولی دے په القائمُ کښے دا مثال ده
اسم فاعل لازمی دے تقدیر دَ دے دا دے تکه دے جاءنی الذی قام ابوه - وجاءنی
الضاربُ ابوه عمرًا - دا هم مثال دَ موصول دے خو دلته اسم فاعل متعدے دے
تقدیر دَ دے دا دے تکه دے جاءنی الذی ضرب ابوه عمرًا - (ترکیب) دَ مثال اول
جاء فعل نون وقایه (ی) ضمیر دَ متکلم مفعول به الف لام موصولی ضاربٌ صیغه ده
واحد مذکر اسم فاعل ابوه فاعل دَ ضاربٌ عمرًا ئے مفعول به اسم فاعل سره دَ فاعل
خپل نه صله دَ پاره دَ موصول موصول سره دَ صلے خپلے نه فاعل دَ پاره دَ فعل
فعل سره دَ فاعل او سره دَ مفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه (ترکیب دَ مثال ثانی)
جاء فعل نون وقایه (ی) ضمیر دَ متکلم مفعول به الف لام موصولی ضاربٌ اسم
فاعل ابوه فاعل عمرًا مفعول به اسم فاعل سره دَ فاعل او مفعول به خپل نه صله دَ
موصول موصول سره دَ صلے خپلے نه فاعل دَ جاءنی فعل سره دَ فاعل او دَ مفعول
به خپل نه جمله فعلیه خبریه،

یا ذوالحال ، یا به هغه لفظ ذوالحال وی چون جاءنی زیدٌ راکبًا غلامه فرسًا ، تکه جاءنی
الخ نو دلته راکبًا اسم فاعل دے او اعتماد ئے کړیدے په ذوالحال باندے چه زیدٌ دے
(ترجمه) راغے ماته زید په حال کون دَ زید کښے چه سور وو غلام ده دے په آس باندے
(ترکیب) جاء فعل (نون) وقایه (ی) ضمیر دَ متکلم مفعول به زیدٌ ذوالحال راکبًا اسم
فاعل غلامه فاعل دَ پاره دَ راکبًا فرسًا مفعول به اسم فاعل سره دَ فاعل او سره دَ
مفعول به خپل نه شبه جمله حال ذوالحال سره دَ حال خپل نه فاعل دَ پاره دَ
جاءنی فعل سره دَ فاعل او سره دَ مفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه ـــــ

یا همزه استفهام، یا به همزه د استفهام وی چون اضاربٌ زیدٌ عمرًا ـ لکه اضاربٌ زیدٌ
عمرًا شو ، ترجمه آیا وهونکی دے زید عمرو (ترکیب) همزه حرف استفهام ضارب
اسم فاعل زیدٌ فاعل د ضاربٌ ـ عمرًا یئے مفعول به اسم فاعل سره د فاعل او سره
د مفعول خپلے نه شبه جمله استثنائیه یا حرف نفی ، یا به هغه لفظ حرف نفی وی چون
ما قائمٌ زیدٌ ، لکه ما قائمٌ زیدٌ شو (ترکیب) ما حرف نفی قائمٌ اسم فاعل زیدٌ فاعل
د قائمٌ اسم فاعل سره د فاعل خپل نه شبه جمله
انشائیه مصدره بحرف النفی ، حاصل دادے چه د اسم فاعل د عمل د
پاره دوه شرطونه دی یو کون د اسم فاعل په معنیٰ د حال یا د استقبال دوئم اعتماد
په یو د اشیاء ستو باندے چه مبتدا دی موصوف دے موصول دے ذوالحال دے
حرف استفهام دے او حرف نفی دے هرچه دے اول شرط حکه چه اسم فاعل عمل کوی
د و چه د مشابهت د فعل مضارع نه او چه اسم فاعل په معنیٰ د حال یا استقبال
سره شی نو مشابهت به یئے د فعل مضارع سره کامل شی نو عمل به اوکړی او چه اسم فاعل
په معنیٰ د حال یا استقبال شی نو مشابهت به یئے د فعل مضارع سره ولے کامل شی حکه
چه د اسم فاعل د فعل مضارع سره مشابهت دے لفظًا په حرکاتو سکناتو او په
عدد د حروفو کښے نو چه په معنیٰ د حال یا د استقبال شی نو مشابهت په یئے معنیً
هم راشی او هرکله چه مشابهت لفظًا او معنیً دواړه راغله نو دانه دے مگر مشابهت کامله
او هرچه دے شرط ثانی یعنی اعتماد نو دا به ولے وی حکه چه په دے صورت کښے به مشابهه
د فعل سره قوی شی نو عمل به اوکړی په موصوف نو دا به صفت شی او چه اعتماد اوکړی
حکه چه اعتماد اوکړی په مبتدا نو اسم فاعل به خبر شی او چه اعتماد اوکړی
په موصول نو دا به صله شی او چه اعتماد اوکړی په ذوالحال نو دا به حال شی او د مبتدا
او خبر په مینځ کښے نسبت وی او د موصوف صفت په مینځ کښے نسبت وی او د موصول
او صله په مینځ کښے نسبت وی او د ذوالحال او حال په مینځ کښے نسبت وی او د فعل
او فاعل په مینځ کښے هم نسبت وی نو مشابهت یئے د فعل سره قوی شو ـ تامل
او چه اعتماد اوکړی په حرف نفی او حرف استفهام نو مشابهت به یئے د فعل سره ولے
قوی کیږی حکه چه حرف نفی او حرف استفهام اکثر داخلیږی په فعل باندے نو چه داخل شو

پۀ اسم فاعل نوشا یهت یئے دۀ فعل سرہ زیات شو. بمان عمل کہ قام وضرب می کرد قائمٌ و ضاربٌ میکند، ھغہ عمل چہ قام او ضرب کولو نو قائمٌ او ضاربٌ یئے ھم کوی دا پہ منزلہ دۀ تفصیل دے دۀ پارہ دۀ قول سابق دۀ مصنف رح چہ عمل فعل معروف کنند،

پس از رہ کړہ دا خبرہ چہ اسم فاعل عمل دۀ فعل معروف خپل کوی نوکہ دا مشتق شوے وُو دۀ داسے فعل معروف نہ چہ ھغہ عمل دۀ رفع کولو فقط نو دا بہ ھم فقط عمل دۀ رفع کوی لکہ یقوم زیدٌ او اقائمٌ زیدٌ ، اوکہ دا مشتق شوے وُو دۀ داسے فعل معروف نہ چہ ھغہ عمل دۀ رفع کولو پۀ فاعل کښے او عمل دۀ نصب یئے کولو پۀ مفعول بہ کښے نو دا بہ ھم دغہ شان عمل کوی لکہ یضربُ زیدٌ عمرًا او اضاربٌ زیدٌ عمرًا اوکہ ھغہ فعل معروف عمل دۀ رفع کولو او عمل دۀ نصب یئے کولو پۀ دوؤ مفعولونو کښے نو دا اسم فاعل بہ ھم دغہ شان عمل کوی لکہ یُعْطِیْ زیدٌ عمرًا درھمًا او ما معطی زیدٌ عمرًا درھمًا اوکہ فعل معروف عمل دۀ رفع کولو پۀ فاعل کښے او عمل دۀ نصب ئے کولو پۀ دریو مفعولونو کښے نو اسم فاعل بہ یئے ھم کوی لکہ یُعْلِمُ زیدٌ عمرًا بکرًا فاضلاً او زیدٌ معلِمٌ عمرًا بکرًا فاضلاً ،

فائدہ ـ دۀ اسم فاعل دۀ پارہ دوۀ استعمالہ دی یو بغیر دۀ اضافت نہ لکہ پۀ امثلۀ مذکورو کښے او بل پۀ اضافت سرہ لکہ زیدٌ ضاربُ عمرٍو ، پنځم اسم مفعول

پنځم دۀ اقسامو دۀ اسمائے عاملو نہ اسم مفعول دے دۀ اسم مفعول ترکیبی معنیٰ دۀ اسم دۀ مفعول او معنیٰ دۀ اسم ظاھر دہ ، او پۀ اصطلاح کښے اسم مفعول ھغہ اسم دے چہ مشتق کیږی دۀ فعل مضارع مجهول نہ دۀ پارہ دۀ دلالت کولو پۀ ھغہ ذات چہ پۀ ھغہ باندے وقوع دۀ فعل راغلے وی او ھغہ ذات چہ پۀ ھغہ باندے وقوع دۀ فعل راغلے وی ھغہ تہ مفعول وائی نو فرق پۀ ما بین دۀ مفعول او اسم مفعول کښے دۀ دالیت او مدلولیت دے پۀ دے شان سرہ چہ مفعول معنیٰ مدلول دہ او اسم مفعول لفظ دال دے بمعنیٰ حال واستقبال ـ دا اسے اسم مفعول) چہ پۀ معنیٰ دۀ حال او استقبال سرہ وی و آو دۀ پارہ دۀ منع خلوہ دے عمل فعل مجهول کنند ، دا عمل دۀ فعل مجهول کوی نو کہ فعل مجهول فقط عمل دۀ رفع کولو

نو دا به هم فقط عمل دَ رفع کوی لکه يُضْرَبُ عَمْرٌو او مَضْرُوبٌ عَمْرٌو شو او که فعل مجهول
عمل دَ رفع هم کولو او دَ نصب یئے کولو نو که بیا فعل مجهول عمل دَ نصب صرف پهٔ یو مفعول
کښے کولو نو دا به هم عمل دَ نصب صرف یو مفعول کښے کوی لکه يُعْطٰى زَيْدٌ دِرْهَمًا او زَيْدٌ
مُعْطًى دِرْهَمًا او که فعل مجهول عمل دَ نصب پهٔ دوؤ مفعولونو کښے کولو نو دا به هم عمل
دَ نصب پهٔ دوؤ مفعولونو کښے کوی لکه يُعْلَمُ زَيْدٌ عَمْرًا فَاضِلًا او زَيْدٌ مُعْلَمٌ عَمْرًا فَاضِلًا ـ

بشرط اعتماد مذکور، پهٔ شرط دَ اعتماد مذکور سره حاصل دا دے چه دَ اسم مفعول دَ
عمل دَ پاره هم دوه شرطونه دی کوٓن دَ اسم مفعول پهٔ معنیٰ دَ حال یا دَ استقبال او
اعتماد پهٔ یو دَ اشیاء ستهٔ باندے او وجه دَ دے تیره شویده پهٔ اسم فاعل کښے۔

چون زَيْدٌ مَضْرُوبٌ اَبُوْهُ لکه زَيْدٌ مَضْرُوبٌ اَبُوهُ شو دا مثال دَ هغے دے چه اسم مفعول
اعتماد کړے وی پهٔ مبتداء باندے (ترکیب) زَيْدٌ مبتداء مَضْرُوبٌ اسم مفعول ابو مضاف
(هُ) مضاف الیه مضاف سره دَ مضاف الیه خپل نه نائب فاعل دَ پاره دَ مَضْرُوبٌ
اسم مفعول سره دَ نائب فاعل خپل نه شبه جمله خبر دَ زَيْدٌ مبتداء سره دَ
خبر خپل نه جمله اسمیه خبریه - وَعَمْرٌو مُعْطًى غُلَامُهُ دِرْهَمًا - دا هم مثال دَ
هغے دے چه اعتماد یئے کړے وی پهٔ مبتداء باندے لیکن مخکے مثال دَ هغے وو چه اسم
مفعول صرف عمل دَ رفع کړے وو او دا مثال دَ هغے دے چه عمل دَ رفع او نصب دواړه
یئے کړے وی (ترجمهٔ مثال) زید چه دے ورکړے شویده غلام دَ دے ته روپئ وخالد
مُخْبَرٌ اِبْنُهُ عَمْرًا فَاضِلًا (ترجمه) خالد چه دے خبر ورکړے شویدے ځوئ دَ دے
ته دَ فضیلت دَ زید . دا هم مثال دَ هغے دے چه اسم مفعول اعتماد کړے وی پهٔ مبتدا
خو دا دَ هغے مثال دے چه عمل دَ نصب اسم مفعول کړے وی پهٔ دوؤ مفعولونو کښے
نو پهٔ مثال اول کښے فقط عمل دَ رفع وو او پهٔ دوئم کښے عمل دَ رفع وو او عمل دَ نصب
وو پهٔ یو مفعول کښے او پهٔ دے مثال ثالث کښے عمل دَ رفع دے او عمل دَ نصب دے

نومضروبٌ او معطیً او معلومٌ او مُخبرٌ نے هم کوی. ششم صفت مشبه، شپږم قسم دَه
پولس قسمونو دَه اسماء عامله نه صفت مشبه دَه صفت مشبه معنیٰ ده صفت مشابه کړے
شوے او په اصطلاح کښے صفت مشبه هغه اسم دے چه مشتق کیږی دَه فعل لازمی نه
دَه پاره دَه دلالت کولو په هغه ذات چه وجود دَه معنیٰ مصدری پکښے راځی په طریقے
دَه ثبوت سره نه په طریقے دَه تجدّد او حدوث سره او دے صفت مشبه ته صفت مشبه
ځکه وائی چه دا یو صفت دے چه مشابه دے دَه اسم فاعل سره په تذکیر تانیث افراد
او جمعیت کښے عمل فعل خود کند، دا صفت مشبه عمل دَه فعل خپل کوی یعنی عمل دَه
فعل لازمی کوی او فعل لازمی خو عمل دَه رفع کوی او دَه نصب عمل په مفعول به
کښے نه کوی نو دا صفت مشبه به هم دغه شان عمل کوی. فرق صرف دا دے چه فعل لازمی
عمل دَه نصب کوی په مفعول مطلق مفعول فیه او مفعول معه او مفعول له او حال او تمیز
کښے او صفت مشبه عمل دَه نصب په دوی کښے هم کوی او عمل دَه نصب په شبه مفعول کښے
هم کوی بشرط اعتماد مذکور. دا متعلق دے دَه دے قول سره چه عمل فعل خود کند
نو معنیٰ دا ده چه دا صفت مشبه عمل دَه فعل خپل کوی خو په شرط دَه اعتماد مذکور سره یعنی اعتماد
چه ذکر شو یدے په اسم فاعل کښے خو بغیر دَه اعتماد نه په موصول باندے یعنی دَه
صفت مشبه دَه پاره هم اعتماد شرط دے لکن اعتماد په پنځو څیزونو وی بغیر دَه موصول
نه او اعتماد په موصول باندے نشی کولے ځکه چه الف لام موصولی په صفت مشبه
کښے نشی داخیدلے ځکه چه دَه الف لام موصولیٔ نه تاویل کیږی په الذی التی سره
او دَه مدخول نه په ماضی معلوم ماضی مجهول او مضارع معلوم و مجهول سره او
دَه صفت مشبه نه تاویل نه کیږی په فعل ماضی او فعل مضارع سره ځکه چه دا دلالت
کوی په تجدد او حدوث باندے او صفت مشبه دلالت کوی په ثبوت باندے
او په مابین دَه دوی کښے منافات دے،

او دَه صفت مشبه دَه عمل دَه پاره هم دا شرط نشته چه په معنیٰ دَه حال یا استقبال سره
وی ځکه چه صفت مشبه په معنیٰ دَه حال او استقبال سره نشی راتلے دَه وجے نه
چه حال او استقبال دلالت کوی په تجدد او حدوث او صفت مشبه دلالت کوی په ثبوت

بانډے اوده دے د ځے نه چه ده صفت مشبه ده پاره داشرط نه وئو لو اوئه نویل مصنف رح چه شتم صفت مشبه بمعنی حال واستقبال، مثال ده صفت مشبه چه عمل ده فعل لازمی پئے کړے وی چون زیدٌ حَسَنٌ غلامُه نکه زیدٌ الرشو هم آن عمل که حَسُنَ می کرد حَسُنَ می کند، کوم عمل چه حَسُنَ کولو نو حَسَنٌ هُم کوی (ترکیب) زیدٌ مبتداء حسن صفت مشبه غلامُه فاعل ده حَسَنٌ صفت مشبه سره ده فاعل خپل نه شبه جمله خبر ده مبتدا مبتداء سره ده خبر خپل نه جمله اسمیه خبریه،

پس ازیں کره راغبره، چه صفت مشبه کښے اتلس[۱۸] مسائل دی حکم چه صفت مشبه به یا معرف[۱] باالالام وی او یا به غیر معرف باالالام وی او معمول ده صفت مشبه به یا معرف باالالام وی او یا به مضاف معرف وی باالالام ته او یا به نه معرف باالالام وی او نه به مضاف وی معرف باالالام ته یعنی خالی به وی ده دے دواړو نه نو چه دو[۲] لړ ضرب ورکړه په دریو کښے نو حاصل الضرب به پئے شپږ شی او بیا په معمول کښے در[۳] قسمه اعراب دائی رفع نصب او جر چه شپږ ونه ضرب ورکړے په در[۳] یو کښے نو حاصل الضرب به پئے اتلس[۱۸] شی، تفصیل به پئے داسے وی صفت مشبه معرف باالالام معمول معرف باالالام منصوب[۲] صفت مشبه معرف باالالام معمول معرف باالالام مرفوع صفت[۳] مشبه معرف باالالام معمول معرف باالالام مجرور، صفت[۴] مشبه معرف باالالام معمول مضاف معرف باالالام ته منصوب صفت[۵] صفت مشبه معرف باالالام معمول مضاف معرف باالالام ته

مرفوع صفت[۶] مشبه معرف باالالام معمول مضاف معرف باالالام ته مجرور صفت[۷] مشبه معرف باالالام معمول منصوب خالی ده دواړه ته صفت[۸] مشبه معرف باالالام معمول خالی ده دواړو نه مرفوع صفت[۹] مشبه معرف باالالام معمول خالی ده دواړو نه مجرور نو دا ټول نه[۹] قسمونه شو په هغو کښے چه صفت مشبه معرف باالالام وی آو دغه شان نهه[۹] صورتونه دی په صفت مشبه غیر معرف باالالام کښے نو مجموعه اتلس[۱۸] شو،

ذکر الامثلة علی الترتیب)

(۱) زَیدٌ اَلحَسَنَ الوجهَ (۲) زَیدٌ الحَسَنُ الوَجهُ (۳) زَیدٌ الحسنُ الوجهِ (۴) زَیدٌ الحَسَنُ وَجهَهُ (۵) زیدٌ الحَسَنُ وَجهُهُ (۶) زَیدٌ الحَسَنُ وَجهِهِ (۷) زَیدٌ الحسنُ وَجهً

(۸) زیدٌ اَلْحَسَنُ وَجْهٌ (۹) زیدٌ اَلْحَسَنُ وَجْهٍ (۱۰) زیدٌ حَسَنُ الْوَجْهَ (۱۱) زیدٌ حسنٌ الوجهُ (۱۲) زیدٌ حَسَنٌ الوَجْهِ (۱۳) زیدٌ حسنٌ وجهَهُ (۱۴) زیدٌ حسنٌ وجهُهُ (۱۵) زیدٌ حَسَنُ وَجْهِهٖ (۱۶) زیدٌ حَسَنٌ وَجْهًا (۱۷) زیدٌ حَسَنٌ وَجْهٌ (۱۸) زیدٌ حَسَنُ وَجْهٍ،

پس دَ دینه چه کله معمول دَ صفت مشبه مرفوع وی نو پهٔ صفت مشبه کښې به ضمیر نهٔ وی ځکه چه دغه معمول مرفوع فاعل دَ صفت دے نو که بل فاعل ضمیر راشی نو لازم به شی تعدد دَ فاعل او چه کله معمول منصوب وی نو پهٔ صفت مشبه کښې به ضمیر مستتر وی چه فاعل دَ صفت مشبه به وی لیکن پهٔ دے اتلس صورتونو کښې دوهٔ صورتونه حسن دی او دا هغه دی چه دوهٔ ضمیرونه دی په کښې او نهه صورتونه پکښې احسن دی او دا هغه دی چه یو ضمیر دے پکښې او څلور صورتونه هغه قبیح دی او دا هغه دی چه یو ضمیر پکښې هم نشته او یو صورت هغه دے چه پهٔ هغه کښې اختلاف دے او دا حَسَنُ وجهِهٖ دے پهٔ نزد دَ بعضو جائز دے دَ وجے دَ ضرورة شعری نه سره دَ قباحت نه او پهٔ نزد دَ بعضو جائز دے پهٔ شعر او نثر دواړو کښې بغیر دَ قباحت نه او دوهٔ صورتونه ممنوع دی.

والتفصیل لایلیق بهذا المختصر،

هفتم اسم تفضیل اوم قسم دَ یولسو اقسامو دَ اسمائے عاملو نه اسم تفضیل دے اسم تفضیل هغه اسم دے چه مشتق کیږی دَ فعل مضارع نه دَ پاره دَ دلالت کولو پهٔ دے خبره چه معنیٰ مصدری په یو څیز کښې زیاته ده دَ بل شئ نه چه پهٔ کوم کښې معنیٰ مصدری زیاته وی هغه ته مفضَّل وائی پهٔ صیغے دَ اسم مفعول سره او چه پهٔ کوم کښې معنیٰ مصدری کمه وی هغه ته مفضَّلٌ علیه وائی بیا اسم تفضیل پهٔ دوهٔ قسمه ده مذکر او مؤنث دَ مذکر صیغه پهٔ وزن دَ اَفعَلُ راځی او دَ مؤنث صیغه پهٔ وزن دَ فُعلیٰ راځی لکه اَنصَرُ او نُصرٰی شوه فان قیل، چه اسم تفضیل هم دلالت کوی پهٔ زیادت باندے او مبالغه هم دلالت کوی پهٔ زیادت نو فرق څه دے په مابین دَ اسم تفضیل او مبالغه کښې قلنا- چه اسم تفضیل هم دلالت کوی پهٔ زیادت او مبالغه هم دلالت کوی پهٔ زیادت لیکن پهٔ اسم تفضیل کښې هغه زیادت په مقابله دَ غیر کښې وی

وی او مبالغه کېنې زیادت فی نفسه وی واستعمال او برسه وجه است، او استعمال دهٔ اسم تفضیل په دریو طریقو سره دے یه من یو په من سره چون زیدٌ افضل من عمرٍو، لکه زیدٌ افضل من عمرٍو شو (ترکیب) زیدٌ مبتداء افضلُ اسم تفضیل ضمیر پکښې مستتر دے چه معبر دے په هو سره فاعل، کیږی دهٔ فعل مِنْ جار عمرٍو مجرور جار سره دهٔ خپل مجرور نه متعلق دهٔ افضل سره اسم تفضیل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ متعلق خپل نه خبر دهٔ مبتداء مبتداء سره دهٔ خبر خپل نه جمله اسمیه خبریه، یا با الف ولام چون جاءنی زیدٌ ن الافضلُ، یا به مستعمل وی په الف او لام سره لکه جاء نی زید ن الافضل (ترکیب) جاء فعل (ن) وقایه (ی) ضمیر دهٔ متکلم مفعول به زیدٌ موصوف الأفضل صفت موصوف سره دهٔ صفت خپل نه فاعل دهٔ پاره دهٔ جاء نی فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ مفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه، یا به اضافت چون زیدٌ افضل القومِ، یا به مستعمل وی په اضافت سره لکه زیدٌ افضلُ القومِ شو (ترکیب) زید مبتداء افضل مضاف القومِ مضاف الیه مضاف سره دهٔ مضاف الیه خپل نه خبر دهٔ مبتداء مبتداء سره دهٔ خبر خپل نه جمله اسمیه خبریه،

حاصل دا چه د اسم تفضیل دهٔ استعمال دپاره دا درے طریقے ضروری دی استعمال په مِنْ او الف لام او اضافت سره او یو دهٔ دے دریو طرو وقو نه ځکه ده چه اسم تفضیل راځی دهٔ پاره دهٔ زیادت دهٔ مفضل په مفضل علیه باندے او د بغیر دهٔ یو دهٔ دے دریو طریقو نه نشی کیدے وعمل او در فاعل باشد. او عمل دهٔ دے به په فاعل کښې وی یعنی عمل دهٔ رفع کوی په فاعل کښې وآن هُوَ است فاعل اَفْضَلُ که در ومستتر است. او هغه فاعل هو دے چه په افضلُ کښې مستتر دے، فائده، اسم تفضیل جوړیږی خاص دهٔ ثلاثی مجرد و نه دا سے ثلاثی مجرد چه معنی دهٔ لون او عیب پکښې نه وی بغیر دهٔ ثلاثی مجرد و نه ځکه نه جوړیږی چه دهٔ اسم تفضیل دوه صیغې دی یو اَفْعَلُ او بل فُعْلیٰ او دهٔ رباعی او ثلاثی مذید فیه حروف په افعلُ او فُعلیٰ کښې راتلے نشی او کوم ثلاثی مجرد چه معنی دهٔ لون او عیب په کښې وی نو ده هغه نه ځکه نشی جوړیدے چه په هغو کښې سابقاً په دے وزن صفت مشبه جوړه شویده نو که اوس اسم تفضیل

هم جوړ شي نو لازم به شي التباس، او که چرته جوړ شوي وي ده دَه لون او عیب نه نو هغه نادر ده خو خاص جوړ یږي دَه ثلاثي مجردو نه چه معنیٰ دَه لون او عیب په کښې نه وي لیکن که تا اراده او کړه دَه اداء کولو دَه معنیٰ تفضیل په غیر دَه دیکښې نو طریقه به داوي چه لفظ دَه شدت یا دَه کثرت یا نور الفاظ چه په مثل دَه دے وي دَه دوئ نه به اسم تفضیل جوړ کړے او دَه هغه ثلاثي مزید فیه او رباعي او هغه مادہ دَه لون او عیب نه به مصدر داواخلے او روستو به ئے ذکر کړے او هغه به منصوب وي بنا بر تمیز لکه زیدٌ اشدّ منه استخراجًا او زیدٌ اشدُّ منه حمرةً ،

هشتم مصدر، اتم قسم دَه یوولسو قسمونو دَه اسماء عاملو نه مصدر دے مصدر صیغه دَه ظرف ده مشتق دے دَه صدور نه په معنیٰ دَه جائے صدور او په اصطلاح کښې مصدر هغه اسم دے چه دَه هغه نه اشتقاق کیږي دَه فعل یعني مشتق منه وي دَه پاره دَه فعل او مصدر ته مصدر ځکه وائي چه دَه مصدر معنیٰ ده ځائي دَه صدور او دَه رجوع او دا هم ځائي دَه صدور دَه افعالو دے ځکه چه افعال راجع کیږي دیته په وخت دَه اشتقاق کښې او علامت دَه مصدر به داوي چه په آخر دَه معنیٰ فارسي دَه دیکښې به دال او نون یا تاء او نون وي لکه الضرب زدن والقتل کشتن، بشرط آنکه مفعول مطلق نباشد، په شرط دَه دے چه مفعول مطلق نه وي یعني دَه مصدر دَه عمل دَه پاره شرط دا دے چه مفعول مطلق نه وي ځکه چه دَه مفعول مطلق نه مخکښې فعل وي نو چه مصدر مفعول مطلق واقع شي نو مخکښې دَه دینه به به فعل راشي او فعل عامل قویه دے او اسم عامل ضعیفه دے په نسبت سره فعل ته او عامل ضعیفه په نزد دَه وجود دَه عامل قویه کښې عمل نشي کولے۔ فافهم، عمل فعلش کند چون اعجبني ضربُ زيدٍ عمرًا دا مصدر عمل دَه فعل خپل کوي لکه اعجبني ضربُ زيدٍ عمرًا، (ترجمه) په تعجب کښې واچولم وهلو دَه زید عمرو لره، حاصل دادے چه مصدر عمل کوي په شان دَه عمل دَه فعل خپل نو که فعل فقط عمل دَه رفع کولو نو دا به هم عمل دَه رفع کوي لکه اعجبني قيامُ زيدٌ او که فعل عمل دَه رفع او نصب دواړه کولو نو دا به هم عمل دَه رفع او نصب دواړه کوي لکه اعجبني ضربٌ زيدٌ عمرًا ، —

فائده د مصدر د استعمال دوه طریقې دي یو دا چه منون وي او مضاف نه
وي لکه اعجبني ضربٌ زیدٌ عمراً دوهم دا چه غیر منون وي او مضاف وي نو بیا که اضافت
فاعل ته کیږي لکه اعجبني ضربُ زیدٍ عمراً او که مفعول به ته کیږي لکه اعجبني ضربُ اللصِّ الجلادُ
نو چه کوم شئ مضاف شي نو هغه به لفظاً مجرور وي لیکن غوره دا ده چه مصدر منون
وي او مضاف نه وي او اضافت پکښې جائز دے خو بیا اضافت فاعل ته زیات دے
په نسبت سره اضافت ته چه مفعول به ته وي او مفعول به ته قلیل دے او مصدر به اضافة
مفعول به ته کیږي چه قرینه موجود وي په مفعول به،

نهم اسم مضاف، نهم قسم د یولسو اقسامو د اسماء عاملو نه اسم مضاف دے،
مضاف صیغه د اسم مفعول ده د اَضَافَ يُضِيفُ اِضَافَةً نه مصدر بابِ افعال دے
په لغت کښې مائل کولو ته وائي او په اصطلاح کښې نسبة شئٍ الی اسمٍ بواسطة حرف الجرّ
لفظاً او تقدیراً (ترجمه) نسبت د یو شي دے آخر ته په واسطے د حرف جر سره لفظاً
یا تقدیراً او دا اضافت نسبت دے په مابین د مضاف او مضاف الیه کښې نو معلومه شوه
د دینه دا خبره چه چرته اضافت وي نو علته به مضاف او مضاف الیه وي مضاف
په لغت کښې مائل کړے شوے ته وائي او په اصطلاح کښې المضاف کلُّ شئٍ نُسِبَ الی
اسمٍ بواسطة حرف الجر لفظاً او تقدیراً لکه مررتُ بزیدٍ او تقدیري لکه غلام زیدٍ ای غلامٌ
لِزیدٍ، لیکن کوم ځائي چه حرف جر لفظي وي نو د هغینه تعبیر کیږي په عجب د مجرور
سره او د مضاف الیه معنیٰ لغوي د هغه شي چه هغه ته میلان کړے شوے وي او په اصطلاح
کښې کل اسمٍ نُسِبَ الیه شئٌ بواسطة حرف الجر لفظاً او تقدیراً۔

مضاف الیه را بجر کند، (عمل د دے مضاف) دا دے چه مضاف الیه لره جر ورکوي
چون جاءني غلامُ زیدٍ، لکه جاءني غلامُ زیدٍ شو نو غلام مضاف دے او عمل ئې دے
جر دے په مضاف الیه کښې چه زید دے (ترکیب) جاء فعل (ن) وقایه (ی) ضمیر د متکلم
مفعول به غلام مضاف زیدٍ مضاف الیه مضاف سره د مضاف الیه خپل مرکب اضافي
فاعل د جاءني فعل سره د فاعل او سره د مفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه،

---

بدانکه اینجا لام بحقیقت مقدر است زیراکه تقدیرش آنست که غلام لزیدٍ،

پوهشه چه دلته لام په حقیقت کښې مقدر دے ځکه چه تقدیر ده دے دادے چه غلام لزیدٍ
ذره کړم دا خبره چه اضافت په دوه قسم دے یو اضافت لفظی دے او بل اضافت
معنوی دے اضافت لفظی دیته وائی چه مضاف صیغه د صفت وی او مضاف الیه معمول
د پاره د مضاف وی مګکے د اضافت نه لکه هو ضاربُ زیدٍ او دیته اضافت لفظی ځکه
وائی چه فائده د دے اضافت راجع ده لفظ ته فقط چه حصول د تخفیف دے په
لفظ کښې په سقوط د تنوین سره او په سقوط د نون د تثنیه او نون د جمع سره
د آخر د مضاف نه آو په وخت د اضافت کښې نون د تثنیه او نون د جمع او
تنوین د مضاف نه ځکه سافطیږی چه دا علامې د تمام د کلمې دی او اضافت علامه
د عدم تمام د کلمې ده او په مابین د تمام او عدم تمام کښې منافات دے
دویم دا ځکه حذف کیږی چه دا علامې د انفصال دی او په مابین د مضاف او مضاف
الیه کښې شدت اتصال دے په اعتبار د لفظ سره او په مابین د اتصال او انفصال
کښې منافات دے او اضافت معنوی دیته وائی چه مضاف صیغه د صفت نه وی
او مضاف الیه معمول د پاره د مضاف نه وی مګکے د اضافت نه،
پس د دے د تحقق درے صورتونه دی یو دا چه مضاف صیغه د صفت هم
نه وی او مضاف الیه معمول د پاره د مضاف هم نه وی مګکے د اضافت نه دویم
مضاف صیغه د صفت وی خو مضاف الیه معمول د پاره د مضاف نه وی مګکے
د اضافت نه دریم دا چه مضاف الیه معمول د پاره د مضاف وی مګکے د اضافت
نه خو مضاف صیغه د صفت نه وی او دیته اضافت معنوی ځکه وائی چه د دے
فائده لکه څرنګ راجع ده لفظ ته نو دارنګه راجع ده معنی ته هم، فائده
معنوی دا ده چه دا فائده کوی تعریف د مضاف سره د مضاف الیه معرفے نه
او تخصیص د مضاف سره د مضاف الیه نکره نه،
ګیچی اضافت معنوی بیا په درے قسمه دے (۱) اضافت بمعنی اللام (۲) اضافة
بمعنی فی (۳) اضافت بمعنی من په اول کښې به لام مقدر وی او په ثانی کښې به فی مقدره وی
او په ثالث کښې به من مقدر وی مثال د اول غلام زیدٍ ای لزیدٍ، مثال د ثانی لکه ضَرَبتُ

الیَوم ای ضربٌ فی الیوم او مثال دۀ ثالث لکه خاتم فضَّۃٍ ای مِن فِضَّۃٍ ،

فائدہ، شرط پۀ اضافت کښې تجرید دۀ مضاف دے دۀ تعریف نه ځکه چه اضافة معنوی فائده کوی تعریف دۀ مضاف سره ئۀ مضاف الیه معرفه نه او تخصیص دۀ مضاف سره دۀ مضاف الیه نکره نه نو چه مضاف معرفه وی نو لازمیږی تحصیل ئۀ حاصل سره دۀ مضاف الیه معرفه نه او طلب دۀ ادنیٰ چه تخصیص دے سره ئۀ حصول دۀ اعلیٰ نه چه تعریف دے سره دۀ مضاف الیه نکره نه او دا دواړه ناجائز دی ، او اضافت لفظی حمل دے پۀ اضافت معنوی طرداً للباب ، ، هٰذا حصته من بحث الاضافة فاحفظها ــــ

دهم اسم تام ، سم قسم دۀ یولسو قسمونو دۀ اسمائے عاملۀ نه اسم تام دے اسم تام هغه اسم مبهم دے چه تمام کړے شوے وی په یو دۀ اشیاء اربعو سره چه نون دۀ تثنیه او نون ئۀ جمع دے او تنوین دے او مضاف الیه دے خو نون دۀ جمع عام دے چه حقیقة وی او که حکماً ، حکماً نون دۀ جمع هغه دے چه مشابه وی پۀ نون دۀ جمع سره او معنیٰ دۀ تمام دۀ اسم پۀ دے اشیاء سره داده چه پۀ وخت ئۀ وجود دۀ اشیاء اربعو کښې اضافت دۀ دغه اسم جائز نۀ وی لکه مثلاً دۀ اسم پۀ آخر کښې تنوین وی نو اضافت به یئے نشی کیدے ،

فان قیل ، چه تعریف دۀ اسم تام دے منقوض شو پۀ زیدٌ باندے ځکه چه دا هم اسم دے چه تمام شوے دے پۀ تنوین سره او دا خو اسم تام اصطلاحی نه دے قلنا چه مونږ پۀ تعریف ئۀ اسم تام کښې دۀ اسم سره قید دۀ مبهم ایښودلے دے او دا اسم مبهم نۀ دے حاصل داده چه پۀ تعریف دۀ اسم تام کښې چه اسم ذکر کیږی نو مراد ترې هغه اسم مبهم دے ، تمیز را بنصب کند ، (عمل دۀ اسم تام داده) چه تمیز لره نصب ورکوی وتمامی اسم یا بتنوین باشد ، او تمام والے دۀ اسم به یا پۀ تنوین سره وی چون ما فی السّماء قدرُ راحةٍ سحاباً ، لکه ما اوس شو ترجمه او ترکیب به بحث دۀ افعالو کښې تېر شوید ے ، یا بتقدیر تنوین ، یا به پۀ تقدیر دۀ تنوین سره وی چون عندی احدعشر رجلاً ، نو پۀ احدعشر کښې تنوین مقدر دے ځکه چه دا پۀ اصل کښې احدٌ وعشرٌ وو وزیدٌ اکثر منک مالاً ، دلته پۀ اکثر کښې تنوین مقدر دے او مقدر دۀ دے

وجہ نہ دے چہ دہ اظہار دہ تنوین نہ مانع موجود دے چہ وزن دہ اَفعَلُ دے او دہ دے
وجہ نہ چہ مانع دہ ظہور دہ تنوین نہ وزن دہ اَفعَلُ دے خو چہ کلہ وزن دہ افعل زائل
شی نو تنوین ظاہریږی لکہ نُصَرٌ چہ جمع دہ اَنصَارُ دہ فان قیل ۔ چہ ځکے مصنفؒ
مطلق تنوین ذکر کړے دے چہ وتمامی اسم یا بہ تنوین باشد، نو پہ دے کښے تنوین
مقدرہ هم داخل دے نو بیا ئے ولے مستقل ذکر کړو قلنا ۔ چہ دلته مطلق تنوین
مراد نہ دے بلکہ تنوین لفظی مراد دے لیکن قید دہ لفظی ئے ورسرہ نہ دے ذکر
فان قیل ، چہ هر کلہ قید دہ لفظی مراد وُو نو مصنف رحمہ ولے ذکر نہ کړو
قلنا ، چہ مصنف رحمہ دا نہ دے ذکر کړے دہ وجہ دہ اختصار نہ سرہ دہ دے خبرے
نہ چہ دہ مثال نہ معلومیږی چہ مراد پہ تنوین سرہ لفظی دے، حاصل دا دے چہ
دا قید دہ مثال نہ معلومید لے شو او مقصود اختصار وُو نو مصنف رحمہ اکتفاء او کړو
پہ مثال او اختصاراً ئے دا قید ذکر نہ کړو۔ فان قیل ، چہ مصنف رحمہ
دہ تنوین تقدیری دہ پارہ دوہ مثالونہ ولے ذکر کړہ قلنا ، چہ اول مثال دہ هغہ تنوین
مقدرہ دے چہ پہ اصل کښے تنوین وُو بیا روستہ حذف شویدے او دویم مثال دہ هغہ
تنوین مقدرہ دے چہ تنوین دہ اصل نہ مقدر دے ،
یا نون تثنیہ یا بہ پہ نون دہ تثنیہ سرہ وی چون عندی قفیزانِ بُرّاً ، لکہ عندی
قفیزان برّاً شو لو قفیزان اسم تام دے چہ تمام شوے دے پہ نون دہ تثنیہ سرہ او بُرّاً
تمیز دے او دے اسم تام پکښے عمل دہ نصب کړیدے یا بنون جمع ، یا بہ پہ نون
دہ جمع سرہ وی چون هَل نُنَبِّئُکُم بِالاَخسَرِینَ اَعمَالاً ، (ترجمہ) ایا خبر درنہ
کړم تاسو تہ پہ تاوانیانو دہ جهت دہ اعمالونہ پہ دے مثال کښے الاخسرین اسم تام
دے چہ تمام شویدے پہ نون دہ جمع سرہ ، یا بمشابہ نون جمع ، یا بہ تمام وی
دا اسم پہ مشابہ دہ نون دہ جمع سرہ وی چون عندی عشرون درهماً ۔ نو پہ
عشرون کښے نون حقیقی نون دہ جمع نہ دے ځکہ چہ عشرون جمع حقیقی نہ دہ
بلکہ دہ ملحقاتو دہ جمع دہ کما مرّ خو مشابہ دے دہ نون دہ جمع سرہ ځکہ لکہ
څرنګہ چہ نون دہ جمع واقع کیږی پس دہ واو ما قبل مضموم نہ لکہ مسلمون شو

نو دا رنګه داهم واقع دے پس دهٔ واؤ ما قبل مضموم نه تا تسعون ، ترتسعون
پورے چه څو مره عقود دی نو دا تام دی پهٔ مشابه دهٔ نون دهٔ جمع سره یا باضافه
یا به تام وی پهٔ اضافت سره یعنی پهٔ مضاف الیه سره چون عندی مِلئُهٗ عَسَلاً ، نو پهٔ
دے مثال کښے ملأهٗ اسم تام دے او تمام شوید ے پهٔ مضاف الیه سره چه دهٔ ضمیر
دے یازدهم اسمائے کنایه از عدد ، یولسم قسم اسمائے کنایه دی دهٔ عدد نه
کنایهٔ مصدر دے ماخوذ دے دهٔ دے محاورے دهٔ عربو نه کنیتُ عن کذا بکذا یا ماخوذ
دے دهٔ دے محاورے دهٔ عربو نه کنوتُ عن کذا بکذا نو بنا پهٔ اول یائی دے او بنا
پهٔ ثانی واو ی دے ، کنایه دیته وائی چه تعبیر اوکړے دهٔ معنی معین نه پهٔ داسے لفظ سره
چه غیر ظاهر الدلالت وی پهٔ دغه معنی بانده دهٔ پاره دهٔ یو غرض دهٔ اغراضو نه
او اسمائے کنایه هغه اسماء غیر ظاهر الدلالت دی چه پهٔ هغو سره تعبیر کولے شی
دهٔ معنی معین نه نو معلوم شوه چه اسمائی کنایه از عدد هغه اسماء دی چه تعبیر ورباندے
کولے شی دهٔ عدد مبهم نه وآن دو لفظ ست کم وکذا ، او دا اسماء کنایه دهٔ عدد نه دوه
لفظونه دی یو کم دے او بل کذا دے کم بر دو قسم است استفهامیه وخبریه ،
کم پهٔ دوه قسم دے استفهامیه او خبریه استفهامیه هغه دے چه پهٔ هغهٔ سره طلب
دهٔ حصول دهٔ شمار دهٔ اشیاء کولے شی پهٔ ذهن کښے او خبریه هغه دے چه پهٔ هغه سره
خبر ورکولے شی دهٔ کثرت دهٔ اشیاءُ نه استفهامیه تمیز را بنصب کند وکذا نیز ،
کم استفهامیه تمیز لره نصب ورکوی او کذا هم یعنی تمیز دهٔ کم استفهامیه او کذا به
منصوب وی ځکه چه دا دواړه کنایه ده دهٔ مطلق عدد نه او پهٔ مطلق عدد کښے عدد
اقل عدد اوسط عدد اکثر ټول داخل دی نو که مونږه دے دواړو لره تمیز دهٔ
عدد اقل یا اکثر ورکوو نو لازمیږی ترجیح بلا مرجح نو تمیز دهٔ عدد اوسط مونږه
ورکړو چه مفرد منصوب دے او ترجیح د مرجح نه راځی ځکه چه خیر الامور اوسطها
چون کم رجلاً عندک ، دا مثال دهٔ کم استفهامی دے (ترکیب) کم ممیز رجلاً تمیز
ممیز سره دهٔ تمیز خپل نه مبتداء عندک مضاف مضاف الیه مضاف سره دهٔ مضاف
الیه خپل نه ظرف مستقر متعلق دهٔ ثابتٌ مقدره سره دهٔ متعلق خپل نه

شبه جمله خبر مبتدا سره دهٔ خبر خپل نه جمله اسمیه انشائیه وعندی کذا درهما اوکه عندی کذا درهما شو عندی ظرف مستقر خبر مقدم کذا ممیز درهما تمیز ممیز سره دهٔ تمیز خپل نه مبتداء مؤخر مبتداء سره دهٔ خبر خپل نه جمله اسمیه خبریه وکم خبریه تمیز را بجر کند، اوکم خبری تمیز خپل لره جرورکوی حُکه چه کم خبری مضاف وی تمیز خپل ته اوهغه وله مضاف الیه وی او مضاف پهٔ مضاف الیه خپل کښې عمل دهٔ جر کوی وبالفاظ دیگر تمیز دهٔ کم خبری به مجروروی حُکه چه داکنایه ده دهٔ عدد اکثر نه نو دے ایحا نو تمیز دهٔ عدد اکثر ورکړه او تمیز دهٔ عدد اکثر نه وُ مگر مجرور وُو ـ والوجه الاول اظهر فتامل ـ چون کمال النفقة لکه کم مال النفقة شو وکم دارٍ بنیت دیر کورونه جوړکړی دی ما دامثال ثانی دهٔ پاره دهٔ زیادت وضاحت دے وگاهی من جاره بر تمیز کم خبریه می آید، اوکله کله من جاره پهٔ تمیز دهٔ کم خبری داخلیږی حُکه چه تمیز هم داځی دهٔ پاره دهٔ بیان اومن جاره بیانی هم راځی دهٔ پاره دهٔ بیان نو پهٔ مابین دهٔ دے دواړو کښې مناسبت دے چون قوله تعالیٰ کَمْ مِنْ مَلَكٍ فِی السَّمٰوٰتِ (ترجمه) څومره ډیری دی دهٔ فرشتو نه پهٔ آسمانونو کښې ،

فائده ۔ مصنف رح تخصیص دهٔ مِنْ کړے دے پهٔ تمیز دهٔ کم خبری پورے لیکن صاحب دهٔ کافیه وائی چه مَنْ جاره بیانی پهٔ تمیز دهٔ کم استفهامی اوخبری دواړو داخلیږی لکه وائی وتدخل من فیهما ،

هرکله چه فارغ شو مصنف رح دهٔ بیان دهٔ قسم اول دهٔ عواملو نه چه عوامل لفظیه وُو نو شروع یئے اوکړو پهٔ قسم ثانی دهٔ عواملو کښې چه عوامل معنوی دی نو وُو یئے ویل ،

قسم دوم از عوامل معنوی ، دویم قسم دهٔ دوو قسمونو دهٔ عواملو نه پهٔ بیان دهٔ عواملو کښې دے دهٔ دوو قسمونو دهٔ عواملو نه عوامل لفظی او معنوی مراد دی چه پهٔ شروع دهٔ عواملو کښې ویلی وُو چه عوامل پهٔ دوه قسمه دی قسم اول عوامل لفظی وقسم دوم عوامل معنوی ، بدانکه عامل معنوی بردو قسم است ، پوهه شه چه عامل معنوی پهٔ دوه قسمه دے اول ابتداء ، اول ابتداء ده یعنی خالی والے دهٔ دهٔ عواملو لفظیو نه که مبتدا وخبر رابرفع کند ، چه مبتداء او خبر لره رفع ورکوی

خود امذهب دهٔ بصریانو دے او پهٔ دیکښې دوه مذهبه نور هم دی یو مذهب دوه سیبویه صاحب دے هغه وائی چه پهٔ مبتداء کښې عامل معنوی دے چه ابتداء ده او پهٔ خبر کښې عامل لفظی دے چه مبتداء ده او بل مذهب دهٔ بعض نحانو دے هغه وائی چه پهٔ مبتداء او خبر دواړو کښې عامل لفظی دے پهٔ دے شان سره چه مبتداء عامل دے پهٔ خبر کښې او خبر عامل دے پهٔ مبتداء کښې لیکن دا مذهب صحیح نهٔ دے ځکه چه بناء پهٔ دے باندے لازمیږی کون دهٔ شئ واحد عامل او معمول دهٔ یاره دهٔ شئ واحد او دا جائز نهٔ دے مثال دهٔ مبتداء او خبر چه عامل معنوی پکښې عمل دهٔ رفع کړے وی چون زیدٌ قائمٌ، لکه زیدٌ قائمٌ شو زیدٌ مبتدا قائمٌ خبر دے او پهٔ دواړو کښې عامل معنوی دے ځکه چه دواړه خالی دی دهٔ عواملو لفظیو نه، دَاین جا گویند که زیدٌ مبتدا است مرفوع با بتداء وقائمٌ خبر مبتداء است مرفوع با بتداء. اودلته وائی چه زید مبتداء ده مرفوع ده پهٔ ابتداء سره او قائمٌ خبر دهٔ مبتداء دے مرفوع پهٔ ابتداء سره واینجا دو مذهب دیگر است او دلته دوه مذهبونه نور دی یکے آنکه ابتداء عامل است در مبتداء و مبتداء عامل است در خبر، یو دا دے چه ابتداء عامل دے پهٔ مبتداء کښې او مبتدا عامل دے پهٔ خبر کښې نو پهٔ مبتداء کښې عامل معنوی شو او پهٔ خبر کښې عامل لفظی شو دیگر آنکه هر یکے از مبتداء و خبر عامل است در دیگر بل مذهب دا دے چه هر یو دهٔ مبتداء او خبر نه عامل دے پهٔ بل کښې نو بناء پهٔ دے پهٔ دواړو کښې عامل لفظی شو

دوم خلو فعل مضارع از ناصب و جازم، دویم قسم دهٔ عامل معنوی نهٔ خالی والے دهٔ فعل مضارع دے دهٔ عامل ناصب او جازم نه او کهٔ خالی دهٔ عامل ناصب او جازم نه نه وه نو بیا پکښې عامل معنوی نهٔ وی فعل مضارع را برفع کمند، دا فعل مضارع لره رفع ورکوی چون یَضْرِبُ زیدٌ، لکه یضربُ زیدٌ شو اینجا یضربُ مرفوع است زیرا که خالی است از ناصب و جازم، دلته یضربُ مرفوع دے ځکه چه خالی دے دهٔ عامل ناصب او جازم نه،

فائده، پهٔ فعل مضارع کښې عامل معنوی دے لیکن پهٔ دیکښې بیا اختلاف دے

بو مذهب دادے چہ عامل معنوی خلو دہ فعل مضارع دہ ناصب او جازم نہ دویم مذهب دادے چہ عامل معنوی صحت دہ وقوع دہ فعل مضارع دے پہ موقع دہ اسم کښے لیکن مذهب صحیح اول دے نو حُکہ مصنف رحمہ اوویل دوم خلو فعل مضارع الخ۔

تمام شد عوامل نحو بتوفیق اللہ تعالیٰ وعونہ،

مرتب احقر فضل الربانی دیروی بتاریخ ۱۴/۲/۹۲ء مطابق ۱۰/۸/۱۴۱۲ھ۔

خطاط محمد طیب طاہری

۷/۱۱/۹۲ء م ۱۱/۵/۱۴۱۳ھ۔

# خاتمہ در فوائد متفرقہ کہ دانستن آن واجب است

خاتمہ پہ بیان دہ فوائد و متفرقو کښے دہ چہ معرفۃ دہ هغہ فوائد و ضروری دے وآن سہ فصل است اودا درے فصلونہ دی یعنی دا فوائد بیا تقسیم شوی پہ فصلونو ئے درے فصلونو کښے فصل اول در توابع، فصل اول پہ بیان دہ توابعو کښے دے توابع جمع دہ تابع دہ تابع پہ لغت کښے وروستے کید و نکی تہ وائی او پہ اصطلاح کښے تابع هغہ دے چہ مصنف رحمہ بیان کرید ے پہ دے قول خپل کښے بدانکہ تابع لفظی است کہ دومی از لفظ سابق باشد باعراب سابق از یکجہت پوہ شہ چہ تابع هغہ لفظ دے چہ دوم وی پہ نسبت سرہ لفظ سابق تہ او معرب وی پہ اعراب دہ لفظ سابق سرہ دہ یو جہت نہ۔ قولہ باعراب سابق یعنی اعراب دہ دے لفظ ثانی او اعراب دہ لفظ اول بہ یو وی پہ دے شان سرہ کہ لفظ اول معرب وُو پہ اعراب دہ رفع سرہ نو دا بہ هم معرب وی پہ اعراب دہ رفع سرہ لکہ جاءنی رجلٌ عالمٌ اوکہ لفظ اول معرب وُو پہ اعراب دہ نصب سرہ نو دا بہ هم معرب وی پہ اعراب دہ نصب سرہ لکہ رئیتُ رجلاً عالماً اوکہ لفظ اول معرب وُو پہ اعراب دہ جر سرہ نو دا بہ هم معرب وی پہ اعراب دہ جر سرہ لکہ مررتُ برجلٍ عالمٍ قولہ از یکجہت یعنی علت او سبب دہ اعراب دہ لفظ سابق او لفظ ثانی بہ یو وی

پهٔ دے شان سره که لفظ سابق مرفوع وؤ بنا بر فاعلیت نو دا لفظ ثانی به هم مرفوع
وی بنا بر فاعلیت او که مرفوع وُو بنا بر ابتدائیت نو لفظ ثانی به هم دا رنګه وی
وعلیٰ هذا القیاس البواقی ، پس پهٔ دے قید سره چه از یک جهت دے احترازئ
از کړو دهٔ هغه اسم نه چه معرب وی پهٔ اعراب دهٔ سابق سره لیکن اعراب دهٔ دواړوهٔ
یو جهت نه نهٔ وی بلکه مختلف وی حُکه چه هغه تابع نهٔ دے لکه ضربتُ زیداً مشدوداً
شو نو مشدوداً معرب دے پهٔ اعراب دهٔ سابق سره حُکه چه زیداً منصوب دے
پهٔ اعراب دهٔ نصب سره او دا هم منصوب دے پهٔ اعراب دهٔ نصب سره لیکن مشدوداً
تابع نهٔ دے حُکه چه جهت دهٔ اعراب دهٔ دواړو یو نهٔ دے حُکه چه زیداً منصوب دے
بنا بر مفعولیت او مشدوداً منصوب دے بنا بر حالیت یعنی سبب دهٔ نصب دهٔ
زیداً مفعول والے دے او دهٔ مشدوداً حال والے دے - ولفظ سابق را متبوع گویند
او هغه مخکے لفظ ته متبوع وائی حُکه دهٔ متبوع معنیٰ ده تابعداری کړے شوے او دهٔ لفظ
سابق هم تابع داری کړے شویده پهٔ اعراب کښے وحکم تابع آنست که همیشه در اعراب
موافق متبوع باشد ، او حکم دهٔ تابع دا دے چه همیشه به موافق وی دهٔ متبوع سره پهٔ
اعراب کښے وتوابع پنج است ، او توابع پنځهٔ دی اول صفت وتابعیت که دلالت
کند بر معنیٰ که در متبوع باشد ، تابع اول دهٔ هغه پنځو توابعو نه صفت دے او دا هغه
تابع دے چه دلالت کوی پهٔ داسے معنیٰ باندے چه پهٔ متبوع دهٔ دے کښے وی یعنی پهٔ موصوف
کښے او دیته صفت بحاله وائی یعنی صفت بحال الموصوف ، چون جاءنی رجلٌ عالمٌ نو
رجلٌ موصوف دے او عالمٌ دهٔ صفت دے او دے عالم دلالت کړے دے پهٔ یوه معنیٰ
باندے چه ثابت دهٔ پهٔ دے رجل کښے او هغه معنیٰ علم دے (ترکیب) جاء فعل
نون وقایه (ی) ضمیر دهٔ متکلم مفعول به رجل موصوف عالمٌ صفت موصوف سره ده
صفت خپل نه فاعل شو جاء فعل سره دهٔ فاعل او سره دهٔ مفعول به خپل نه جمله فعلیه
خبریه ، یا بر معنیٰ که در متعلق متبوع باشد ، یا پهٔ دلالت کوی پهٔ یوه معنیٰ باندے
چه کائنه وی پهٔ متعلق دهٔ متبوع کښے او دیته صفت بحال متعلقه وائی چون جاءنی
رجلٌ حسنٌ غلامُه یا ابوه مثلاً ، نو رجلٌ موصوف دے او حسنٌ دهٔ صفت دے او

او غلام یا اب متعلق دَ دے رجل دے او دے حَسَنٌ دلالت کوے دے پۀ یوه معنیٰ باندے
چه کائنه ده پۀ متعلق دَ رجلٌ کښے او هغه معنیٰ حُسن دے حاصِلِه داچه صفت پۀ دوه
قسم دے صفت بحاله او صفت بحال متعلقه، وجه دَ حصر پکښے داده چه داصفت بحالی
نه وی یا به دلالت کوی پۀ داسے معنیٰ باندے چه کائنه وی پۀ ذات دَ متبوع یعنی موصوف
کښے او یا به دلالت کوی پۀ داسے معنیٰ باندے چه کائنه وی پۀ متعلق دَ متبوع کښے کۀ
اُول وی نو صفت بحاله او کۀ ثانی وُو نو صفت بحال متعلقه، قسم اول، یعنی صفت بحاله
در ده چیز موافق متبوع باشد، پۀ لسو څیزونو کښے به موافق وی دَ متبوع څپل
سره دُ تعریف یو پۀ تعریف کښے و تنکیر، او دویم پۀ تنکیر کښے و تذکیر و تانیث، او پۀ
تذکیر او تانیث کښے و افراد و تثنیه و جمع، او پۀ افراد او تثنیت او جمعیت کښے و رفع
و نصب و جر او پۀ رفع او نصب او جر کښے، صفت به موافق دَ متبوع سره پۀ
دے امور عشرو کښے حُکه وی چه پنځۀ اول داځی پۀ اعتبار دَ موصوف سره او پنځۀ باقی
راځی پۀ اعتبار دَ مسند الیه سره او موصوف او مسند الیه دلته شئ واحد دے طو
پۀ هر ترکیب کښے به ځلور سو جو دیږی او شپږ به منتفی کیږی ځکه چه بعض منافی
دی دَ بعض سره او متنافیین نه جمع کیږی مثلاً چه تعریف وی نو تنکیر به نه وی
چه تذکیر وی نو تانیث به نه وی چه افراد وی نو تثنیه او جمع به نه وی او چه رفع
وی نو نصب او جر به نه وی چون عندی رجلٌ عالمٌ دلته صفت موافق دے دَ
متبوع سره پۀ تذکیر کښے او پۀ افراد کښے او پۀ رفع کښے و رجلان عالمان داامثال دَ تثنیه دے
و رجالٌ عالمون، داامثال دَ جمع دے وامرأة عالمةٌ داامثال دَ مفرد مؤنث دے
وامرأتان عالمتان، داامثال دَ تثنیه مؤنث دے ونسوةٌ عالماتٌ داامثال دَ جمع
مؤنث دے - تامل فی الأمثلة،

اما قسم دوم، هر چه دے قسم دوم یعنی هغه صفت چه دلالت کوی پۀ هغه معنیٰ باندے
چه کائنه وی پۀ متعلق دَ متبوع کښے، موافق متبوع باشد در پنج چیز، موافق
به وی دَ متبوع څپل سره پۀ پنځو څیزونو کښے تعریف و تنکیر و رفع و نصب و جر،
پۀ تعریف او تنکیر او رفع او نصب او جر کښے لیکن موجود یږی پۀ هر ترکیب کښے دوه او

او منتفی به وی د دغه څکه چه بعض منافی دی دهٔ بعضو سره نو یو به موجود یږی ده
تعریف اوتنکیر نه او یو دهٔ رفع او نصب او جر نه چون جاءنی رجلٌ عالمٌ ابوه.
جاء فعل نون وقایه (ی) ضمیر دهٔ متکلم مفعول به رجلٌ موصوف عالمٌ صفت ابوه متعلق
دهٔ رجل سره موصوف سره دهٔ صفت او سره دهٔ متعلق خپل نه فاعل، فعل سره دهٔ فاعل
او مفعول به خپل نه جمله فعلیه خبریه،

چه دے پنځو څیزونو کښے به موافق دهٔ متبوع سره څکه وی چه دا پنځه را غی پهٔ اعتبار
دهٔ موصوف سره او پهٔ پنځه باقی کښے به موافق دهٔ متبوع سره نه وی څکه چه هغه پنځه راغی
پهٔ اعتبار دهٔ مسند الیه سره او مسند الیه غیر دے دهٔ موصوف نه نو پهٔ دے باقیو کښے به
پهٔ شان دهٔ فعل وی پهٔ دے شان سره چه که اسناد یئے شوے وُو اسم ظاهر ته نو دا صفت
به همیشه مفرد وی او که اسناد یئے شوے وُو ضمیر ته نو که ضمیر دهٔ واحد وُو نو دا صفت
به واحد وی او که ضمیر تثنیه وُو نو دا به تثنیه وی او که ضمیر جمع وُو نو دا به جمع وی
دا رنګه څنګه حال چه دهٔ فعل وُو پهٔ تذکیر او تانیث کښے نو دهٔ دے به هم وی وتفصیل
الفعل فی الافراد والتثنیة والجمعیة والتذکیر والتانیث، قد مرّ فی بحث الافعال ـ

بدانکه نکرہ را بجمله خبریه صفت توان کرد، پوهه شه چه دهٔ نکرے صفت پهٔ جمله خبریه
سره کید لے شی چون جاءنی رجل ابوه عالم، رجلٌ نکره ده او توصیف یئے شوے دے
پهٔ جمله سره چه ابوه عالم دے حکمت دا دے چه صفت که څنګه مفرد واقع کید لے شی
نو دارنګه جمله هم واقع کید لے شی څکه چه څرنګه مفرد دلالت کولے شی پهٔ هغه معنا
باندے چه کائنه وی پهٔ متبوع کښے یا پهٔ متعلق دهٔ متبوع کښے نو دارنګه جمله هم دلالت
کولے شی خو جمله خبریه به وی او جمله انشائیه به نه وی څکه چه جمله انشائیه
ثابته بنفسه نه ده نو څرنګه به دلالت او کړی پهٔ وجود دهٔ غیر باندے خو جمله
خبریه چه صفت واقع کیږی نو دهٔ نکرے به واقع کیږی او دهٔ معرفے نشی واقع
کید لے څکه چه نکره دلالت کوی په ذات مبهم باندے او جمله خبریه دلالت
کوی پهٔ نسبت مبهم باندے نو دهٔ نکرے او جملے مناسبت دے او دهٔ معرفے او
جملے مناسبت نشته څکه چه معرفه دلالت کوی پهٔ ذات معین باندے او جمله دلالت

کوی په نسبت مبهم باندے او په ما بین دَه تعین او عدم تعین کښے منافات دے
اوبله وجه چه جمله من حیث هی په قوت دَه نکرے کښے ده نو ده نکرے سره ښه مناسبت
دے او دَه معرفے سره ئے مناسبت منشته، پس اذ ذکر کل کره داخبره چه فائده
دَه نعت وضاحت دَه متبوع دے په منعوت معرّف کښے او تخصیص دے په منکر کښے مثال
دَه اول لکه زَیدٌ نِ الظّرِیفُ او مثال دَه ثانی لکه رجلٌ عالمٌ او کله راځی صفت دَه پاره دَه مجرد
ثنا لکه بسم الله الرحمٰن الرحیم، او کله راځی دَه پاره دَه مجرد ذم لکه اعوذ بالله من الشیطٰن الرجیم
او کله راځی دَه پاره دَه تاکید لکه نفخةٌ واحدةٌ نو واحدةٌ راغلے دے دَه پاره دَه تاکید
دَه هغه وحدت چه فهمیږی دَه (ت) دَه نفخةٌ نه ودر جمله ضمیرے عائد بنکره لازم
باشد او په جمله کښے به یو ضمیر ضروری وی چه عائد وی نکرے ته یعنی جمله خبریه چه
صفت واقع شی دَه نکرے نو په دیکښے به ضمیر عائد ضروری وی ځکه چه صفت مربوط
وی دَه موصوف خپل سره او جمله مستقله بنفسها ده نو لابدی شوه دَه عائد نه
چه ربط راولی دَه جملے دَه موصوف خپل سره،
دوم تاکید و او تابعیت که حال متبوع را مقرر گردانند، دویم قسم دَه توابعو نه
تاکید دے او دا هغه تابع دے چه حال دَه متبوع لره مضبوط کرځوی درنسبت
بنسبت دَه دے متبوع کښے یعنی چه مسند الیه په دے نسبت کښے دا متبوع دے نه غیر
یا در شمول ــــ یا په شمول کښے یعنی په شمول دَه متبوع کښے افراد و خپلو لره
تا سامع را شک نماند، دَه پاره دَه دے خبرے چه دَه سامع شک پاتی نشی
یعنی غرض دَه تاکید نه دفع دَه شک دَه سامع ده په شمول دَه نسبت کښے یعنی چه
دَه سامع دا شک پاتی نشی چه مراد به ټول افراد دَه متبوع نه وی بلکه بعض
به وی او دا لکه دفع دَه شک دَه سامع ده په نسبت کښے یعنی چه دَه سامع دا شک
پاتی نشی چه دا نسبت به متکلم دے متبوع ته هسے کړے وی او یا به ئے دا نسبت کړے
وی دَه وجے دَه غلطی نه او په حقیقت کښے منسوب الیه به دا متبوع نه وی بلکه
بل شئ به وی مثال دَه شمول لکه جاء فی القوم کلّهم دَه سامع دا شک وُو مثلاً
چه قوم ټول نه وی راغلے بلکه بعض به راغلے وی نو چه متکلم ووئیل کلّهم نو دا شک دفع

شوُ او مثال دَه نسبت لکه جاءنی زیدٌ زیدٌ دَه سامع دا شک وُو چې نسبت دَه مجیء
په حقیقت کښې زید ته نه دی متکلم به هسې دا نسبت کړے وی او یا به غلط شوی وی په
دے نسبت کولو کښې نو چې متکلم دوباره اوویل زیدٌ نو دغه شک دفع شو
وتاکید بر دو قسم است لفظی ومعنوی، او تاکید په دوه قسم دے تاکید لفظی
او تاکید معنوی دَه لفظی معنیٰ لغوی منسوب لفظ ته او په اصطلاح کښې لفظی هغه
دے چې حاصلیږی په تکرار دَه لفظ اول سره او دے تاکید لفظی اصطلاحی ته
تاکید لفظی حُکه وائی چې دا هم منسوب دے لفظ ته په دے شان سره چې دا حاصلیږی
په تکرار دَه لفظ سره او دَه معنوی معنیٰ لغوی ده منسوب معنیٰ ته او په اصطلاح
کښې هغه تاکید دے چې حاصل شوے وی په یو دَه الفاظو معدودو محصورو
سره او دیته معنوی حُکه وائی چې دَه معنوی معنیٰ ده منسوب معنیٰ ته دا هم منسوب دے
معنیٰ ته په دے شان سره چې تاکید فقط په معنیٰ کښې راغلے دے،
لفظی بتکرار لفظ است تاکید لفظی په تکرار دَه لفظ اول سره وی یعنی حاصلیږی
په تکرار دَه لفظ اول سره . فان قیل، چې نقض دے راغلے په ضَرَبْتُ ضَرْبًا باندے
حُکه چې دا تاکید لفظی دے او دلته خو تکرار نه دے راغلے قلنا، چې تکرار دَه لفظ اول
عام دے حقیقةً وی او که حکمًا وی او دلته تکرار دَه لفظ اول حقیقةً نه دے راغلے
نو حکمًا راغلے دے حُکه چې دا په قوت دَه دے کښې دے چې ضَرَبْتُ ضَرَبْتُ، لیکن تکرار
دَه لفظ اول چې کیږی نو دا عام دے چې اسم وی او که فعل وی او که حرف وی
مثال دَه اسم چون زیدٌ زیدٌ قائمٌ ، نو زید اول مؤکَّد او ثانی مؤکِّد مؤکَّد
سره دَه مؤکِّد خپل مبتدا، قائمٌ وه خبر مبتدا، سره دَه خبر خپل نه جمله
اسمیه خبریه او مثال ده فعل چون ضَرَبَ ضَرَبَ زیدٌ او مثال دَه حرف لکه
چون انّ انّ زیدًا قائمٌ ، وتاکید معنوی بهشت لفظ است، او تاکید
معنوی حاصلیږی په اته [۸] لفظونو سره، نفسُهٗ وعینُهٗ وکِلا وکِلتا وکُلٌّ واجمعُ
واکتعُ وابتعُ وابصعُ ، نفسٌ دے سره دَه معطوفاتو نه قوله نفسٌ وعینٌ دا دواړه
راځی دَه پاره دَه تاکید دَه واحد تثنیه او جمع، او دا به مطابق وی دَه متبوع

خپل سره په افراد او جمعیت کښې او په تثنیت کښې به نه وی بلکه چه متبوع تثنیه وی نو دغه
هم د پاره به صیغه د جمع راځی او چه په دوی کښې کوم ضمیر وی نو هغه به مطابق وی د
مرجع خپلې سره په افراد تثنیت او جمعیت تذکیر او تانیث کښې قوله کلا کلتا دا دواړه
راځی خاص د پاره د تاکید د تثنیه اول راځی د پاره د تاکید د تثنیه مذکر او دوئم
راځی د پاره د تثنیه مؤنث قوله وکل دا لائی د پاره د تاکید د واحد او جمع خو دا
صیغې به مختلف کیږی نه بلکه په دیکښې چه کوم ضمیر دی نو هغه به متغیر او مختلف کیږی په اعتبار د
مرجع سره قوله واجمع واکتع وابتع وابصع، دا هم راځی د پاره د تاکید د واحد او جمع
خو دا صیغې به مختلف کیږی په اعتبار د متبوع سره نو که متبوع واحد مذکر وی نو دا صیغې
به واحد مذکر وی لکه جاء نی زیدٌ اجمعُ واکتعُ وابتعُ وابصعُ او که متبوع جمع مذکر
وی نو دا به جمع مذکر وی لکه جاء نی القوم اجمعون واکتعون وابتعون وابصعون او که
متبوع مفرد مؤنث وی نو دا به مفرد مؤنث وی لکه جاء نی امرءةٌ جمعاء وکتعاء بتعاء
بصعاءُ او که متبوع جمع مؤنث وی نو دا به جمع مؤنث وی لکه جاءتنی امرءةٌ جُمَعُ
وکُتَعُ وبُتَعُ وبُصَعُ،

فائده، اجمع اصل دے په دلالت کښې په معنا د جمعیت او باقی فرعه دے نو دوئی به
په تاکید کښې تابع وی د اجمع یعنی په دوئی سره به تاکید هله کولے شی چه دوئی سابقاً
تاکید په اجمع سره اوشی او چه کله تاکید په دوئی سره اوکړې نو تقدیم د دوئی به
په اجمع ناجائز وی ځکه چه لازمیږی تقدیم د تابع په متبوع باندے او دا ناجائز
دے سوئم بدل، دریم قسم د توابعو خمسوء نه بدل دے وا و تابعیت
که مقصود به نسبت او با شد، او دا بدل هغه تابع دے چه مقصود په نسبت سره
داوی یعنی مقصود نسبت د شئ وی دیته او ذکر د مبدل منه به کیږی تمهیداً د
پاره د نسبت د شئ دے بدل ته وبدل بر چهار قسم است بدل الکل وبدل الاشتمال
وبدل الغلط وبدل البعض، او بدل په څلور قسم دے بدل کل الخ وجه د حصر
په څلورو کښې داده چه مدلول د بدل به خالی نه وی یا به کل مدلول د مبدل
منه وی یا به جزء د مدلول د مبدل منه وی آو یا به نه کل مدلول د مبدل منه وی

اونہ پہ جزء وی دہ مدلول دہ مبدل منہ نہ کہ کل مدلول دہ مبدل منہ وُونو بدل کل اوکہ جزء وُو دہ مدلول دہ مبدل منہ نو بدل البعض اوکہ نہ کل مدلول دہ مبدل منہ وُو او نہ جزء وُو دہ مدلول دہ مبدل منہ نو بیا بہ خالی نہ وی یا بہ دے بدل یو خاص تعلق وی دہ مبدل منہ سرہ یا بہ تعلق دہ بدل دہ مبدل منہ سرہ نہ وی بلکہ ذکر بہ وی دا بدل دوستو دہ مبدل منہ نہ پہ طریقے دہ غلطیا سرہ کہ اول وُو نو بدل اشتمال اوکہ ثانی وُو نو بدل غلط ، بدل کل آنست کہ مدلولش مدلول مبدل منہ باشد، بدل کل هغہ دے چہ مدلول دہ هغہ مدلول دہ مبدل منہ وی یعنی مدلول دہ هغہ کل مدلول دہ مبدل منہ وی چون جاءنی زیدٌ اخوک، دلتہ زید مبدل منہ دے او اخوک بدل دے او مدلول دہ دواړو یو شے دے ، (ترکیب) جاء فعل (ن) وقایہ (ی) ضمیر دہ متکلم مفعول بہ زیدٌ مبدل منہ اخوک بدل، مبدل منہ سرہ دہ بدل خپل نہ فاعل دہ پارہ دہ فعل فعل سرہ دہ فاعل او سرہ دہ مفعول بہ خپل نہ جملہ فعلیہ خبریہ ، وبدل البعض آنست کہ مدلولش جزء مبدل منہ باشد، پہ دے عبارۃ کہ تقدیر دے نو اصل کښے عبارۃ دارنگہ دے چہ مدلولش جزء مدلول مبدل منہ باشد، معنیٰ او بدل بعض هغہ دے چہ مدلول دہ هغہ جزء وی دہ مدلول دہ مبدل منہ نہ چون ضُرِبَ زَیدٌ رَأسُہٗ ، دلتہ زیدٌ مبدل منہ دے او رأسُہٗ بدل دے او سَر جزء دے دہ زید نہ، (ترکیب) ضُرِب فعل زیدٌ مبدل منہ رأسُہٗ بدل مبدل منہ سرہ دہ بدل خپل نہ نائب فاعل دہ پارہ دہ ضُرِبَ ، فعل سرہ دہ نائب فاعل خپل نہ جملہ فعلیہ خبریہ ، وبدل الاشتمال آنست کہ مدلولش متعلق بمبدل منہ باشد او بدل اشتمال هغہ دے چہ مدلول دہ هغہ متعلق وی دہ مدلول دہ مبدل منہ سرہ یعنی دہ مدلول دہ بدل دہ مدلول دہ مبدل منہ سرہ یو خاص قسم تعلق وی دا سے تعلق چہ نسبت مبدل منہ تہ او شی نو تصور دا بدل وی سرہ راشی اجمالاً ، چون سُلِبَ زیدٌ ثوبُہٗ ، معنیٰ دا خکلے شو یکڑ زید کپرہ دہ هغہ یعنی دہ زید نہ کپرہ راخکلے شو دلتہ پہ دے مثال کښے زید مبدل منہ دے وثوبہ ترمینہ بدل دے او دہ زید سرہ یئے تعلق دے لیکن دا تعلق نہ دہ کلیت دے او نہ دہ جزئیت بلکہ تعلق

په اشتمال دے په دے شان سره چه دا بدل مشتمل دے په مبدل منه باندے
فا شده ـ بدل مضاف دے او اشتمال مضاف الیه دے او دا اضافت ده قبیلے
ده اضافت ده مسبب نه دے سبب ته لو معنیٰ دا ده بدل چه ده هغه را وړلو سبب
ده پو مشتمل کیدل دی په بل باندے یعنی ده دے وجے نه راوړے کیږی چه بدل
مشتمل وی په مبدل منه باندے لکه سُلِبَ زیدٌ ثوبُهٗ او دا مبدل منه مشتمل وی په بدل
باندے لکه په دے قول ده الله تعالیٰ کښے یسئلونک عن الشهر الحرام قتالٌ فیه، دلته
الشهر الحرام مبدل منه دے او قتالٍ فیه ترینه بدل دے او دغه مبدل منه مشتمل دے
په دے بدل باندے لکه چه قتال مظروف دے او دغه وله ظرف دے او ظرف مشتمل
یعنی الشهر الحرام
وی په مظروف باندے وبدل الغلط آنست که بعد از غلط بلفظ دیگر یاد کنند،
او بدل غلط هغه دے چه ذکر کیږی پس ده غلطیٰ نه په لفظ بل سره یعنی متکلم نسبت
او کړی مبدل منه ته ده وجے ده غلطیٰ نه نو روستو دا بدل ذکر کړی چه حقیقت کښے
دا نسبت دے بدل ته دے چون مررت برجلٍ حمارٍ، یعنی تیر شوم زه په سړی (نه نه)
په خره باندے، اول متکلم نسبت ده مرور خپل او کړو رجل ته لیکن فوراً ورته خیال
ده غلطیٰ خپلے داغے نو ده غلطیٰ ده وجے نه یئے حمار ذکر کړو چه مرور حُما په رجل نه دے
شوے بلکه په حمار شویدے،

چهارم عطف بحرف څلورم تابع عطف بالحرف دے، عطف مصدر مبنی للمفعول
دے یعنی څلورم معطوف بالحرف دے متبوع ده دے معطوف بالحرف
معطوف علیه وائی، پس معطوف ته ـ معطوف حُکه وائی چه ده معطوف
معنیٰ ده عطف کړے شوے او دا هم عطف کړے شویدے په معطوف علیه باندے
او معنیٰ لغوی ده عطف میلان دے نو ده معطوف معنیٰ ده مائل کړے شوے
ومعطوف بالحرف ته معطوف بالحرف حُکه وائی چه دا عطف کړے شویدے
په واسطے ده حرف عطف سره،

واو تابعیست که مقصود باشد بنسبت با متبوعش بعد از حرف عطف
او دا معطوف بالحرف هغه تابع دے چه مقصود وی په نسبت سره، سره ده متبوع

خپل نه پس دَه حرف عطف نه ، معنی زدروی پس دَه حرف عطف نه مقصود وی په نسبت
اشی سوا کښې څرنګه چه دَه دے متبوع مقصود وی. چون جاءنی زیدٌ وعمروٌ
زیدٌ معطوف علیه دے او عمروٌ معطوف بالحرف دے نو څرنګه نسبت دَه جاء
زید ته مقصود دے نو عمرو ته هم مقصود دے (ترکیب) جاء فعل (ن) وقایه (ی)
ضمیر متکلم مفعول به زیدٌ معطوف علیه واو حرف عاطف عمرو معطوف
معطوف علیه سره دَه معطوف خپل نه فاعل دَه فعل فعل سره دَه فاعل او سره دَه مفعول
به خپل نه جمله فعلیه خبریه ، وحروف عطف ده است در فصل سوم یاد کنیم انشاء الله تعالی

فائده : عطف مصدر مبنی للفاعل دے په معنی دَه عاطف سره معطوف
واو را عطف نسق نیز گویند ، پس ازدی کړه داخبره چه معطوف بالحرف ته معطوف
بالنسق هم وائی ځکه چه دَه نسق معنی ده ترتیب ورکول او دلته هم په بعضو ځایونو
کښې معطوف دوسته دَه معطوف علیه نه په ترتیب سره وی اګرکه په بعض
ځایونو کښې نه وی ، العبد الضعیف فضل ربانی دیروی ـ

پنجم عطف بیان واو تابعیست غیر صفت که متبوع را روشن گردانند ، عطف
بیان هغه تابع دے چه غیر وی دَه صفت نه او متبوع خپل لره واضح کوی قوله غیر
صفت دا قید مصنف رح ذکر کړے دے دَه پاره دَه احتراز دَه صفت نه ځکه چه صفت
هم تابع دے چه وضاحت دَه متبوع خپل کوی لیکن په دے قید سره ترینه خارج
شو کما هو ظاهر ـ او دے عطف بیان ته عطف بیان ځکه وائی چه دا بیان دَه متبوع
خپل کوی چون اقسم بالله ابو حفص عمرُ (ترجمه) قسم او کړو په الله باندے
ابو حفص چه عمر دے وقتیکه بعلم مشهور تر باشد ، په هغه وخت کښې چه په علم سره
زیات مشهور وی ، وجاءنی زیدٌ ابو عمرو ، وقتیکه بکنیت مشهور تر باشد ، په هغه
وقت کښې چه په کنیت سره زیات مشهور وی ، حاصل دا دے چه عطف
بیان به مشهور وی دَه متبوع خپل نه نو که مخکښې دَه چه مشهور وو دَه اسم کنیه نه
نو عطف بیان به علم وی لکه اقسم بالله ابو حفص عمرُ ابو حفص کنیه ده دَه
حضرت عمر رض او عمر رض ئې علم دے لیکن په علم سره زیات مشهور دے نو عمر عطف

بیان شو اوکهٔ دهٔ چې اسم کنیه مشهور وُو دهٔ علم نه نو عطف بیان به اسم کنیت وی مثلاً جاءنی زیدٌ ابو عمرٍو نکه یوسړے چې زید یې علم دے او ابو عمرو یې کنیه ده لیکن په ابو عمرو سره زیات مشهور دے نو ابو عمرو به عطف بیان وی او په عطف بیان کښې دا ضرور ده چې دا به اوضح وی دهٔ متبوع څخه نه ځکه چې دا بیان او وضاحت دهٔ متبوع څخه کوی نو دا ضروری شو چې دا به په وضاحت کښې زیات وی دهٔ هغه نه،

فائده ۰ - دهٔ علم دهٔ پاره معنیٰ دی یو علم دے په معنیٰ عام سره نو هغه شامل دے اسم محضه اسم کنیه او اسم لقب لره او یو علم دے په معنیٰ خاص سره چې مرادف دهٔ اسم محضه دے دلته په معنیٰ اخاص سره دے،

پس اوزده کړه را خبره چې اسم په درې قسمه دے (١) اسم محضه (٢) اسم کنیه (٣) اسم لقب اسم محضه هغه دے چې دهٔ چاره دپاره یو خاص نوم کیخودلے شی نکه مور او پلار خپل ځوئ لره نوم کیدی دهٔ زید، او اسم کنیه هغه دے چې مُصَدَّر وی په لفظ دهٔ اب یا دهٔ امّ یا دهٔ ابن یا دهٔ بنت سره، او اسم لقب هغه دے چې یو سړے په یو صفت مشهور شی صفت حسنه وی که قبیحه وی نکه نور الدین، یا ملک الضلیل شو

## فصل دوم در بیان منصرف وغیر منصرف، دویم فصل په بیان دهٔ منصرف او غیر منصرف کښې دے، منصرف ته منصرف ځکه وائی چې دا مشتق دے دهٔ صِرفٌ نه بکسر الصاد او صرف خالی والی ته وائی او دا منصرف هم خالی دے دهٔ نهٔ اسبابو دهٔ منع صرف نه او یا دیته منصرف ځکه وائی چې منصرف مشتق دے دهٔ صَرِیْفٌ نه او صَرِیْفٌ یو قسم اواز دے چې څائیې دهٔ اداء دهٔ هغه خیشوم دے او په دیکښې تنوین راځی او په تنوین کښې هم دغه اواز پیدا کیږی، یا دیته منصرف ځکه وائی چې منصرف مشتق دے دهٔ صَرفٌ بفتح الصاد نه او صرف وائی تغیر او تبدیل ته او په دیکښې هم تغیر او تبدیل راځی په حرکت کښې کله رفع وی کله نصب کله جر سره دهٔ تنوین نه، او غیر منصرف ته غیر منصرف ځکه وائی چې په دیکښې دا قسم اواز او خالی والے او تغیر نه وی، منصرف آنست که هیچ سبب از اسباب منع صرف درو نباشد، منصرف هغه دے چې یو سبب دهٔ اسبابو دهٔ منع

صرف نه په کښې نه وی وغیر منصرف آنست که دوو سبب از اسباب منع صرف درو باشد، او غیر منصرف هغه دے چه دوه سببونه ده اسبابو د منع صرف نه په هغه کښې وی برابره خبره ده چه دوه سببونه حقیقةً وی او که حکماً وی، هر چه دی حقیقتاً دا خو ظاهر ده او دوه سببونه حکماً هغه دے چه یو سبب وی او قائم مقام د دوه سببونو وی. واسباب منع صرف نه است، او اسباب ده منع صرف نه نهه دی، عدل ووصف وتانیث ومعرفه وجمع وترکیب ووزن فعل والف ونون مزیدتان، عدل دے سره ده معطوفاتو ضپلو چنانچه در عمرُ عدل است وعلم، نکه چه په عمرُ کښې عدل دے او علمیت دے ودر ثلٰث ومثلث صفت است وعدل. او په ثلٰث او مثلث کښې وصف دے او عدل دے ودر طلحهٌ تانیث است وعلم، په طلحه کښې تانیث (لفظی) دے او علمیت دے ودر زینب تانیث معنوی است وعلم، او په زینب کښې تانیث معنوی دے او علم دے ودر حبلٰی تانیث است بالف مقصوره، او په حبلٰی کښې تانیث دے په الف مقصوره سره او دا سبب حکماً دے څکه چه دا قائم دے په مقام ده سببین باندے، ودر حمراءُ تانیث است بالف ممدوده، او په حمراءُ کښې تانیث دے په الف ممدوده سره او دا هم سببین حکماً دے هم څکه چه دا هم قائم مقام ده سببین دے او دیته اشاره کړیده مصنف رح په دے قول خپل سره وا این مؤنث بجائے دو سبب است، یعنی دا مؤنث په الف مقصوره او الف ممدوده سره قائم دے په ځائے ده دوه سببینو باندے، ودر ابراهیم عجمه است وعلم، او په ابراهیم کښې عجمه ده او علم دے ودر مساجد ومصابیح جمع منتهی الجموع بجائے دو سبب، او په مساجدُ او مصابیح کښې جمع منتهی الجموع ده چه قائم ده په مقام ده دوه سببینو باندے ودر بعلبک ترکیب است وعلم، او په بعلبک کښې ترکیب دے او علم دے، ودر احمدُ وزن فعل است وعلم، او په احمد کښې وزن فعل او علم دے ودر سکران الف ونون زائدتان است ووصف، او په سکران کښې الف او نون مزیدتان دی او وصف دے ودر عثمانُ الف ونون زائدتان است وعلم، او په عثمان کښې الف او نون مزیدتان او علم دے،

وتحقیق غیر منصرف از کتب دیگر معلوم شود ، او تحقیق دَ غیر منصرف دَ نورو کتابونو نه معلومیږی په دیکښے اشاره ده دیته چه په غیر منصرف کښے تفصیل دے چه مذکور دے په نورو کتابونو کښے . تمت بحث المنصرف وغیر المنصرف وتحقیق الاسباب التسعة قد مرّ فی بیان اقسام اعراب الاسم المتمکن فلا نعیده ،

فصل سوم ، در حروف غیر عامله وشان شانزده قسم است ، فصل دریم دَ نمولو دَ خاتمے نه په بیان دَ حروفو غیر عامله کښے دے او دا شپاړس قسمه دی . اول حروف تنبیه اول حروف تنبیه دی اودوئ ته حروف تنبیه حُکه وائی چه تنبیه صیغه دَ مصدر ده دَ باب تفعیل نه دَ دے معنیٰ لغوی ده خبردار کول او دا حروف تنبیه هم راحیٔ دَ پاره دَ بیداره کولو دَ مخاطب ، وآن سه است الا واَمَا وهَا ، او دا حروف تنبیه دَرے دی آلا دے آمادے وهَا دے ، فائده دا حروف تنبیه هیشه دَ جملے په ابتداء کښے راځی برابره خبره ده چه جمله اسمیه وی او که جمله فعلیه وی او دا راځی دَ غرض دَ پاره چه مخاطب غافل نشی دَ هغه شیٔ نه چه دَ کوم متکلم مخاطب ته خبر ورکوی

دوم حروف ایجاب ، دویم قسم حروف ایجاب دی دوئ ته حروف ایجاب حُکه وائی چه ایجاب صیغه دَ مصدر ده دَ باب افعال نه دَ دے معنیٰ ده ثابته ول او دا هم راځی دَ پاره دَ اثبات یعنی دَ دوئ معنیٰ کښے هم اثبات او ایجاب دے وآن شش است او دا حروف ایجاب شپږ دی نَعَم وبلیٰ واجَل و جیر وایِ واِنّ نم دے سره دَ معطوفاتو خپلو نه ، پس زده کړه راخبره چه نَعَم دَ حروف ایجاب نه راځی دَ پاره دَ اثبات دَ کلام سابق برابره خبره ده چه خبری که انشاء وی مثبت وی که منفی وی او بلیٰ راځی دَ پاره دَ اثبات او ایجاب دَ کلام منفی یعنی دَ کلام منفی نه مثبت جوړه وی او ایٔ راځی دَ پاره دَ اثبات دَ کلام سابق په جواب دَ استفهام کښے سره دَ قسم نه لکه یو سړے سوال اوکړی اجاء زیدٌ لو نه ودته په جواب کښے او وائی اِیْ و الله او اَجَل او جیر او اِنّ دا پواره راځی دَ پاره دَ تصدیق دَ خبر برابره خبره ده چه منفی وی او که مثبت وی ، سوم حروف تفسیر ، دریم قسم دَ شپاړس قسمونو دَ حروفو غیر عامله نه حروف تفسیر دی او دوئ ته حروف تفسیر حُکه وائی چه تفسیر

وائي وضاحت ته اوداهم وضاحت کوي دهٔ هغه ابهام چه راغلے وي په کلام کښے
وان دواست اَیْ وأَنْ . اوداحروف تفسیر دوه دي اَیْ دے اوأَنْ دے کقوله تعالیٰ
وَنَادَيْنَاهُ أَنْ يَا إِبْرَاهِيمُ ، دلته أَنْ راغلے دے دهٔ دپاره دهٔ تفسیر دهٔ مفعول مقدره چه
لفظ دے او تقدیر دا رنگه دے ونادیناه بلفظ هو قولنا یا ابراهیم ، فائــــده ،
اَیْ راځي دهٔ پاره دهٔ تفسیر دهٔ هر مبهم برابره ده چه مفرد وي لکه جاءني زيدٌ اي ابو
عبدالله اوکهٔ جمله وي لکه قُطِعَ رِزْقُه اي مات ، اوأَنْ راځي دهٔ پاره دهٔ تفسير
دهٔ مفعول مقدره دهٔ هغه فعل چه په معنیٰ دهٔ قول سره وي لکه دا قول دهٔ الله تعالیٰ تو
ونادیناه الخ نو دلته نادینا فعل دے په معنیٰ دهٔ قول سره ځکه چه دهٔ نداء معنیٰ ده
اواز کول او دهٔ دے فعل دپاره مفعول محذوف دے بلفظ او أَنْ یا ابراهیم دهٔ هغے
دپاره تفسیر دے نو معنیٰ داده اواز اوکړو مونږه دے ابراهیم ته په یو لفظ سره چه
هغه لفظ دا قول زمونږه وو یا ابراهیم ۔ (تامل)

څلورم حروف مصدریه ، څلورم قسم حروف مصدریه دي دوئ ته حروف
مصدریه ځکه وائي چه دهٔ حروف مصدریه معنیٰ ده هغه حروف چه منسوب دي مصدر
ته اوداحروف هم منسوب دي مصدر ته په دے معنیٰ سره چه داده مدخول خپل نهٔ
تاویل کوي په مصدر سره یعني دا سره دهٔ مدخول خپل نه مؤل گرځي په تاویل ده
مصدر سره ، وأَن سه است مَا وأَنْ وأَنَّ اوداحروف مصدریه دري دي مَا دے
أَنْ دے أَنَّ دے مَا وأَنْ در فعل رود ، ما او أَنْ په جمله فعلیه باندے داخلیږي او دهٔ
هغے نه تاویل په مصدر سره کوي لکه وَضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ اي مع رحبها
او اعجبني ان ضربت ، اي ضربك ، او أَنَّ بفتح الهمزة وتشديد النون داخلیږي په جمله
اسمیه باندے او دهٔ هغے نه تاویل کوي په مصدر سره ، پنځم حروف تحضیض

پنځم حروف تحضیض دي دوئ ته حروف تحضیض ځکه وائي چه دهٔ تحضیض معنیٰ ده
تیزي ورکول او داهم راځي دهٔ پاره دهٔ تیزه ولو دهٔ مخاطب ، وأَن چهار است أَلَا وهَلَّا
ولولا ولوما . اوداحروف تحضیض څلور دي أَلَّا دے هَلَّا دے لَوْلَا دے لَوْمَا دے
فائده ، داحروف چه کله داخل شي په ماضي نو فائده کوي توبیخ او ملامتیا

او چه داخل شي په فعل مضارع نو فائده کوي ترغیب. ششم حروف توقع

شپږم قسم حروف توقع دي و آن قد است، او هغه حروف توقع قد دے او دیته

حروف توقع ځکه وائي چه توقع وائي امید کولو ته او دا هم دَ امید معنیٰ فائده

کوي فافهم قیل، چه حرف توقع یو حرف دے نو مصنف ره صیغه دَ جمع

ولے ذکر کړے ده چه ششم حروف توقع، قلنا چه مصنف ره صیغه دَ جمع ذکر کړې

په نظر سره کثرت دَ افرادو دَ قد ته، قد برائے تحقیق در ماضي، قد

راځي دَ پاره دَ تحقیق په ماضي کښے وبرائے تقریب ماضي بحال، او دَ پاره دَ نزدې

کولو دَ ماضي حال ته ودر مضارع برائے تقلیل او په مضارع کښے دَ پاره دَ تقلیل

حاصل داوے قد چه داخل شي په فعل ماضي باندے نو فائده کوي تحقیق مع التقریب

معنیٰ دَ تقریب داده چه زمانه دَ ماضي نزدے کوي زمانے حالي ته او چه داخل شي په

فعل مضارع باندے نو فائده کوي تحقیق مع التقلیل خو چه کله په ماضي داخل شي نو

بیا کله تحقیق مع التقریب فائده کوي سره دَ امید نه او کله فقط تحقیق مع التقریب فائده

کوي او امید ورسره نه وي لکه یو سړے امید نه لري دَ رکوب دَ امیر او ته ورته اووائې

چه قد رکب الامیر نو دلته تحقیق مع التقریب دے او امید ورسره نشته، او تقلیل چه

فائده کوي په وخت دَ دخول کښے په مضارع نو دا هم کله کله وي لکه الجواد قد یبخل

او کله فقط تحقیق فائده کوي او تقلیل ورسره نه وي لکه قد یَعۡلَمُ اللّٰهُ،

هفتم حروف استفهام، اووم قسم حروف استفهام دي دوئي ته حروف استفهام

ځکه وائي چه استفهام صیغه دَ مصدر ده دَ باب استفعال نه دَ دے معنیٰ ده طلب دَ فهم

کول او دا حروف هم راځي دَ پاره دَ طلب دَ فهم کولو و آن سه است ما و همزه

وهل، او دا حروف استفهام درې دي ما دے همزه ده او هل دے مثال ده

ما لک ما اسمک، او همزه او هل داخلیږي په جمله باندے برابره خبره ده چه جمله

اسمیه وي لکه ازیدٌ کاتبٌ وهل زیدٌ قائمٌ او که فعلیه وي لکه اَجَاءَ زیدٌ وهَلۡ جَاءَ

زیدٌ، هشتم حروف ردع، اتم قسم حروف ردع دي و آن کلّا است بمعنیٰ باز

گردانیدن، او حرف ردع کلّا دے په معنیٰ دَ منع کولو سره۔ او دیته حرف

ځکه وائي چه دَه ردع معنا ده واپس کول او منع کول او دا هم راځي دَ پاره دَ منع کولو
دَ مضمون دَ کلام سابق نه لکه یو سړے تا ته اووائي چه یبغضک زیدٌ نو ته ورته
په جواب کښے اووایئے چه کلا یعني داسے نه ده چه زید زما سره بغض کوی وهمنا سوال
وجواب بمثل ما مرّ في بيان قد، تامل - وبمعنی حقا نیز آمده است، او په معنا
دَ حقا سره هم راغلے دے یعني کله کلا په معنا دَ حقا سره هم راځي چون کلا سوف
تعلمون لکه کلا سوف تعلمون شو معنا ثابته ده زرده چه پوه به شئ تاسو۔
قوله حقا یعني کله راځي دَ پاره دَ تحقیق دَ مضمون دَ جملے ،

نهم تنوین ، نهم قسم دَ ښپاړسو قسمونو دَ حروف غیر عامله نه تنوین دے
تنوین صیغه دَ مصدر ده دَ باب تفعیل نه لکه ویلے کیږي نوّنته (معنا) داخل کړو
ما په دیکښے تنوین ، او په اصطلاح کښے نونٌ ساکنةٌ تتبع حرکة حرف الآخر
یعني تنوین نون ساکنه دے چه تابع کیږي دَ حرکت دَ حرف دَ کلمے نون دَ مِن او
لدنْ او لم یکن وغیره ترینه خارج شو ځکه چه دا هغه آخر دَ کلمے دے فان قیل
چه نقض دے راغے په نون تاکید خفیفه باندے ځکه چه دا هم نون ساکنه دے چه
پیوسته کیږي په آخر دَ کلمه پورے او حال دا دے چه دا خو تنوین نه دے قلنا
چه تنوین نون ساکن دے لیکن هغه نون ساکن چه دَ تاکید دَ فعل دَ پاره نه وی
او نون خفیفه خو دَ تاکید دَ فعل دَ پاره راځي نو هغه ترینه خارج شو۔ وآن
پنج است ، او تنوین په پنځه قسم دے تمکن چون زیدٌ ، یو تنوین تمکن دے لکه زیدٌ
شو تنوین تمکن هغه تنوین دے چه په آخر دَ اسم معرب کښے راځي دَ پاره دَ دلالت
په انصراف دَ کلمے باندے ، وتنکیر ، او دویم تنوین تنکیر دے تنوین تنکیر
هغه تنوین دے چه دلالت کوی په نکارت دَ اسم باندے او دیته تنوین تنکیر ځکه
وائي چه دا دلالت کوی په نکارت باندے چون صهٍ ، لکه صهٍ شو ای اُسکت
سکوتاً مّا في وقتٍ مّا ، معنی چپ شه یو قسم چپ کیدل په یو وقت کښے دَ اوقاتو
نه اما صَه بغیر تنوین فمعناه اُسکت السکوت الآن ، هر چه دے صه بغیر دَ
تنوین نه نو معناء چپ شه خاص چپ کیدل په دے وقت کښے نو اول کښے نکارت دَه
معنی دَه دے دوم

او پهٔ دے کښے تعریف دے ، وعوض اودریم قسم تنوین عوض دے تنوین عوض
هغه دے چه عوض راوړے کیږی دهٔ مضاف الیه محذوف نه اودیته تنوین عوض
ځکه وائی چه داعوض راوړے کیږی دهٔ مضاف الیه محذوف نه چون یَوْمَئِذٍ
داپهٔ اصل کښے یوم اذ کان کذا وُو یوم مضاف وُو اِذْ ته اواذ مضاف وُو کان کذا
جملے ته دهٔ پاره دهٔ تخفیف مضاف الیه دهٔ آذ چه کان کذا وُو حذف کړے شو او
عوض دهٔ هغه نه تنوین راوړے شو نو یومئذٍ شوُو ومقابله ، اوڅلورم قسم
تنوین مقابله دے تنوین مقابله هغه تنوین دے چه راوړے کیږی پهٔ آخر دهٔ
جمع سالم مؤنث کښے پهٔ مقابله دهٔ نون دهٔ جمع سالم مذکر کښے اودیته تنوین
مقابله ځکه وائی چه داراځی پهٔ مقابله دهٔ نون دهٔ جمع سالم مذکر کښے چون مسلماتٍ
لکه مسلماتٍ شوء الف په مسلماتٍ کښے علامه دهٔ جمع ده او (ت) دهٔ تانیث
دهٔ پاره ده او تنوین زیاتی کړے شوے دے پهٔ مقابله دهٔ نون دهٔ مسلمون کښے ،
وترنم او پنځم قسم تنوین ترنم دے او هغه تنوین دے چه داځی پهٔ آخر دهٔ
ابیاتو کښے دهٔ پاره دهٔ تحسین دهٔ صوت او دیته اشاره کړیده مصنف رح پهٔ دے
قول خپل سره که در اخر ابیات باشد ، شعر اقلّی اللوم عاذلُ والعتابن ، وقولی
اِن اصبتُ لقد اصابن ، عاذل پهٔ اصل کښے یاعاذلة وُو یاحرف ندا حذف
شوه او پهٔ منادیٰ کښے ترخیم اوشو نو (ت) دهٔ آخر نه حذف شوه پهٔ ترخیم سره
نوعاذلُ پاتی شوُو (ترجمه) کمه کړه ملامتیا او زودنه ای عاذلے او کړے زه
حق ته اورسم نو وایه ته چه په تحقیق حق ته اورسیدلے یعنی انصاف اوکړه ، پس
تنوین ترنم ته ترنم ځکه وائی چه ترنم صیغه دهٔ مصدر دهٔ باب تفعّل نه دهٔ دے معنیٰ
ده اواز دهٔ سندرو یعنی صوت حسین او داتنوین هم راځی دهٔ پاره دهٔ تحسین دهٔ صوت
وتنوین ترنم دراسم و فعل و حرف رود ، او تنوین ترنم پهٔ اسم او پهٔ فعل و حرف
کښے راځی یعنی پهٔ چا پورے خاص نهٔ دے ، امّا چهار اولین خاص است بإسم
هرچه دی څلور قسمه اولی نو دا خاص دی پهٔ اسم پورے ،
فائده ، تنوین ترنم پهٔ صورت کښے لیکلے کیږی لکه والعتابن شو پهٔ قول دهٔ

شاعر کښې او باقي څلور قسمونه نهٔ ليکلې کيږي ، دهم نون تاکيد در آخر فعل مضارع ثقيله و خفيفه ، لسم دهٔ حروف غير عاملو نه نون تاکيد دے چه راځي پهٔ آخر دهٔ فعل مضارع کښې چه يو نون تاکيد ثقيله دے او بل خفيفه دے ، نون تاکيد ته نون تاکيد ځکه وائي چه دا راځي دهٔ پاره دهٔ تاکيد دهٔ طلب دهٔ فعل او دهٔ پاره دهٔ تاکيد دهٔ ترک دهٔ فعل ، فائده نون تاکيد پهٔ دوه قسم دے يو ثقيله دے چون اِضْرِبَنَّ ، دوېم خفيفه دے چون اِضْرِبَنْ لکه اِضْرِبَنْ شو ، ثقيله ته ثقيله ځکه وائي چه دا ثقيل دے ځکه چه مشدّد دے او خفيفه ته خفيفه ځکه وائي چه پدې کښې خفت دے دهٔ وجې دهٔ سکون دهٔ دے نه ، دا دواړه راځي دهٔ پاره دهٔ تاکيد خو فرق پکښې دا دے چه پهٔ ثقيله کښې تاکيد زيات وي دهٔ خفيفه نه ځکه چه پهٔ ثقيله کښې کثرت دهٔ حروفو دے پهٔ نسبت سره خفيفه ته او کثرت دهٔ حروفو دلالت کوي پهٔ کثرت دهٔ معنىٰ باندے وزه کره راضيه چه نون تاکيد ثقيله او خفيفه راځي پهٔ آخر دهٔ فعل کښې او پهٔ اسم کښې نه راځي ځکه چه دا وضع کړې شوي دے دهٔ پاره دهٔ طلب نو لابدي شوه پکښې دهٔ وجود دهٔ طلب نه او طلب پهٔ فعل کښې وي نه پهٔ اسم کښې او پهٔ فعل کښې خاص پهٔ فعل مضارع کښې راځي او پهٔ ماضي کښې نه راځي ځکه چه پهٔ ديکښې لابدي ده دهٔ وجود دهٔ طلب نه او پهٔ فعل ماضي کښې طلب نشي کيدی خو پهٔ فعل مضارع پورے پيوسته کيږي چه پهٔ معنىٰ دهٔ استقبال وي او کهٔ فعل مضارع چه پهٔ معنىٰ دهٔ حال وي نو پهٔ هغے پورے نهٔ پيوسته کيږي ځکه چه پهٔ ديکښې لابدي ده دهٔ وجود دهٔ طلب نه او پهٔ حال کښې طلب نشي کيدل او فعل مضارع چه پهٔ معنىٰ دهٔ استقبال وي نو خاص پهٔ هغه مضارع پورے پيوسته کيږي چه معنىٰ ده طلب پکښې موجود وي . او پهٔ مضارع کښې به معنىٰ دهٔ طلب هله موجود شي چه فعل مضارع موجود شي پهٔ ضمن دهٔ امر يا نهي يا ترجي يا استفهام يا تمنىٰ يا نداء يا قسم يا عرض کښې - تامل -

يازدهم حروف زيادت ، يولسم حروف زيادت دي حروف زيادت ته حروف زيادة ځکه وائي چه دا کلمه زائده راځي پهٔ کلام کښې او معنىٰ دهٔ زيادت پيدا پهٔ کلام کښې

داده چه چه په حذف دهٔ دوئی سره نقصان نه رسی معنیٰ اصلی دهٔ کلام ته او په
ذکرولهٔ دوئی سره زیادت نه راځی په معنیٰ اصلی دهٔ کلام کښې او دا معنیٰ دهٔ زیادت
نه ده چه په دوئی کښې به هیڅ فائده نه وی ځکه چه فائده په دوئی کښې خامخا
وی لکه تزئین دهٔ لفظ شو او برابر والے دهٔ وزن دهٔ شعر شو دا رنګه دوئی په
کلام کښې همیشه زائد نه راځی بلکه په بعض ځائے کښې اصلی هم راځی وآن هشت
حرفست ، او دا حروف زیادت اته دی اِنْ یو اِن دے بکسرة الهمزة دا اکثر زائد
راځی سره دهٔ مانافیه نه لکه مَا اِن رَأَیْتُ زَیْدًا شو وَاَنْ دویم اَنْ دے بفتح
الهمزة او دا اکثر زائد راځی دهٔ لمّا نه روسته لکه وَلَمَّا اَنْ جَاءَ الْبَشِیْرُ ای وَلَمَّا
جَاءَ الْبَشِیْرُ وما او بل مَا دے دا زائد راځی سره دهٔ اِذَا او مَتیٰ او اَیْ او اَیْنَ
او اِنْ نه لیکن په شرط دهٔ دے چه دا ټول شرطیه وی لکه اِذَا مَا تَخْرُجُ اَخْرُجْ
و اِذَا تَخْرُجْ اَخْرُجْ او مَتیٰ مَا تَذْهَبُ اَذْهَب او اَیًّامَّا تدعوا فله الاسماء الحسنیٰ
او اَیْنَ مَا تجلس اجلس او اِمَّا تَرَیِنَّ مِنَ الْبَشَرِ اَحَدًا دا مَا په اصل کښې اِنْ مَا
وُو بیا نون بدل شو په میم سره او میم مدغم شو په میم کښې نو اِمَّا شو و لا
او بل لَا دے دا زائد راځی پس دهٔ نفی نه سره دهٔ واو عاطفه نه لکه مَا جَاءَنِیْ زَیْدٌ
وَلَا عَمْرٌو او دا رنګه زائد راځی مخکښې دهٔ لفظ دهٔ اقسم نه لکه لَا اُقْسِمُ بِهٰذَا الْبَلَدِ
ای اقسم بهٰذا البلد ، ومن وکاف وبا ولام ، او مِن دے او کاف دے او
باء او لام دے دا ځلور واړه زائد راځی دهٔ جهت دهٔ معنیٰ نه او دا اګر چه حروف
غیر عامله نه دی بلکه حروف عامله دی ځکه چه دهٔ حروف جارو نه دی
لیکن مصنف رح ذکر کړی دی په بحث دهٔ حروف غیر عامله کښې ځکه چه دا نور
حروف هم زائد وُو او دا هم زائد وُو او هغه غیر عامله وُو نو چه هغه یئے
دلته ذکر کړل نو دا یئے ورسره هم ذکر کړه دهٔ دغه اشتراک فی الزیادة دهٔ وجې نه
دوا ولسم حروف شرط دولسم قسم دهٔ حروفو غیر عامله نه حروف شرط
دی حروف شرط ته حروف شرط ځکه وائی چه دا مدخول خپل شرط ګرځوی
وآن دو است اَمَّا ولو - او دا حروف شرط دوه دی اَمَّا دے او لَو دے

امّا برائے تفسیر ، امّا راځئ دَه پاره دَه تفسیر یعنی دا راځئ دَه پاره دَه تفصیل دَه هغه
شئ چه متکلم مجملاً ذکر کړے وی وفاء در جوابش لازم باشد ، او فاء راوړل به پهٔ
جواب دَه دیګئے لازم وی کقوله تعالیٰ فمنهم شقیٌ وسعیدٌ فامّا الذین شقوا ففی
النّار واما الذین سُعِدُوا ففی الجنّة ، نو دا قول چه فامّا الذین شقوا راغلے تفسیر
دَه شقیٌ دے او جواب دَه امّا دلته ففی النار دے او دا قول چه واما الذین سُعِدُوا دے
دا تفسیر دَه سعیدٌ دے او جواب دَه امّا دلته ففی الجنة دے ، ولو برائے انتفائے ثانی
بسبب انتفائے اول ، او لو راځئ دَه پاره دَه انتفاء دَه شئ دویم ثانی پهٔ سبب دَهٔ انتفاء دَه
شئ اول سره یعنی لو دلالت کوی پهٔ دے خبره باندے چه شئ ثانی منتفی دے ځکه
چه شئ اول منتفی دے چون لو کان فیهما اٰلِهَةٌ الّا الله لَفَسَدَتا ، ځکه لو کان الخ شئ اول
الهةٌ دے او شئ ثانی فساد دے نو لو دلالت کوی پهٔ دے باندے چه فساد منتفی دے
ځکه چه الهه منتفی دی ، فائده لو داخلیږی پهٔ فعل ماضی او فعل مضارع دواړو
باندے لیکن دا راځئ دَه پاره دَه ماضی نو که پهٔ فعل مضارع داخل شی نو بیا هم
دَه دے مضارع معنیٰ دَه ماضی وی لکه لو تَضرِبُ اَضرِبُ کیږے تا وهل کړی وے
نو ما به وهل کړی و ، وتفصیل لو مذکور فی مختصر المعانی للعلامه تفتازانی -
سیزدهم لولا - دیارلسم د حروف غیر عامله نه لولا دے واو موضوع است برائے
انتفائے ثانی بسبب وجود اول ، او دا وضع کړے شوید ے دَه پاره دَه انتفاء
دَه ثانی پهٔ سبب دَهٔ وجود دَه شئ اول سره یعنی دا دلالت کوی پهٔ دے خبره
باندے چه شئ ثانی منتفی دے دَه وجے دَه وجود دَه شئ اول نه چون لولا
علیٌّ لهلک عمرٌ ، نو لولا دلالت کوی پهٔ دے خبره چه شئ ثانی چه هلاکت
دَه عمر دے دا منتفی شوئ ځکه چه شئ اول موجود دے چه علی دے ،
واقعه داوه چه یوے ښځے زنا وکړه او حامله وه حضرت عمر رض پهٔ ښځه باندے
دَه رجم حکم او کړو نو حضرت علی رض موجود وو هغه او وئیل چه دَه حاملے
رجم پس دَه وضع الحمل نه وی نو حضرت عمر رض او وئیل چه لولا علیٌّ لهلک
عمر کیږے حضرت علی رض موجود نه وے نو عمر به هلاک شوے وو -

څوارلسم لام مفتوحه برائے تاکید، څوارلسم د حروفو غیر عاملو نه لام مفتوحه دے چه راځي د پاره د تاکید، یعنی څوارلسم لام ابتدائیه تاکیدیه دے دیته لام ابتدائیه ځکه وائي چه دا واقع کیږي په ابتداء د کلام کښې او تاکیدیه ورته ځکه وائي چه دا راځي د پاره د تاکید د جملے ازره کره دا خبره چه لام ابتدائیه تاکیدیه به مفتوح وي ځکه چه ساکن کیدے او مضموم کیدے او مکسور کیدے نه شي نو خامخا به مفتوح وي ساکن کیدے ځکه نشي چه دا راځي په ابتداء د کلام کښې نو که چرے ساکن شي نو لازم به شي ابتداء بالساکن او مضموم کیدے ځکه نشي چه ضمه ثقیله ده نو که مضموم شي نو لازم به شي ثقل او مکسور کیدے ځکه نشي ځکه که مکسور شي نو لازم به شي التباس د لام امر او لام جاره سره ځکه چه لام امر او لام جاره دواړه مجرور دي او لام جاره مکسور ځکه دے چه دا په مدخول خپل کښې عمل د جر کوي نو متحرک شو په هغه حرکت سره چه اثر د دے وي او لام امر مکسور ځکه وو چه دا مشابه دے د لام جاره سره په اختصاص کښې په دے شان سره چه لام جاره خاص دے په اسم پورے او دا خاص دے په فعل پورے او لام جاره مکسور وو نو دا هم مکسور شو،

پانزدهم ما بمعنی مادام، پنځلسم د حروفو غیر عاملو نه ما دے په معنی د مادام سره چونکه اقوم ما جلس الأمیر، ای اقوم مادام الامیر جالسا، ولاړ به یم زه تر څو پورے چه امیر ناست وي،

زره کره دا خبره - چه ما په دوه قسمه دے یو ما اسمی دے او دویم ما حرفی دے اسمی بیا په درے قسمه دے موصوله موصوفه شرطیه مثال د ما موصوله لکه په دے قول د الله تعالی کښې فیکشف ما تدعون الیه ان شاء - او مثال د ما موصوفه لکه په دے قول د صاحب د کافیه کښې چه الکلام ما تضمن کلمتین بالاسناد، بناء علی قوله وهو الاولی لان الأصل فی الخبر التنکارة ویکون نکرة اذا کان ما موصوفة واما اذا کان موصولة فیکون معرفة، او مثال د ما شرطیه لکه ما تفعل أفعل په شرط د دے ته چه ځه کوے نو زه به یې هم کومه،

او ما حرفي په څلور قسمه دے نافیه مصدریه او کافه او ما بمعنی مادام ما نافیه

